بسم اللہ الرحمن الرحیم

## معزز قارئین توجہ فرمائیں!

**کتاب وسنت ڈاٹ کام** پر دستیاب تمام الیکٹرانک کتب .........

- عام قاری کے مطالعے کے لیے ہیں۔
- مجلس التحقیق الاسلامی کے علمائے کرام کی باقاعدہ تصدیق واجازت کے بعد آپ لوڈ (Upload) کی جاتی ہیں۔
- دعوتی مقاصد کی خاطر ڈاؤن لوڈ، پرنٹ، فوٹو کاپی اور الیکٹرانک ذرائع سے محض مندرجات نشرواشاعت کی مکمل اجازت ہے۔

## ☆ تنبیہ ☆

- کسی بھی کتاب کو تجارتی یا مادی نفع کے حصول کی خاطر استعمال کرنے کی ممانعت ہے۔
- ان کتب کو تجارتی یا دیگر مادی مقاصد کے لیے استعمال کرنا اخلاقی، قانونی وشرعی جرم ہے۔

**«اسلامی تعلیمات پر مشتمل کتب متعلقہ ناشرین سے خرید کر تبلیغ دین کی کاوشوں میں بھرپور شرکت اختیار کریں»**

- نشرواشاعت، کتب کی خرید وفروخت اور کتب کے استعمال سے متعلقہ کسی بھی قسم کی معلومات کے لیے رابطہ فرمائیں۔

kitabosunnat@gmail.com

www.KitaboSunnat.com

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آياتها (١٤) | (٦١) سورة الصف مدنية (١٠٩) | ركوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة الصف مدني دے، په دے کښې څوارلس آيتونه او دوه رکوع دي

## تفسير سورة الصف

نوم : (١) دے ته سورة الصف وائي ځکه چه په روستو آيت کښې د الله په لاره کښې د جهاد کولو دپاره د صف تړلو ذکر راغلے.

(٢) دے ته سورة عيسىٰ (٣) او سورة الحواريين هم وائي.

د نازليدو زمانه : ماوردیؒ ليکلي دي چه دا سورت د ټولو په نيز مدني دے. او ددے قوي دليل ددے آيتونه دي چه په دے کښې مسلمانان د الله په لاره کښې په جهاد کولو باندے راپورته شوي دي، او معلومه ده چه جهادْ په مدني دور کښې شروع شوے وو.

### مناسبتونه :

١- مخکښې سورت کښې براءت وو نو دے سورت کښې جهاد دے، د کافرانو نه د براءت (بيزارئ) نتيجه دا وي چه آخر خبره جهاد ته رسيږي. يعني د کافرانو سره دوستانه نهٔ ده پکار بلکه د هغوي سره خو قتال کول پکار دي.

٢- د راتلونکو درے سورتونو د يو بل سره مناسبت دا دے چه د اسلام غلبه په درے څيزونو راځي، يو په قوت سره، دويم په علم، او دريم په مال سره.

په سورت صف کښې دا دي چه قوتِ بدني صَرف کړئ، او په سورتِ جُمعه کښې وائي چه علم ولګوئ او په سورت منافقون کښې وائي چه مال ولګوئ.

۳- مخکښې سورت کښې مومنانو ته په نامناسبه کارونو باندې زجر او رټنه وه او پدې سورت کښې په نامناسبه اقوالو (خبرو) باندې رټنه ده.
٤- مخکښې سورت کښې د یهودیانو نه د براءت حکم وو نو پدې سورت کښې د یهودیانو عیبونه بیانوي.

## د سورت موضوع او مقصد

ددې سورت دوه مقصده دي (۱) یو د رسول الله ﷺ شان بیانول او بیا د هغه تابعدارئ ته ترغیب دې، یعنې رسول الله ﷺ ته ضرر مه ورکوئ او د هغه طاعت وکړئ، دا د الله تعالیٰ حق رسول دې، ﴿هُوَ الَّذِیْ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰی﴾ لکه څنګه چه حواریینو د عیسیٰ ؑ تابعداري کړې، دغه شان تابعداري وکړئ.
یعنې د حواریینو په شان تابعداري وکړئ، چه هسې دعوه کوئ او تابعداري نهٔ کوئ داسې مهٔ کوئ، ﴿لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ﴾ لکه پدې کښې په منافقانو باندې رد دې.
دویم غرض په کښې جهاد دې، د دواړو مقصدونو مناسبت دا دې چه د رسول الله ﷺ طاعت به منافقانو په جهاد کښې نهٔ کاوهٔ. لکه منافقان به په جهادونو کښې پټیدل.

## خلاصه :

اول کښې الله تعالیٰ خپل عظمت بیانوي، او دا ددې دپاره بیانوي چه اتباع د رسول آسانه شي، څکه چه چا د الله عظمت نهٔ وي پیژندلې، د رسول الله ﷺ تابعداري ورته معمولي کار ښکاره کیږي.

| سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَمَا فِی الْاَرْضِ |
|---|
| پاکي وائي الله لره هغه څهٔ چه په آسمانونو کښې دي او هغه څهٔ چه په زمکه کښې |
| وَهُوَ الْعَزِیْزُ الْحَکِیْمُ ﴿۱﴾ یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا |
| دي او هغه زورور حکمتونو والا دې. اې ایمان والو! ولې وایئ هغه خبرې |
| لَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۲﴾ کَبُرَ مَقْتًا |
| چه نهٔ یې کوئ. (عمل پرې نهٔ کوئ). لوئي دې په غصه کښې (په اعتبار د غصې سره) |

| عِنْدَ اللّٰهِ أَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ﴿۳﴾ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ |
|---|
| په نيز د الله دا چه وايئ تاسو هغه خبرے چه نۀ ئے کوئ. يقينا الله مينه کوی |
| الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا |
| د هغه کسانو سره چه جنګ کوی په لاره د هغهٔ کښ صف ترونکی |
| كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ ﴿٤﴾ |
| ګويا که دوی آبادے دے مضبوط کړے شوے. |

**تفسير** : يعني په آسمانونو او زمکه کښ چه څومره حيوانات، نباتات او جمادات دی، هغه ټول د خپل رب پاکی او لوئی بيانوی. څوك خپلے ژبے سره تسبيح لولی لکه ملائك او پيريان او انسانان، او د چا د هيئت او حالت نه ښکاره کيږی چه د هغهٔ خالق د تمامو عيبونو او نقصانونو نه پاك دے، لکه آسمان او زمکه، ونے، بوټی او غرونه او داسے نور. زجاج وائی چه نباتات او جمادات هم د ژبے په وينا سره تسبيح لولی، ليکن مونږ په هغے نۀ پو هيږو.

سَبَّحَ: علامه شوکانیؒ ليکی چه په بعض سورتونو کښ ئے په لفظ د ماضی [سَبَّحَ] سره، او په بعض سورتونو کښ په لفظ د مضارع (يُسَبِّحُ) سره، او په بعضو کښ په امر (سَبِّحْ) سره شروع شويده،

ددے حکمة دا ښکاره کيږی چه پدے کښ بندګانو له دا تعليم ورکول دی چه د الله بندګی په هر حال کښ بيانول پکار دی، ماضی، حال او استقبال.

﴿الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ﴾ يعنی الله ډير زيات قوی دے چه د آسمانونو او زمکے په هر يو شئ باندے غالبه دے، چه هيڅوك پرے غلبه نشی کولے، او هغهٔ تمام موجودات د خپل معلوم حکمت مطابق منظم او مرتب کړی دی، چه د هغے نه هيڅ يو شے هم د وينبتهٔ د سر برابر آوړيدلے نشی.

يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا: ددے څه مطلب چه ولے هغه خبرے کوئ چه عمل پرے نکوئ؟ نو ددے مطلب د شان نزول نه معلوميږی.

## شان نزول

(۱) مفسرين ليکي : نَزَلَتْ فِيمَنْ طَلَبَ الْجِهَادَ ثُمَّ فَرَّ . دا آيتونه د هغه چا په باره کښې نازل وو چه اول ئې جهاد غوښتو خو چه کله فرض شو نو بيا وتښتيدل۔
نو الله تعالیٰ دغه خلقو ته رټنه ورکوي چه اول د الله يو عبادت غواړی خو چه کله ئې وخت راشي، نو بيا روستو روستو کيږي، لکه دا د منافقانو طريقه ده۔
(۲) دويم : [نَزَلَتْ فِيمَنْ يُزَكِّيْ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَزْوَةِ] يعني پدې کښې په هغه منافقانو رد وو چه کله به د جهاد نه واپس شول نو د خانونو تزکيه به ئې کوله او دا به ئې وئيل چه ما دومره کافران قتل کړل او ما داسې بهادري وکړه، او داسې مې ځان بچ کړو او مونږ په اسلام کښې داسې داسې قربانيانې ورکړيدي، پدې صفتونو کولو سره انسان د الله تعالیٰ د نظر نه پريوزي، او پدې کښې دروغ هم دي۔
(۳) دريم : دا د هغه منافقانو په باره کښې نازل شوې وو چه هغوی به دا دعوه کوله ﴿آمَنَّا بِاللهِ وَبِالرَّسُوْلِ وَاَطَعْنَا﴾ مونږ په الله او په رسول ايمان راوړې او مونږ به تابعداري کوو۔ ليکن بيا به ئې صحيح تابعداري نکوله او اوړيدل به۔ لکه ددې زمانې ډير دعويدار مسلمانان هم وائي چه مونږ مسلمانان يو، الله او رسول منم ليکن بيا نهٔ مونځ کوي، نهٔ زکاة ورکوي، او نهٔ روژه نيسي۔
(٤) امام ترمذیؒ د عبد الله بن سلام ؓ نه او ابن المنذرؒ او ابن ابی حاتمؒ او نورو د ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت کړې چه څهٔ مسلمانانو به د جهاد فرض کيدو نه مخکښې وئيل (لَوْ نَعْلَمُ اَیَّ الْاَعْمَالِ اَحَبُّ اِلَی اللّٰهِ لَعَمِلْنَاهُ فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی : سَبَّحَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ الخ) چه که مونږ ته معلومه شي چه الله تعالیٰ ته د ټولو نه زيات کوم يو عمل خوښ دې نو مونږ به هغه وکړو، نو الله د وحی په ذريعه خپل رسول ﷺ ته خبر ورکړو چه د ټولو نه بهترين عمل په الله باندې ايمان لرل او د الله په لاره کښې جهاد کول دي۔ (الترمذی : ۳۳۰۹) صحيح الاسناد)
او کله چه جهاد فرض شو نو دغه مسلمانانو باندې جهاد کول گران اولگيدهٔ، نو دا آيت نازل شو، چه په دې کښې الله تعالیٰ دوئ ملامته کړل، ځکه چه د رشتينې ايمان غوښتنه خو داده چه مؤمن نهٔ دروغ ووائي او نهٔ وعده خلافي وکړي، څهٔ چه ووائي د هغې مطابق

عمل وکړی، او کوم نیك کار ئے چه نهٔ وی کړے، هغه خپل ځان طرفته منسوب نهٔ کړی، ځکه چه د الله په نیز د تولو نه زیاته ناخوښه خبره داده چه انسان خپل ځان طرفته د ښیګړے داسے کار منسوب کړی چه هغهٔ نهٔ وی کړے، یا ووائی چه زهٔ به د خیر فلانے کار کوم، او بیا هغه ونهٔ کړی۔
او پدے آیت کښ ضمناً دا معنیٰ هم پرته ده چه څوك یو عمل ته دعوت ورکوی، او بیا پرے خپله عمل نکوی۔ او دا معنیٰ نهٔ ده چه چا ته به دعوت نهٔ ورکوے چه لا خپله ډیے پرے عمل نهٔ وی کړے۔
یا چه خپله عمل نکوے نو بل ته به دعوت نهٔ ورکوے۔ نهٔ بلکه په تا باندے دوه فریضے دی، یو عمل کول او بل دعوت ورکول۔ که یوه نهٔ کوی نو بل به نهٔ پریدی۔
نو پدے آیت کښ توبیخ دے چه خپله عمل نکوے او بل ته دعوت ورکوے۔ یعنی تیزی ورکول دی په عمل کولو سره۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکی: دا آیت دلیل دے چه د مطلقِ وعدے پوره کول واجب دی۔ او ددے تائید د صحیحینو هغه حدیث کوی چه د منافق درے نښے دی: کله چه وعده کوی نو نهٔ ئے پوره کوی، اوکله چه خبرے کوی نو دروغ وائی، او کله چه ورسره امانت کیښودے شی نو په هغے کښ خیانت کوی۔
ابراهیم نخعیؒ وائی: په قرآن کریم کښ درے آیتونه دی چه زهٔ ئے منع کړے یم چه خلقو ته بیان وکړم یو دا آیت، او دویم ﴿ اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ ﴾ (بقره: ٤٤) او دریم د سورة هود (٨٨) آیت ﴿ وَمَا اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَا اَنْهَاكُمْ عَنْهُ ﴾۔
كَبُرَ مَقْتًا: پدے کښ په پنځه طریقو سره ددے زجر تاکید ذکر دے، یو لفظ د كَبُرَ چه دا د تعجب لفظ دے مِنْ غَيْرِ لَفْظِهٖ۔ دویم لفظ د مَقْتًا۔ ځکه چه مقت سخت بغض او غضب ته وئیلے شی، او دا منصوب دے په تمییز سره ځکه چه په كَبُرَ ضمیر کښ ابهام وو، دریم عِنْدَ اللهِ۔ او د الله په نیز چه سبب د بُغض او غضب وی نو هغه ډیر لوی جرم وی،
او څلورم اَنْ تَقُوْلُوْا: دا فاعل دے د كَبُرَ۔ یعنی وینا بغیر د عمل نه خالص مقت دے۔
اِنَّ اللهَ: مفسرین لیکی چه مؤمنانو ووئیل چه مونږ دا غواړو چه الله تعالیٰ مونږ ته خبر راکړی چه کوم یو عمل هغهٔ ته محبوب (خوښ) دے چه مونږ هغه وکړو اګر که په هغے کښ زمونږ نفسونه او مالونه لاړ شی۔ نو الله تعالیٰ دا آیت نازل کړو۔

او پدې آيت کښې عملاً قتال في سبيل الله ته ترغيب دے، او مخکنی آيتونه ددے دپاره په شان د تمهيد وو، او مطلب دا دے چه اے خلقو! چه تاسو د آمَنَّا (مونږ ايمان راوړے) دعوه کړيده نو اُوس ددے دپاره قتال وکړئ.

قاشانيّ ليکي: انسان د الله په لاره کښې هغه وخت ځان ورکوی کله چه ددهٔ په زړهٔ کښې د الله خالص محبت پروت وی، او د هغهٔ محبت د هر شئ په محبت باندے غالب شوے وی، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورة البقرة په (١٦٥) آيت کښې فرمايلی دی:

﴿وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلَّهِ﴾ (ايمان والا د الله سره د هر چانه زيات محبت کوی).

او کله چه بنده د الله په محبت کښې دے مقام ته اُورسی، نو هغه هم ورسره محبت کوی. لکه د سورة المائدة په (٥٤) آيت کښې راغلی دی: ﴿يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ﴾

(الله دوئ سره مينه کوی، او دا خلق الله سره مينه کوی). دے وجے نه د الله تعالیٰ په نيز د ټولو نه محبوب عمل د هغهٔ په لاره کښې جهاد کول دی. (قاسميّ)

صَفًّا: دا مصدر دے مفعول مطلق دے، او فعل ئے پټ دے. اَیْ يَصُفُّوْنَ اَنْفُسَهُمْ صَفًّا.

يعنی ځانونه صفونه صفونه جوړوی.

يا دا مصدر دے په ځای د حال کښې دے اَیْ صَافِّيْنَ اَوْ مَصْفُوْفِيْنَ. يعنی صف تړونکی وی، يا صفونه کړے شوی وی.

كَأَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ: دا هم حال دے د فاعل د يُقَاتِلُوْنَ نه.

مَّرْصُوْصٌ: اَیْ مُلْتَزَقٌ بَعْضُهٗ بِبَعْضٍ. يعنی هغه آبادے او ديوال چه د هغے ګټے او خختے د يو بل سره انختی وی تردے چه چودونه ئے بند شی او هموار او مضبوط شی.

٢- مَرْصُوْصٌ بِالرَّصَاصِ. (فراءؒ) يعنی په قلائی او مساله باندے يو ځای شوی وی.

٣- مبرّدؒ وائی دا د رَصَصْتُ الْبِنَاءَ نه دے، يعنی کله چه د آبادئ خپل مينځ کښې نژدے والے او يو ځای والے راشی او داسے شی لکه يوه ټکره.

نو ددے نه مراد دا دے چه په جنګ کښې د کافرانو دپاره داسے صفونه تړونکی وی لکه چه يو محکم بنياد او آبادے وی. او بعض وائی چه ددے نه مراد دا دے چه د دوئ نيتونه په قتال کښې يو شان برابر وی چه هغه د الله دين غالبه کول دی. ليکن اول غوره دے.

او د صف تړلو داسے حالت دلالت کوی په اتحاد د مؤمنانو باندے،

او دارنګه په مضبوطوالی د قدمونو د دوئ په خپلو ځايونو باندے، او د دوستانے د

مؤمنانو د يو بل سره۔
او ددے نه بعض علماؤ دليل نيولے دے چه جهاد پياده غوره دے د جهاد نه په سورلئ باندے۔ او دا هم معلومه شوه چه هيڅ مجاهد له جائز نهٔ دي چه د امير د اجازت نه بغير او د ضرورت نه بغير د صف نه ووځی۔
او ددے نه دا هم معلومه شوه چه مسلمانان به قتال او په مونځونو کښ هم داسے جخت صفونه تړی او د يو بل نه به نفرت نهٔ کوی، او په صف د مانځه کښ به فُرجات (کولاو خايونه) نهٔ پريدی۔
او امام بخاریؒ د نعمان بن بشير ﷺ نه روايت راوړيدے چه
(وَكَانَ اَحَدُنَا يُلْزِقُ مَنْكِبَهٗ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهٖ وَقَدَمَهٗ بِقَدَمِهٖ)۔ (بخاری :٧٢٥)
او مونږ کښ به هر يو تن خپله اُوګه او قدم د خپل ملګری د اُوګے او قدم سره انخلولو۔

| وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يَا قَوْمِ لِمَ |
|---|
| او کله چه اُووئيل موسیٰ (عليه السلام) قوم خپل ته اے قومه زما ! ولے |
| تُؤْذُوْنَنِيْ وَقَدْ تَّعْلَمُوْنَ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَيْكُمْ |
| ضرر راکوئ ما ته او حال دا چه پو هيږئ تاسو چه يقيناً زهٔ رسول د الله يم تاسو ته |
| فَلَمَّا زَاغُوْا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ |
| نو هر کله چه هغوی کاږهٔ شول (ظاهراً) نو کاږه کړل الله تعالیٰ زړونه د دوی |
| وَاللّٰهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الْفَاسِقِيْنَ ﴿٥﴾ |
| او الله هدايت نهٔ کوی قوم نافرمانو ته۔ |

**تفسير** : حافظ ابن کثيرؒ ليکلی دی: ددے آيت په ذريعه نبی کريم ﷺ له تسلی ورکړے شوے ده چه تا ته د کافرانو او منافقانو له اړخه کوم تکليف رسيږی په هغے صبر کوه لکه څنګه چه موسیٰ عليه السلام د خپل قوم په ضررونو باندے صبر کړے وو۔ چنانچه نبی کريم ﷺ د عبد الله بن مسعود ﷺ نه په نقل شوی حديث کښ فرمائيلی دی، چه په

هغې کښې ذو الخویصره منافق رسول اکرم ﷺ ته دبې عدلۍ نسبت وکړو. نو رسول الله ﷺ وفرمایل: (رَحِمَ اللّٰهُ مُوْسٰى قَدْ اُوْذِيَ بِاَكْثَرَ مِنْ هٰذَا فَصَبَرَ).

د الله رحمت دې وي په موسیٰ باندې، هغهٔ ته ددې نه زیات ضرر ورکړې شو، خو هغهٔ صبر وکړو. (نو زهٔ به هم د هغهٔ په اقتداء کښې صبر کوم) (بخاري: ۳۱۵۰)

بیا لیکي: ددې آیت په ذریعه مومنان منع شوي دي چه دوئ د نبی کریم ﷺ د تکلیف سبب جوړ شي، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ احزاب په (۶۹) آیت کښې فرمایلي دي: ﴿يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ آذَوْا مُوْسٰى﴾ (اے ایمان والو! تاسو د هغه خلقو غوندې مهٔ کیږئ چه هغوئ موسیٰ له تکلیفونه ورکړل).

د آیت مطلب دادې چه موسیٰ ؑ خپل قوم ته وویل، اے خلقو! تاسو زما په مخالفت کولو سره ماته ولې تکلیف راکوئ، حال دا چه تاسو ته زما د ښکاره او واضحو معجزاتو په ذریعه یقیني علم حاصل شوې دې چه زهٔ د الله رشتینې رسول یم.

فَلَمَّا زَاغُوْا اَزَاغَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ: یعنې هرکله چه هغوئ په ګمراهۍ او کوږ والي باندې ټینګ شو نو الله د هغوئ زړونه د حقې لارې نه واړول، او د حق د قبلولو توفیق ئې ترې واخستهٔ، څکه چه الله تعالیٰ نافرمانه خلق د هدایت د توفیق نه محرور موي.

زَاغُوْا: زیغ، سَره د علم د حق نه انکار کول یا اوړیدلو ته وئیلې کیږي. او ددې زیغ یوه نښه په سورة آل عمران (۷) آیت کښې ذکر ده چه هغه د متشابهاتو پسې روانیدل دي.

زَاغُوْا: اَيْ اَزَاغُوْا عَنِ اتِّبَاعِ مُوْسٰى ظَاهِرًا.

یعنې هغوي ظاهره کښې د موسیٰ ؑ د تابعدارۍ نه واوړیدل، دوئ د طاعت او د ایمان احترام ونکړو او د قتال في سبیل الله نه کاږهٔ شول نو الله هم د هغوي زړونه واړول، شکوك او شبهات او حیرانتیا او ګمراهي ئې پکښې پیدا کړه. څکه چه دا قانون دې چه ظاهر د باطن دپاره عنوان وي، او د چا چه ظاهر خراب شي نو باطن ئې هم خرابیږي

﴿وَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا يُصْلِحْ لَكُمْ اَعْمَالَكُمْ﴾

ظاهره کښې خبرې نیغې او سیده برابرې کوه نو عملونه به دې برابر شي.

د چا چه ظاهر برابر نهٔ وي د هغه زړهٔ نشي برابریدې، ډیر خلق وائي چه زما ګیره نشته، پښنځې مې د ګیټو نه خکته دي، او د سنتو مخالفت کوم خو زړه مې صفا دې، نو دا خبره خطاء ده، څکه چه زړهٔ روغ وي نو ظاهر د هغې مطابق جوړیږي.

| وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ |
|---|
| او کله چه اُووئیل عیسی خوی د مریم اے بنی اسرائیلو ! یقیناً زهٔ رسول د الله یم |
| إِلَيْكُم مُّصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ |
| تاسو ته تصدیق کونکے یم د هغه څهٔ چه مخکښې زما نه دے د تورات نه |
| وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِن بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ |
| او زیرے ورکونکے یم په یو رسول چه راځی به روستو زما نه، نوم د هغه احمد دے |
| فَلَمَّا جَاءَهُم بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا هَٰذَا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿٦﴾ |
| نو هرکله چه راغے هغه دوی ته په ښکاره دلیلونو اُووئیل دوی دا جادو ښکاره دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې هم یو مقصد دا دے چه دا آخری رسول رشتینی دے ځکه چه پخوانو پیغمبرانو خپلو امتونو ته ددهٔ په راتلو زیرے ورکړیدے خاصکر عیسیٰ علیه السلام نو ددهٔ منل پکار دی، دویم پدے کښې نبی کریم ﷺ لـه تسلی ورکول مقصد دے، او دا بیانول دی چه بنی اسرائیلو لکه څنګه چه د موسیٰ علیه السلام نافرمانی وکړه، او د هغهٔ د ضرر سبب جوړ شو، دغه شان هغویٔ د عیسیٰ علیه السلام هم نافرمانی وکړه او هغه ئے دروغژن وګڼړلو۔ نو اے نبی ! که ستا تکذیب وکړی نو لرے نهٔ ده۔

عیسیٰ علیه السلام د خپلے زمانے یهودیانو ته ووئیل : اے بنی اسرائیلو ! (یعنی د یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام اولاده) زهٔ نبی جوړ کړے شوے یم او ماله تورات راکړے شوے او ستاسو د هدایت لپاره رالیږلے شوے یم، او ما هغه دعوت راوړے دے کوم چه د تورات دعوت وو، یعنی د یو الله بندګی، او د نورو د عبادت نه انکار۔

او زما په ذریعه د تورات تصدیق په دے طریقه هم کیږی چه په تورات کښې زما د رالیږلو خبره پرته ده، او اُوس زهٔ رالیږلے شوے یم نو ثابته شوه چه تورات د الله رشتینے کتاب دے، او زهٔ تاسو ته زما نه روسته د یو راتلونکی رسول زیرے درکوم، چه د هغهٔ نوم به احمد وی۔

او کله چه زما په ذریعه د تورات تصدیق کیږی، او زهٔ د یو نوی رسول زیرے درکوم، نو تاسو له په ما باندے ایمان راوړل پکار دی، نهٔ دا چه زهٔ دروغژن اوګنړلے شم۔
محمد بن اسحاقؒ په خپل جیّد سند سره د رسول الله ﷺ د صحابوؓ نه روایت کړے، چه هغوئ وویل :
[يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ! أَخْبِرْنَا عَنْ نَفْسِكَ ؟ فَقَالَ : دَعْوَةُ أَبِيْ إِبْرَاهِيْمَ وَبُشْرٰى عِيْسٰى وَرَأَتْ أُمِّيْ حِيْنَ حَمَلَتْ بِيْ أَنَّهٗ خَرَجَ مِنْهَا نُوْرٌ أَضَاءَتْ لَهٗ بُصْرٰى وَبُصْرٰى مِنْ أَرْضِ الشَّامِ]
اے د الله رسوله ! تهٔ د خپل ځان په باره کښې مونږ ته اوښایه۔ نو نبی ﷺ وفرمایل : زهٔ د خپل پلار ابراهیم دعاء او د عیسیٰ ؑ زیرے یم، او کله چه زما مور امیدواره شوه نو هغے په خوب کښې اولیدل چه د هغے د بدن نه یوه رنړا راووته چه هغے د شام د بُصریٰ محلونه روښانه کړل۔ (مسند الشامیین رقم : ١٤٥٥) والحاکم (٣٥٦٦) باسناد صحیح)
دلته علامه قاسمیؒ او صاحب د فتح البیان او رازیؒ وغیره د انجیلونو او تورات عبارتونه راوړیدی چه په هغے کښې د رسول الله ﷺ صفتونه او په هغه باندے زیرے او د هغهٔ د صحابه کرامو تذکرے شویدی۔
په انجیل یوحنا، باب (١٤) کښې راغلی دی :
«زهٔ د پلار نه طلب کوم، نو هغه به تاسو ته یو [فارقلیط] درکړی»۔
صاحب د اظهار الحق (علامه رحمت الله کیرانویؒ) لیکلی دی چه د [فارقلیط] معنیٰ مُحمد یا احمد ده۔ او په اصل کښې بیرکلوط وو، بیا عربی کښې فارقلیط شو۔
او صاحب د فتح البیان لیکی چه فارقلیط یونانی لفظ دے چه معنیٰ ئے ده شافع (سفارش کونکے)، واسطه، تسلی ورکونکے، شرافت والا او دا ټولے معانی د محمد او احمد سره لازمے دی۔
او په انجیلِ برناباس کښې د نبی کریم ﷺ ښائسته ذکر په صفا عبارتونو کښې راغلے دے او وئیلی ئے دی چه محمد به د الله رسول وی۔
عبد الله بن سلام ؓ وفرمایل : په تورات کښې د محمد (ﷺ) صفت ذکر شوے او عیسیٰ ؑ به د هغهٔ سره یو ځای خخیږی۔
ابوداود المدنیؒ فرمائی : په کوټه د عائشه رضی الله عنها کښې د یو قبر په اندازه ځای پاتے دے۔ (ترمذی)

او د کعب الاحبارؒ نه نقل دی چه حوارینو عیسیٰ علیه السلام ته وویل : اے د الله رسوله :
(هَلْ بَعْدَنَا مِنْ أُمَّةٍ ؟) آیا زمونږ نه روستو به بل امت راځی؟ وے فرمایل :
[نَعَمْ، يَأْتِي بَعْدَكُمْ أُمَّةٌ حُكَمَاءُ عُلَمَاءُ أَبْرَارٌ أَتْقِيَاءُ، كَأَنَّهُمْ فِي الْفِقْهِ أَنْبِيَاءُ، يَرْضَوْنَ مِنَ اللّٰهِ بِالْيَسِيْرِ مِنَ الرِّزْقِ، وَيَرْضَى اللّٰهُ مِنْهُمْ بِالْيَسِيْرِ مِنَ الْعَمَلِ، انتهیٰ].

آؤ، ستاسو نه روستو به یو داسے امت راځی چه هغوی به حُکماء (حکمتونو والا) وی، علماء (په دین به پو هه) وی، نیکان او متقیان به وی او په فقاهت (پو هه) کښې به د انبیاؤ په شان وی. د الله نه به په لږ رزق راضی کیږی او الله به د دوی نه په لږ عمل راضی کیږی.

یهودیانو د عیسیٰ علیه السلام د تمامو معجزاتو لیدلو کتلو باوجود هغه دروغژن وګڼړلو، او وے وئیل چه داچه زمونږ مخے ته څهٔ پیش کوی ښکاره جادو دے.

بعضِ مفسرینو په ﴿ فَلَمَّا جَاءَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوْا هٰذَا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ﴾ کښې ضمیر نبی کریم ﷺ ته راجع کړے دے، په دے صورت کښې به معنیٰ دا شی چه کله نبی کریم ﷺ د مکے کافرانو مخے ته د خپل نبوت او د قرآن کریم د رشتین والی دلائل پیش کړل نو هغوئ ووئیل چه دا خو ښکاره جادو دے، چه ددے په ذریعه محمد (ﷺ) په مونږ جادو کول غواړی، لکه څنګه چه فرعون موسیٰ ته، او بنی اسرائیلو عیسیٰ علیه السلام ته وئیلی وو.

**فائده:** د رسول الله ﷺ په انجیل کښې احمد نوم ذکر شو او په قرآن کریم کښې (محمد) ذکر شویدے، ددے حکمة دا دے چه احمد معنیٰ ده أَحْمَدُ الْحَامِدِيْنَ لِلّٰهِ تَعَالٰى.

یعنی د ټولو خلقو نه د الله تعالیٰ ډیر صفتونه کونکے. ټولو انبیاؤ د الله حمد ویونکی وو لیکن آخری نبی د ټولو نه زیات حمد کونکے دے. او د محمد معنیٰ ده صفت کړے شوے/ یا هغه چه بار بارئے حمد وئیلے کیږی. نو هرکله چه رسول الله ﷺ د الله تعالیٰ ډیر صفتونه وکړل نو خلقو له پکار دی چه ددهٔ حمد او صفتونه وکړی.

یا د احمد لنډه معنیٰ ده ډیر حمد کونکے د خپل رب.

بعض علماء وائی چه په انجیل کښې ئے آسمانی نوم ذکر دے څکه چه په آسمان کښې ورته احمد وئیلے کیدو نو په قیامت کښې به هم دهٔ ته الله تعالیٰ خپل حمدونه ورزده کړی.

| |
|---|
| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعٰى |
| او څوك دے لوئى ظالم د هغه چا نه چه جوړوى په الله باندے دروغ او دا رابللے شى |
| إِلَى الْإِسْلَامِ وَاللهُ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٧﴾ يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِئُوْا نُوْرَ |
| اسلام ته او الله هدايت نهٔ كوى قوم ظالمانو ته. اراده لرى دوى چه مړه كړى رڼړا |
| اللهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿٨﴾ هُوَ |
| د الله په خُلو خپلو سره، او الله پوره كونكے د رڼړا خپلے دے اګركه بد ئے ګافران. خاص الله |
| الَّذِىٓ أَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَدِيْنِ الْحَقِّ |
| هغه ذات دے چه راوے ليږلو رسول خپل په هدايت او حق دين باندے |
| لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ﴿٩﴾ |
| دے دپاره چه غالبه ئے كړى په دينو ټولو باندے اګركه بد ئے ګنړى مشركان. |

**تفسير** : په دے آيتِ كريمه كښں د يهودو او نصاراو په كفر او شرك باندے سخت رد شوے دے، چه الله تعالىٰ نبى كريم ﷺ له د اسلام پشان حق دين وركړو او دنيا ته ئے را اوليږهٔ، چه هغهٔ حق او باطل واضحه كړو، اوس كه څوك ددے نه سترګے پټوى، او په الله دروغ تړى نو ددهٔ نه به لوى ظالم څوك وى، لكه څنګه چه د قريشو د مشركانو حال دے چه هغوئ الله لره څوى او شريك ګنړى، او د هغهٔ حرام كړى څيزونه حلالوى، او حلال كړى څيزونه ئے حراموى، او وائى چه كه د الله خوښه نهٔ وے نو مونږ به د بُتانو عبادت نهٔ وے كړے. دارنګه قرآن ته جادو، او نبى كريم ﷺ ته جادوګر وائى.

دارنګه الله فرمائى : محمد ﷺ زما رسول دے او دوى وائى چه دا رسول نهٔ دے، نو دا د دوئ دروغ شو په الله باندے.

**وَهُوَ يُدْعٰى إِلَى الْإِسْلَامِ**: د اسلام نه مراد دين توحيد دے. يا ددے نه مراد د محمد رسول الله ﷺ اتباع ده. يا ټول دين اسلام مراد دے، او مطلب دا دے چه هركله يو انسان ته ديو داسے دين دعوت وركړے كيږى چه هغه د ټولو دينونه غوره دين وى، او په هغے

کښې د دنیا او د آخرت سعادت او نیکبختي وي، نو هغهٔ له پکار دي چه په هیڅا باندې دروغ جوړ نکړي، پاتې لا دا چه هغه په الله باندې دروغ ووائي۔ نو پدې قید ذکر کولو کښې د داسې انسان ډیر لوی قباحت او بدي ذکر ده۔

او دا دعوت یهود، نصاراؤ، مشرکانو او منافقانو ته ورکړې کیږي۔

او علامه قاسمیؒ فرمائي: چه دا د مخکښې آیت دپاره تتمه هم جوړیږي، او پدې کښې به د بني اسرائیلو لوی قباحت ذکر وي چه هغوی عیسیٰ علیه السلام باندې بهتانونه تړلي وو او هغوی ته دعوت اسلام ته ورکړې کیدو، او اسلام د پخوانو دینونو نوم هم وو لیکن هغوی بدل کړې وو۔ او ددې په عموم کښې به د هر هغه چا بدیٔ ته اشاره وي چه د هغوی په شان کار کوي۔

او دا آیت د روستنو آیتونو دپاره یوه مقدمه هم ده۔

وَاللّٰهُ لَا یَهْدِی الْقَوْمَ الظّٰلِمِیْنَ: الله تعالیٰ داسې ظالمانو ته هدایت نهٔ کوي کوم چه د واضح او ښکاره حق نه انکار کوي۔

یُرِیْدُوْنَ لِیُطْفِؤُا: پدې آیت کښې د مخکنو ذکر شوو کافرانو یهود او نصاراؤ د ظلم او په الله تعالیٰ باندې د دروغو جوړولو یو شکل ذکر دې چه کوشش کوي چه اسلام ختم کړي۔

یعني دا خلق د الله تعالیٰ ډیوه په خپلو پوکو سره مړه کول غواړي، قرآن کریم ته جادو، او زما نبي ﷺ ته جادوګر وائي، نو پو هه شیٔ چه دا د کافرانو د خواهش باوجود د دویٔ خام خیالي ده، د الله رڼرا د شمع غوندې په پوکو سره نشي مړه کیدې، دا خو هغه رڼرا ده چه دا به الله تعالیٰ په ټوله دنیا کښې خوروي۔

په خوله باندې د الله تعالیٰ رڼرا مړه کولو کښې د دوی ضعفُ الحیله ته اشاره ده، ځکه چه بلب یا نمر په پوکو باندې مړ کول خپل ځان سترې کول دي، او د هغې رڼرا ته هیڅ ضرر نهٔ رسیږي۔ نو د دویٔ ټول طاقت او حیلې او چلونه د پوکي په شان دي۔

نُوْرَ اللّٰهِ: د نور نه مراد د اسلام رڼرا ده۔

بِاَفْوَاهِهِمْ: ددې نه مراد بې دلیله خبرې، او کمزوري شبهات او شکونه دي۔

مُتِمُّ نُوْرِهٖ: یعني الله تعالیٰ خپله رڼرا پوره کونکې دې، د قرآن په نازلولو سره، او د دویٔ په شکونو او شبهاتو زائله کولو سره، او د دویٔ په بدي بیانولو سره۔ او په اطرافو او

ښارونو کښې په خورولو سره.
او پدے کښې اشاره ده چه د نور د پوره کیدو نه مخکښې (یعنی د قرآن د نازلیدو او د اسلام د پوره کیدو نه مخکښې) د هیچا قدرت نهٔ وو چه دائے ختم کړے یائے نیمګړے کړے وے.
وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُوْنَ : کفر کښې معنیٰ د پټولو او ظلمت (تیارے) ده، نو دا د نُور مقابل دے یعنی ظلمت او تیارو والا خلق رڼړا نهٔ خوښوی.
پدے کښې اشاره ده چه کافرانو خپل فطرت خراب کړیدے، رڼړا پرے بده لګی لکه د خاپیرک په شان.
هُوَ الَّذِیْ أَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ : دا د مُتِمُّ نُوْرِهٖ تشریح ده، یعنی الله به څنګه خپله رڼړا پوره کوی نو فرمائی چه ما رسول په هدایت ورکولو سره او حق دین ورکولو سره راولیږلو دے دپاره چه دا په ټولو دینونو غالبه کړم.
بِالْهُدٰی وَدِیْنِ الْحَقِّ : ددے معانی په سورة التوبه کښې ذکر شوے وے، چه د هُدیٰ نه مراد علم نافع او دین الحق نه مراد عمل صالح دے.
یا کتاب او سنت مراد دی، یا قرآن او توحید یا عقیده او احکام مرا دی.
لِیُظْهِرَهٗ عَلَی الدِّیْنِ كُلِّهٖ : د اظهار نه مراد غالبه کول دی او د غلبے معنیٰ دا ده چه په حجت سره به هم دین اسلام په ټولو دینونو غالبه وی، نو داسے غلبه په هره زمانه کښې شویده. د اسلام نه هیڅ یو دین په حجت او دلیل سره غالبه نهٔ دے.
او کله به داسے وی چه نور دینونه به کمزوری وی او دین اسلام به پرے حاکم وی، لکه په زمانه د خلفاءِ راشدینو رضوان الله علیهم اجمعین کښې چه یهود او نصاریٰ ذلیله شو او د دین اسلام حکومت د ډیرے اُوږدے زمانے پورے وچلیدو.
او یا به داسے غلبه وی چه د دین اسلام نه علاوه به په مخ د زمکه هیڅ دین پاتے نشی لکه دا به په زمانه د نزول د عیسیٰ عليه السلام کښې کیږی.
دے کښې بعض مفسرینو وئیلی دی چه اظهار کله په معنیٰ د اطلاع او اعلام (خبرولو) سره دے، او مطلب دا دے چه الله خپل رسول او قرآن راولیږل ددے دپاره چه ددے په وجه خلق د ټولو سماوی او غیر سماوی دینونو نه خبر کړی چه کوم حق او کوم باطل دے، او په هغوی کښې څه څه وو؟. لکه قرآن کریم د ټولو دینونو بحث کړیدے.

اول قول غوره دے۔

وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ:

**فائده** : هرکله چه هدی او دین حق توحید دے او د توحید نه انکار ته شرك وائی، نو ددے آیت اختتام ئے په المشرکون سره وکړو او نُور الله نه مراد اسلام وو او هغه د الله تعالیٰ لوی نعمت وو، او د نعمت انکار ته کفر وائی۔ دارنگه د اسلام نه انکار ته کفر وائی نو پدے وجه ئے د هغې په اختتام کښې (الْكَافِرُوْنَ) لفظ راوړو۔

**فائده ۲**: په سورة فتح (۲۸) آیت کښې ﴿ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴾ ذکر وو او په سورتِ توبه او دے آیت کښې ﴿ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ ﴾ ذکر کړو۔

وجه دا ده چه په سورتِ فتح کښې رد وو په عوامو مشرکانو باندے چه هغوی د رسول الله ﷺ په رسالت باندے شهادت نهٔ کولو بلکه د صلح حدیبیه په عهدنامه کښې ئے د (رسول الله) د لفظ نه انکار کولو، نو ددے وجه نه الله تعالیٰ وفرمایل چه د رسول الله ﷺ په رسالت باندے زما گواهی کافی ده۔

او په سورتِ توبه او دے سورت کښې په اهل کتابو باندے رد وو چه هغوی د توحید په ځای د شرك نه دین جوړ کړے وو، او د رسول الله ﷺ نه د مخالفت کولو لوی سبب ئے د هغهٔ د توحید بیان او د شرك رد وو۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلٰى تِجَارَةٍ تُنْجِيْكُمْ مِنْ عَذَابٍ أَلِيْمٍ ﴿۱۰﴾ |
| اے ایمان والو! آیا اُوښایم تاسو ته داسے تجارت چه بچ کړی تاسو د عذاب دردناك نه۔ |
| تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَتُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ |
| ایمان به راوړئ تاسو په الله او په رسول د هغهٔ باندے او جهاد به کوئ په لاره د الله کښې |
| بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۱﴾ |
| په مالونو خپلو او نفسونو خپلو، دا غوره ده تاسو لره که تاسو پو هیږئ۔ |
| يَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوْبَكُمْ وَيُدْخِلْكُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِيْ |
| وبه بخی تاسو ته گناهونه ستاسو او داخل به کړی تاسو لره جنتونو ته چه بهیږی به |

| مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ وَمَسٰكِنَ طَيِّبَةً فِىۡ جَنّٰتِ عَدۡنٍ |
|---|
| لاندې د هغې نه ولې، او کورونه د اوسیدو مزیدار وته په جنتونو د همیشوالی کښې |
| ذٰلِكَ الۡفَوۡزُ الۡعَظِيۡمُ ﴿۱۲﴾ وَاُخۡرٰى تُحِبُّوۡنَهَا ؕ نَصۡرٌ |
| دا کامیابی لویه ده۔ او (درېه کړی) بل نعمت چه خوښوئ ئې تاسو هغه، مدد دے |
| مِّنَ اللّٰهِ وَفَتۡحٌ قَرِيۡبٌ ؕ وَبَشِّرِ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۳﴾ |
| د طرف د الله نه او فتح نزدې، او زیرے ورکړه مؤمنانو ته۔ |

**تفسیر**: اوس جهاد ته ترغیب ورکوی په درې فائدو ذکر کولو سره، یو دا چه د دردناك عذاب نه به نجات درکړی، دویم د گناهونو معاف کیدل، او دریم جنتونو ته داخلول دی۔ دا ترغیب ولې ورکوی؟ نو ددې وجه دا ده چه اسلام به پخپله نهٔ غالبه کیږی چه خلق به پراتهٔ وی او پخپله به اسلام پرې غالبه شی، نهٔ، بلکه ددې د غلبې دپاره به کوشش کوی او د کوشش طریقه د دین دعوت او بیا جهاد دے، او جهاد بغیرهٔ ایمان نه صحیح نهٔ دے نو پدې وجه ئې دلته هم ایمان او جهاد یو ځای کړل۔

بله وجه دا هم ده چه د جهاد په وجه ایمان جوړیږی او د ایمان د تازه کولو سبب جهاد دے۔ او جهاد نهٔ تمامیږی مگر په ایمان۔ لکه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د منافقانو جهاد له هیڅ فائده نهٔ وه۔

دا وجه ده چه بے ایمانه خلق چه جهادونه کوی نو د فائدې په ځای فسادونه ډیر کوی۔ مسلمانان په معمولی خبره وژل او په هغوی باندې بدگمانی کولو کښې واقع کیږی۔

پدې وجه په آیت کښې ډیر ناشنا کار شویدې چه یو ئې د (لِيُظۡهِرَهٗ عَلَى الدِّيۡنِ كُلِّهٖ) سره تعلق دے۔ او ورسره د آخرت فائده ده، لکه دا د قرآن طریقه وی چه په یوه خبره باندې دوه مقصدونو ته اشاره کوی۔

هَلۡ اَدُلُّكُمۡ: په (هَلۡ) حرف استفهام راوړو کښې مقصد د مخاطبینو پوره متوجه کول دی۔

تِجَارَةٍ: د تجارت لفظ ئې پدې وجه راوړو چه عثمان بن مظعون ﷺ فرمایلی وو چه الله

ته کوم تجارت ډیر محبوب دے؟ نو جواب د سوال موافق راوړے شو۔
یا پدے کښې ترغیب دے ځکه چه انسانی طبیعتونه په تجارت باندے ډیر خوشحالیږی ځکه چه په تجارت کښې د ګټے امید وی او په سورت توبه (۱۱۱) آیت کښې ئے د اشتراء په لفظ سره ذکر کړے وو۔
نو په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د نیکو اعمالو تشبیه د تجارتی مالونو سره ورکړے، ځکه لکه ځنګه چه د تجارت نه نفع حاصلیږی، دغه شان نیك اعمال جنت ته د داخلیدو او د اُور د عذاب نه د نجات سبب وی۔
تُنۡجِیۡکُمۡ: پدے کښې د دنیاوی او د اُخروی تجارت فرق ته اشاره ده، یعنی په دے تجارت کښې ضرور ګټه شته او ابدی ګټه ده، او د تاوان هیڅ امکان پکښې نشته او دنیاوی تجارت کښې خو کله نا کله تاوان هم وی۔
عَذَابٍ اَلِیۡمٍ: پدے کښې اشاره ده چه مونږ ته د الله دردناك عذابونه متوجه دی نو د هغے نه ځان بچ کولو اسباب اختیارول پکار دی۔
ذٰلِکُمۡ خَیۡرٌ لَّکُمۡ: دا د جهاد ځلورمه اجمالی فائده ده چه پدے سره انسان ته دینی او دنیاوی خیرونه ملاویږی۔
اِنۡ کُنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ: ددے شرط دا مطلب نهٔ دے چه که یو تن نهٔ پو هیږی نو بیا به په دغه کارونو کښې خیر نهٔ وی، بلکه ددے مطلب دا دے چه که تاسو پو هه وی نو پدے کښې سوچ وکړه، پدے کښې خیر شته، او که تهٔ نهٔ پو هیږے نو هم خیر شته لیکن کله چه یو تن نهٔ پو هیږی نو بیا د هغه شی طالب (طلبګار) نهٔ جوړیږی، ځکه چه اَلنَّاسُ اَعۡدَاءٌ لِمَا جَهِلُوۡا قانون دے۔ (یعنی خلق د هغه شی دشمنان وی چه په پرے نهٔ پو هیږی)
یَغۡفِرۡ لَکُمۡ: دا مجزوم دے په سبب د پټ شرط سره یعنی اِنۡ تُؤۡمِنُوۡا وَتُجَاهِدُوۡا۔
که تاسو ایمان راوړو او جهاد مو وکړو۔ نو بخنه به درته وکړی۔ د جهاد ډیرے فائدے دی دلته بعض ذکر دی۔
تُؤۡمِنُوۡنَ: دا د تجارت تفسیر او تشریح ده۔ یعنی د خرخونکو (چه مؤمنان دی) د طرفنه ایمان او جهاد بالمال والنفس دے۔
یعنی که تاسو په الله او د هغهٔ په رسول حقیقی ایمان اولرئ، او د الله په لاره کښې د خپلو مالونو او د خپلو ځانونو په ذریعه جهاد اوکړئ، نو ستاسو دا کار به د انجام او عاقبت په

اعتبار سره ستاسو دپاره ډیر نفعمن وی۔
يَغْفِرْ لَكُمْ : یعنی الله تعالیٰ به ستاسو گناهونه معاف کړی، او تاسو به هغه جنتونو ته ننباسی چه د هغے لاندے به نهرونه بهیږی، او بلند او بالا مکانونه به در کړی چه په هغے کښې به تاسو همیشه دپاره اوسیږئ۔ او په حقیقت کښې د یو انسان همدا د ټولو نه لویه کامیابی ده چه ددهٔ رب ددهٔ گناهونه معاف کړی او جنت ته ئے ننباسی۔
وَمَسَاكِنَ طَيِّبَةً : دلته او سورت توبه کښې ئے مَسَاكِن ذکر کړیدی، ددے فائده مونږ په تفسیر د سورت توبه کښې ذکر کړے چه په جهاد کښې خپل کورونه پریخودلے کیږی نو الله تعالیٰ د کورونو تذکره پکښې خصوصی وکړه۔
طَيِّبَةً: (مزیدار) یعنی داسے مَسَاكِن (کورونه) چه د ژوند د خوشحالئ ټول اسباب پکښې پوره وی۔
جَنّٰتِ عَدْنٍ: عدن اقامت (وسیدو) ته وئیلے شی۔ یعنی د وسیدو جنتونه به وی۔ پدے کښې اشاره ده چه د مزو حاصلولو دپاره به د جنت نه بهر وتلو ته ضرورت نهٔ راځی۔ لکه دنیا کښې یو تن د خپل کلی نه بهر د مزے حاصلولو دپاره ځی۔
وَأُخْرَىٰ: دا د جهاد پنځمه فائده ده، دنیوی۔
او وَأُخْرَىٰ عطف دے په تِجَارَةٍ باندے یا فعل ئے پټ دے (وَيُؤْتِكُمْ أُخْرَىٰ) او دریه کړی تاسو ته یو بل نعمت۔
یا تقدیر داسے دے (وَلَكُمْ نِعْمَةٌ أُخْرَىٰ) او ستاسو دپاره به بل نعمت وی۔
تُحِبُّونَهَا : دا ورسره څکه وائی چه انسان جلتباز دے، دنیاوی فائدے باندے ډیر خوشحاله وی۔
یا تُحِبُّونَهَا کښې د الله مدد او د حق فتح ته اشاره ده، نو دا دلیل دے چه صحابه کرامؓ د الله په نصرت او د حق په غلبے او فتح باندے خوشحالیدل۔
او پدے کښې اشاره ده چه د صحیح جهاد سره به فتح او نصرتِ الٰهیه ضرور راځی کله چه انسان د ایمان د وجه نه جهاد کوی۔
وَفَتْحٌ قَرِيبٌ : یعنی الله تعالیٰ به مکه فتح کړی، او د هغے نه پس به د هغے خوا او شا نور ښارونه او علاقے هم فتح کړی، او د الله نُصرت او تائید به دوئ سره وی۔
صاحب د محاسن التنزیل لیکی : (۱۳) آیت دلیل دے چه دا سورت د مکے د فتح نه

څهٔ ورځې مخکښې نازل شوې وو، او مقصد مومنان د دوئ د دشمنانو خِلاف په جنګ بانـدې راپـورتـه کـول، د دوئ هـمت ډیرول، او د جهاد په میدان کښې د ثابت قدم اوسیدو نصیحت کول دی۔

دې وجې نه د آیت په آخر کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته ووئیل چه تهٔ مومنانو له زیرے ورکړه چه الله تعالیٰ د دوئ سره چه کومه وعده کړې ده هغه به خامخا پوره کیږی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا كُوْنُوْا أَنْصَارَ اللّٰهِ كَمَا قَالَ عِيْسَى ابْنُ |
| اے ایمان والو! شئ مدد کونکی د دین د الله تعالیٰ لکه چه ونیلی وو عیسیٰ ځوی |
| مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّيْنَ مَنْ أَنْصَارِيْ |
| د مریم حوارینو (مخلصو ملګرو) ته څوك دی ما سره مدد کونکی (دپاره د |
| إِلَى اللّٰهِ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللّٰهِ فَآمَنَتْ طَّائِفَةٌ |
| نزدیکیدو) الله ته ووئیل حوارینو مونږ مددګار د دین د الله یو نو ایمان راوړو یوے ډلے |
| مِّنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وَكَفَرَتْ طَّائِفَةٌ فَأَيَّدْنَا |
| د بنی اسرائیلو نه (نصاریٰ) او کفر وکړو بلے ډلے (یهودو) نو مضبوط کړل مونږ |
| الَّذِيْنَ آمَنُوْا عَلٰى عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوْا ظَاهِرِيْنَ ﴿١٤﴾ |
| هغه کسان چه ایمان ئے راوړے وو په دشمنانو د دوی باندے نو اُوګرځیدل دوی غالبه۔ |

**تفسیر**: مخکښې ترغیب وو جهاد ته په ذکر د فوائدو سره، اُوس ترغیب دے قتال ته په بله طریقه سره چه هغه اِقْتِدَاء بِالْحَوَارِيِّيْن ده۔ یعنی د حوارییـنو اقتداء وکړئ چه هغوی قتال کړے وو۔

نو الله تعالیٰ په دے آیتِ کریمه کښې خپلو مومنانو بندګانو ته حکم ورکړے چه دوئ په هـر حـال کـښې د خپـلـو ځـانـونـو، مـالـونـو، اقوالو او افعالو په ذریعه د هغه حق دین مدد وکړی کوم چه الله تعالیٰ د خپل طاعت او بندګئ دپاره نازل کړے دے۔

او کـوم چـه د عـیسیٰ علیه السلام حـوارینـو د هـغـهٔ پـه آواز باندے لبیك ووئیلو، الله طرفـتـه د

دعـوت پـه کـار کښې ئې د هغهٔ سره ملګرتیا وکړه، او د هغهٔ نه ئې د خپلو ځانونو قربانولو وعـده وکـړه، دغـه شـان دوئ دِے هـم د الله او د هـغـهٔ د رسـول سـره په هره طریقه باندے د ملګرتیا دپاره تیار اوسیږی.

مَنْ أَنصَارِىٓ إِلَى اللَّهِ: أَىْ ذَاهِبًا إِلَى اللَّهِ ـ یعـنـی ما سره څوك مدد کوی چه تلونکے وی الله ته، یعنی د هغه د رضا حاصلونکے وی.

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه کله حوارینو عیسیٰ ؑ تـه ووئیل چه ستا دعوت خلقو ته د رسـولـو دپاره مـونـږ سـتـا مدد کوو، نو هغهٔ هغوئ لره د اسرائیلو او یونانیانو خواته د توحید په دعوت سره ولیږل۔ زمونږ رسول ﷺ به هم د حج په ورځو کښې داسے وئیل چه څـوك دے چـه ماله پناه راکړی، دے دپاره چه زهٔ د خپـل رب پیغام خلقو ته اورسوم، ځکه چه قریشو زهٔ ددے کار نه منع کړے یم۔

چنانچه الله د هغهٔ د مدد دپاره د مدینے د اَوس او خزرج والو زړونه مسخر کړل، هغوئ د هـغـهٔ په لاس بیعت اوکړو، د هغهٔ مدد ئې اوکړو، او وے وئیل چه که تاسو هجرت اوکړئ او مدینے ته راشئ نو مونږ به په هره طریقه ستا دفاع کوو۔

او کله چه نبی ﷺ د نـورو مهاجرینو سره هجرت وکړو او هلته اورسیدهٔ نو هغوئ خپله وعـده پـوره کړه۔ دے وجے نه الله او د هغهٔ رسول هغوئ له د ((انصارو)) لـقب ورکړو چه د هغوئ نوم جوړ شو۔

لِلْحَوَارِيِّنَ: حـواری د حُـور نـه دے، سپیـن والـی تـه وئیلے کیږی لکـه حُوْرٌ عِيْنٌ ۔ نو حواری سپین زړے مخلص راز دار دوست ته وئیلے کیږی۔

فَـآمَـنَـتْ طَّائِفَةٌ مِّنْ بَنِيٓ إِسْرَائِيلَ: خـطـیـب شـربـیـنـیؒ لیکی چه دلته تقدیر دے، یعنی حـوارییـنـو پـه بنی اسرائیلو کښې دعوت شروع کړو نو بنی اسرائیل د دعوت په وجه دوه ډلے شـول، چا ایمان راوړو نو هغوی ته نصاریٰ وئیل کیدل، او چا کفر وکړو نو هغوی ته یهـود وئیل کیدل۔ بیا د عیسیٰ ؑ آسمـان تـه د پـورته کیدو نه پس نصاریٰ مختلف شول، چا ووئیل چه عیسیٰ ﷺ بعینهٖ الله دے۔ دا یعقوبیه ډله وه،

او چا ووئیل چه د الله ځوی دے (العیاذ بالله) او دا نسطوریه ډله وه،

او څـوك پـه تـشـلیـث بـاندے قائل شول او دوی ملکانیه ډله وه، او څوك په توحید باندے کلك وو، او دا به ئې وئیل چه عیسیٰ ؑ د الله بنده او د هغهٔ رسول دے۔

او په هغوی کښې هم درې ډلې پیدا شوې، مجاهدین، دعوت کونکی او دا دواړه یهودیانو قتل کړلې، او دریمه ډله راهبان وو چه د هغې ذکر د سورة حدید په آخر کښې تیر شو.

فَأَيَّدْنَا الَّذِينَ آمَنُوا : یعنی مونږ ایمان والا ډلې سره د هغویٔ د دشمنانو یعنی یهودو او بُت پرستو رومیانو په مقابله کښې مدد اوکړو، او هغویٔ ته غلبه ملاؤ شوه.

او دا په روستو زمانه کښې مراد ده ځکه چه اول کښې نصارئ د یهودو د لاسه مغلوب وو مگر روستو زمانه کښې بیرته الله تعالیٰ نصاراؤ ته غلبه ورکړه، او تر د رسول الله ﷺ د زمانې پورې د نصاراؤ حکومتونه راروان وو.

فَأَيَّدْنَا : دا تائید یو په قتال سره وو، او بل تائید په حجت سره هم دے، او دریم تائید په بعثت د آخری نبی کریم ﷺ سره وو، چه ډیرو نصاراو اسلام راوړو او د رسول الله ﷺ په وجه مضبوط شو.

او د تاریخ د پاڼرو نه معلومیږی چه کله نصاراؤ کښې ایمان موجود وو نو الله تعالیٰ به غلبه ورکوله لیکن کله چه به د صحیح دین نه اوړیدل نو بیا به پرې نور کافران مسلط کیدل او دغسې زمونږ د امت حال هم راروان دے.

مفسرین لیکی چه په دے کښې مومنانو له د دویٔ د رب له اړخه د نُصرت او تائید او د فتح او کامیابیٔ زیرے ورکړے شوے، لیکن شرط دادے چه دویٔ د حق دین د اُوچتوالی دپاره متحد شی او کوشش وکړی، او د نزاع او اختلاف نه بیخی لرے شی. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة الصف

١– پدے کښې په مخالفت د قول او د عمل باندے رد وشو.

٢– دا قانون پکښې ذکر شو چه ظاهر عنوان د باطن دے.

٣– د تجارت تذکره پکښې وشوه.

٤– د حوارینو جهاد پکښې ذکر شو.

ختم شو سورة الصف په مدد د رب العالمین سره په یوم السبت ١٤٣٧ هـ شعبان ٢٨/ موافق ٤/٦/٢٠١٦ ـ اسریت کالام.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آیاتها (۱۱) | (۶۲) سورة الجمعة مدنية (۱۱۰) | رکوعاتها (۲) |
| --- | --- | --- |

سورة الجمعه مدني دے، په دے کښې يوولس آيتونه او دوه رکوع دي

## تفسير سورة الجمعة

نوم : د (۹) آيت ﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِذَا نُوْدِیَ لِلصَّلٰوةِ مِنْ يَّوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا اِلٰى ذِكْرِ اللهِ﴾ نه اخستے شوے۔

### فضيلت :

مسلمؒ، ابوداودؒ، ترمذيؒ او ابن ماجةؒ او داسے نورو د ابو هريره ﷜ نه روايت کړی دی چه نبي کريم ﷺ به د جُمعے په مانځه کښې په اول رکعت کښې سورة الجمعه او دويم کښې المنافقون لوستلو۔ (مسلم: ۲۰۶۳)

### مناسبت :

۱- مخکښې يو مناسبت ذکر شو چه مخکښې سورت کښې د الله د دين مدد په قوتِ بدني سره وو او دلته په قوتِ علمي سره دے۔

۲- بل مناسبت دا دے چه مخکښې دا ذکر شو چه د الله رسول ﷺ ته ضرر مهٔ ورکوئ نو دلته بيان د عظمتِ شان د رسول الله ﷺ دے۔

۳- مخکښې د يهوديانو د زړونو زيغ ذکر شو نو دلته د دغه زيغ آثار بيانيږي۔

٤- مخکښې سورت کښې ترغيب وو جهاد ته، نو په دے سورت کښې زجر دے مانعينو د جهاد ته۔

۵- مخکښې سورت کښې د قتال د صفونو ذکر وو، نو دلته د جُمعے د مانځه ذکر دے چه

په هغې کښې د صفونو د جوړولو طریقه زده کیږي.
٦ – مخکښې سورت کښې د عمل په پریخودو زجر وو نو دلته وائي چه څوك په علم عمل نکوي نو د هغه مثال خو د خر په شان دے.

## دعوی او مقصد د سورت

١ – بَيَانُ شَانِ الرَّسُوْلِ ﷺ وَاحْتِيَاجُ النَّاسِ اِلَيْهِ.
د رسول الله ﷺ عظمتِ شان او ټول انسانان هغه ته په طاعت او په هدایت او جنت ته په داخلیدو کښې او د الله د رضا په حاصلیدو کښې محتاج دي.
نو ورسره به دا خبره ملګرے کوي چه (فَلَا يَجُوْزُ الْاِعْرَاضُ عَنْهُ) نو ددے نبي نه اعراض مهٔ کوئ او ددهٔ د سنتو نه مخ مهٔ اړوئ بلکه دا کلك راونیسئ.
دا موضوع د اول او د آخر د سورت نه معلومیږي.
٢ – زمونږ شیخ محترم (رستمي رحمه الباري) لیکي چه ددے سورت موضوع ده :
رد په درے دعوو د یهودیانو، سرهٔ د رد د شرك في العلم او في التصرف نه.
دے کښې چه چا د توحید بیان یا د مباهلے موضوع ګرځولے ده، نو دا ورسره پوره سمون نهٔ خوري.

## د سورت شان نزول :

د رسول الله ﷺ په ابتدائي زمانه کښې به د جُمعے په ورځ اول مونځ کیدو بیا به خطبه وئیل کیده لکه د اخترونو په شان. نو بعض نوي مسلمانانو ته د شریعت بعض احکام معلوم نهٔ وو، نو دحیة الکلبي د شام نه د بنجاري سامان راوړو او د بنجاریانو د عادت مطابق ئے خلقو ته یو ډول ووهلو چه هغوي خبر کړي چه د تجارت سامان راورسیدو، که څوك ئے اخلي نو حاضر دے شي،
نو په یوه موقعه کښې رسول الله ﷺ د جُمعے په خطبه کښې لګیا دے چه په دغه وخت دحیه راورسیدو او ډول ئے ووهلو، نو عام ملګري د رسول الله ﷺ نه پاڅیدل د مسجد نه ووتل دے دپاره چه څه سامان ترے واخلي، رسول الله ﷺ ورته ګوري، او هیڅ ورته نهٔ وائي چه کینئ، دے کښې حکمة وو څکه چه رسول الله ﷺ به په موقعه او محل باندے بیان کولو چه کله به بیان اثر کولو، پدے کښې مشران صحابه کرامؓ پاتے شول او رسول الله ﷺ

بیان ختم کړو،

نو الله تعالیٰ دا سورت نازل کړو، او مؤمنانو ته ئے ادب ورکړو چه د جُمعے ورځ ده، تاسو باندے ددے نبی خطبه آوریدل ضروری دی،

نو په اول کښې ئے خپله لوئی بیان کړه چه د هغه لوی الله خبره خو آوریدل پکار دی، او بل دا چه دا د الله رسول دے، عام سړے نهٔ دے، بیا په دے رسول کښې شپږ کمالات وګوره او په یهودو باندے د وَهُم دفع کولو دپاره رد کوی، او بیا ورته فرمائی چه په تاسو مرګ راروان دے د هغے دپاره تیارے وکړئ،

بیا ئے د جُمعے آداب راوړی چه د جُمعے په ورځ د رسول الله ﷺ بیان شروع وی نو ددے نه مهٔ آوړئ، دین ډیر قیمتی شے دے، تجارت او لهویاتو پسے وریدل مناسب نهٔ دی، او رزق د الله سره دے، تهٔ دین غوره کړه الله به درله فراخه رزق درکړی۔ د رزق خپل وختونه شته، د جُمعے مونځ چه وشو بیا د الله فضل (رزق) طلب کوئ۔

او بیا هم د الله د ذکر نه غفلت مهٔ کوئ۔ د دین په وخت کښې د دنیا کار مهٔ کوئ، ولے د دنیا دپاره بل وخت نشته؟!۔

## خلاصه د سورت :

په اول کښې ذکر د توحید دے په ذکر د تسبیح سره بیا د رسول الله ﷺ رشتین والے په درے آیتونو کښې، بیا رد دے په اوله دعوه د یهودیانو باندے چه په فخر سره ئے ویل چه مونږ علماء یو او تاسو امیان یئ،

د هغے جواب په (۵) آیت کښې دے چه بے عمله عالم خو په شان د خر وی۔ دویم رد دے په دویمه دعوه باندے، دوی فخر کولو چه مونږ د الله اولیاء یو نو په درے آیتونو کښې په دعوت د مباهلے سره دوی ته جواب شوے۔

دریم دوی د یوم السبت په وجه فخر کولو نو د هغے جواب ورته وشو په ذکر د عظمت د ورځے د جُمعے په خطبے او مانځه سره، بیا ترغیب دے حلال کسب ته روستو د فارغ کیدو د مانځه د جمعے نه او ترغیب دے آوریدو د خطبے ته او په دغه وخت کښې د دنیا مال او تجارت پریخودل۔

| |
|---|
| يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي |
| پاکي وائي الله لره هغه څهٔ چه په آسمانونو کښې دي او هغه څهٔ چه په |
| الْأَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿۱﴾ |
| زمکه کښې دي بادشاه دے، ډير پاك دے، زورور دے، حکمتونو والا دے۔ |
| هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ |
| خاص الله هغه ذات دے چه راوے لیږلو په امیانو (آن پړو) کښې رسول د جنس د دوی نه |
| يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ |
| لولی په دوی باندے آیتونه د هغهٔ او پاکوی دوی لره او خودنه کوی دوی ته |
| الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿۲﴾ |
| د کتاب او د سنت اګرکه وو دوی مخکښې په ګمراهئ ښکاره کښې۔ |

**تفسیر**: ددے آیت تفسیر مخکښې سورت کښې بیان شو۔ د الله صفتونه ئے راوړل دپاره د اظهار د عظمت د الله تعالیٰ او دپاره د تمهید د روستو خبرے چه دا رسول داسے لوی الله رالیږلے دے نو ددهٔ خبره وړه مهٔ ګنړئ۔

الْمَلِكِ : پدے کښې اشاره ده چه الله ملك (بادشاه) دے نو د رعیت (چه دا امت دے) د اصلاح دپاره ئے آخری رسول راولیږلو۔

او الْقُدُّوسِ : کښې اشاره ده چه د مشرکانو د بدو نسبتونو نه الله تعالیٰ پاك دے، په بندګانو کښې چه څنګه تصرف کوی نو په هغهٔ به اعتراض نهٔ وی۔

الْعَزِيزِ: هغه زور دے په هغهٔ څوك غالب نشی راتللے۔

الْحَكِيمِ: هغه چه کوم کار کوی په هغے کښې ډیر حکمتونه وی چه کله به د بندګانو ذهن ورِ رسیږی او کله نهٔ۔

هُوَ الَّذِيْ: پدے آیت کښې د رسول الله ﷺ عظمتِ شان بیانیږی او دا چه د بندګانو دهٔ ته ډیر زیات احتیاج دے، دا څومره قیمتی انسان دے چه ددهٔ د رالیږلو نه مخکښې عرب په

كمراهئ كښې پراته وو.
فِي الْأُمِّيِّينَ: د ابن عباس ﷺ وينا ده چه د [اُمِّيُّوْنَ] نه مراد تمام عرب دي. برابره خبره ده كه هغوئ ليكل لوستل پيژندلے شي او كه نهٔ، ځكه چه د قرآن كريم نه مخكښې هغوئ ته هيڅ آسماني كتاب نهٔ دے وركړے شوے. او د نبي كريم ﷺ (نالوستے) كيدل د هغهٔ د نبوت د رشتين والي دليل وو. الله تعالىٰ امتِ محمديه ته خپل اِحسان يادوي فرماني چه هغهٔ عربو دپاره (چه هغوئ اَن پړ هـ، نالوستي وو) د همدوئ نه يو نالوستے نبي را اوليږلو، چه هغه د نالوست كيدو باوجود د الله آيتونه لولي او دوئ ته ئے آوروي، د هغوئ بدنونه ئے د ګندګيو او خيرونه، او د هغوئ روحونه ئے د غلطو عقائدو او خبيثو اخلاقو نه پاكول، او هغوئ له ئے د قرآن او سنت تعليم وركولو.
پدے آيت كښې اول د رسول الله ﷺ درے صفتونه ذكر دي، بيا د هغهٔ درے كارونه. اول فِي الْأُمِّيِّينَ: دا لفظ صريح نص دے پدے خبره چه نبي كريم ﷺ عربي دے، نو څوك چه د هغهٔ په عربيت كښې شك وكړي يا انكار وكړي نو كافر كيږي.
رَسُولًا مِّنْهُمْ: يعني رسول دے او د جنس د دوئ نه دے، يعني بشر دے او دا هم صريح نص دے په رسالت او بشريت د نبي كريم ﷺ باندے نو ددے نه انكار يا پدے كښې شك كول هم كفر دے لكه دا خبره تفسير روح المعاني نقل كړيده.
اُوس د هغهٔ درے كارونه بيانوي:
يَتْلُوْ عَلَيْهِمْ: د تلاوت د آيتونو نه مراد د قرآن كريم بيان او قرآن ته دعوت وركول دي نو دا مرتبه د دعوت او د تبليغ ده، او نصاب ددے آيتونه د قرآن كريم دي.
دويم كار: ويزكيهم: ددے نه مراد د اعمالو او اخلاقو طريقه خودل، او د هغے اوقات، مقادير، كيفيات او هيئات خودل، او دا مرتبه د عمل كولو او د عمل خودلو ده چه هغه مقصد د دعوت او د تعليم دے، نو ددے وجه نه ئے تزكيه په مينځ د دعوت او د تعليم كښې ذكر كړه چه دا اصل مقصد دے، او ديته علم التزكيه او علم الاخلاق وئيلے كيږي.
او دے ته د تصوف او د صوفيت نوم كيخودل صحيح نهٔ دي ځكه چه شرعي نوم پريخودل او غير منقول نوم استعمالول د شريعت خلاف كار دے.
دريم كار: وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ: د قرآن او د حديث خودنه كول. دا مرتبه د تعليم او د تدريس ده او نصاب د هغے قرآن كريم او حديث د رسول الله ﷺ دي.

وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ : یعنی د عربو خلق د نبی کریم ﷺ د رالیږلو نه مخکښ په ډیره لویه ګمراهئ کښ پراته وو، د بتانو عبادت به ئې کولو، او د اُوچتو اخلاقو او ښائسته آدابو نه بیخی بے برخے شوی وو، دے وجے نه هغوئ د یو نبی په ذریعه هدایت او رهنمائی ته سخت محتاج وو. په دغه وخت کښ الله تعالیٰ په دوئ مهربانی وکړه او نبی کریم ﷺ ئے را اولیږهٔ.

او دا ښکاره دلیل دے چه بغیر د ایمان او د تابعدارئ د رسول نه ټولے لارے د ګمراهئ دی. دارنګه د هرے ګمراهئ نه د نجات ذریعه صرف تابعداری د قرآن او د سنت د نبی کریم ﷺ ده.

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په عربو کښ د نبی کریم ﷺ پیدا کیدل، ددے خبرے منافی نهٔ دی چه هغه ټولے دنیا والو دپاره نبی جوړیدو سره رالیږلے شوے وو، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورة الاعراف په (۱۵۸) آیت کښ فرمایلی دی :

﴿ قُلْ يَآ أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيْعًا ﴾ (اے زما نبی ! تهٔ اووایه چه اے خلقو ! زهٔ تاسو ټولو دپاره د الله رسول یم).

او د سورتِ انعام په (۱۹) آیت کښ ئے فرمایلی دی : ﴿ لِأُنْذِرَكُمْ بِهِ وَمَنْ بَلَغَ ﴾ (دے دپاره چه زهٔ ددے قرآن په ذریعه ناسو او هغه ټول خلق د الله نه اوېروم چه هغوئ ته زما پیغام اورسی).

| وَآخَرِيْنَ مِنْهُمْ لَمَّا |
|---|
| او په نورو کسانو کښ (ئے رالیږلے دے) چه د دوی (یعنی امیانو) نه دی چه لا نهٔ دی |
| يَلْحَقُوْا بِهِمْ وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۳﴾ |
| پیوسته شوی د دوی سره (په مرتبه او زمانه کښ) او هغه زورور حکمتونو والا دے. |
| ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاءُ وَاللهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۴﴾ |
| دا فضل د الله دے ورکوی ئے چا له چه اُوغواړی او الله خاوند د فضل لوئی دے. |

**تفسیر** : په دے آیت کښ [آخَرِيْنَ] د دویم آیت په [الْأُمِّيِّيْنَ] کلمه باندے عطف دے.

(۱) یعني الله تعالیٰ نبي کریم ﷺ د هغه عربو دپاره نبي جوړ کړو او را وې ولیږلو کوم چه د نبي اکرم ﷺ په زمانه کښې موجود وو، او هغه عربو دپاره هم چه هغوئ د صحابه کرامو نه پس قیامته پورې پیدا کیږي.

(۲) بعضِ مفسرینو د ﴿وَآخَرِينَ مِنْهُمْ﴾ نه مراد عجم اخستي دي کوم چه په اسلام کښې داخل شول او قیامته پورې داخلیږي، او وئیلي ئې دي چه عجمي مسلمانان اګرچه عرب نۀ وو، لیکن اسلام راوړو نه پس د همدوئ نه شول، او یو امت جوړ شو.

الله تعالیٰ د سورتِ توبه په (۷۱) آیت کښې فرمایلي دي: ﴿وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ﴾ (مومنان سړي او مومنانې ښځې د یو بل دوستان وي).

امام احمدؒ او بخاريؒ او مسلمؒ او نورو د ابو هریره ﷺ نه روایت کړی دی چه مونږ د نبي کریم ﷺ خواته ناست وو چه سورة الجمعه نازل شو. نبي ﷺ چه کله خلقو ته لوستل شروع کړل او ﴿وَءَاخَرِينَ مِنْهُمْ لَمَّا يَلْحَقُوا بِهِمْ﴾ ته اورسیدلو، نو ما تپوس وکړو چه اې د الله رسوله! دا کوم خلق دي چه لا اوسه پورې مونږ سره ملاؤ شوي نۀ دي، نو نبي ﷺ خپل لاس د سلمان فارسي ﷺ په بدن باندې کیښودلو او وې فرمایل چه:

(وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ كَانَ الْإِيمَانُ بِالثُّرَيَّا لَنَالَهُ رِجَالٌ مِنْ هَؤُلَاءِ)

په هغه ذات مې دې قَسَم وي چه د هغۀ په لاس کښې زما ساه ده، که چرې ایمان په ثُریا (ستورو) کښې هم وي، نو دا به ددۀ د قوم نه څۀ خلق بیامومي.

بخاري: (٤٨٩٧) والترمذی (٣٣١٠)

او پدې کښې لوی زیرې دې د هغه ټولو محدثینو او فقهاؤ دپاره چه هغوی عجم وو او د الله تعالیٰ د دین خدمت ئې کړیدې په راجمع کولو د حدیثونو او د هغې په تشریحاتو.

حافظ ابن کثیرؒ لیکي: دا آیت دلیل دې چه دا سورت مدني دې، او رسول الله ﷺ تمامو انسانانو دپاره نبي رالیږلې شوې دې.

او پدې کښې اشاره ده چه د رسول الله ﷺ رالیږلو ته عرب هم محتاج وو، او دارنګه د ټولې دنیا انسانان ځکه چه ددۀ نه بغیر جنت ته او د الله رضا ته نشي رسیدلې، دا هر څۀ د هغه په تابعدارئ سره حاصلیږي.

او دا آیت ښکاره دلیل دې په ختم نبوت باندې ځکه چه الله تعالیٰ دلته د آخري نبي رالیږل په دوه قسمه خلقو کښې وخودل، یو عرب او دویم (آخرین) نور خلق یعني عجم

نو رسول الله ﷺ تر قیامته پورې د عربو او عجمو نبي دے، د هغهٔ نه روستو بل هيڅ نبي نشي راتللے، که څوك ئې دعوه كوي سو چه دروغجن به وي. د نمر راختلو نه روستو شمعې او ډيوے او بيټرئ ته ضرورت نهٔ وي.

٢- يا وَآخَرِيْنَ عطف دے په ضمير د (وَيُعَلِّمُهُمْ) باندے ځکه چه د روستنو خلقو مُعلم هم په اصل کښې رسول الله ﷺ دے اګرکه په واسطه سره دے. اوله توجيه غوره ده.

لَمَّا يَلْحَقُوْا بِهِمْ: ١- فِي الزَّمَانِ. په زمانه کښې هم د هغوي پورې نهٔ دي پيوسته شوي. ٢- فِي الْفَضْلِ. په فضيلت کښې د هغوي سره نهٔ دي پيوسته شوي.

ذٰلِكَ فَضْلُ اللهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاءُ: يعني د نبي كريم ﷺ راليږل، د هغهٔ او د هغهٔ د امت دپاره عظيم نعمت وو، چه دے سره الله تعالىٰ هغه كامياب كړو او د هغے په ذريعه الله تعالىٰ د هغهٔ امت له عزت او شرافت ور اوبخښولو.

صاحب د محاسن التنزيل ليکي چه د مدينے يهودو ته د نبي كريم ﷺ د نبي كيدو پوره يقين وو، ليكن صرف د حسد او عناد د وجے نه ئې انكار وكړو چه دا عزت او شرافت د هغوئ په ځاى عربو ته ولے ملاؤ شو.

| مَثَلُ الَّذِيْنَ حُمِّلُوا التَّوْرَاةَ ثُمَّ لَمْ يَحْمِلُوْهَا |
|---|
| مثال د هغه كسانو چه بار كړے شوے وو په هغوي باندے تورات بيا ئې پورته نكړو |
| كَمَثَلِ الْحِمَارِ يَحْمِلُ أَسْفَارًا بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ |
| هغے لره، پشان د مثال د خر دے چه پورته كوي كتابونه بد دے مثال د قوم هغو |
| كَذَّبُوْا بِآيَاتِ اللهِ وَاللهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِيْنَ ﴿٥﴾ |
| چه دروغژن ئې اُوګڼړل آيتونه د الله او الله هدايت نهٔ كوي قوم ظالمانو ته. |

**تفسير**: دلته په يهوديانو باندے رد كوي پدے كښې دوه فائدو ته اشاره كوي، يو پدے كښې تحذير دے مونږ ته چه يهوديانو ته الله تعالىٰ تورات وركړو او هغوي پرے عمل ونكړو، نو الله ترے څنګه خرهٔ جوړ كړل، نو دغه شان تاسو ته هم الله تعالىٰ ښكلے رسول راوليږلو كه تاسو د هغهٔ تابعداري ونكړه نو دغه شان به شئ.

ځوك چه د نبي کریم ﷺ تابعداري نهٔ کوي هغه د خرهٔ سره مشابه دے، ددے وجه نه رسول الله ﷺ به هم دا خبره په مثال کښې ورکوله:

[مَثَلُ الَّذِیْ یَتَکَلَّمُ یَوْمَ الْجُمُعَةِ وَالْاِمَامُ یَخْطُبُ کَمَثَلِ الْحِمَارِ یَحْمِلُ اَسْفَارًا]

مثال د هغه سړي چه د امام د خطبے په دوران کښې خبرے کوي دا په شان د خر دے چه کتابونه ئے بار کړي وي۔

(احمد: ۲۰۳۳ اسناده فیه مجالد وقد تکلم علیه من قبل حفظه، وقال الحافظ في الفتح: وله شاهد قوی عن ابن عمر موقوفا۔ (فتح الباری ۲/۴۸۱) وقال البوصیری: وله شواهد. (اتحاف الخیرة المهرة ۲/۲۸٦) وقال ابن کثیر اسناده حسن وله شواهد (ارشاد الفقیه ۱/۲۰۱)

دا تشبیه رسول الله ﷺ ددے آیت نه اخستے ده۔ نو اے ایمان والو! د یهودو د حال نه ځان وساتئ چه د انبیاؤ تابعداري نهٔ کوي۔

(۲) دویم دا آیت جواب د سوال دے چه تاسو مونږ ته څنګه ګمراهان وایئ: ﴿وَاِنْ کَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِیْ ضَلٰلٍ مُّبِیْنٍ﴾ حال دا چه یهودیان موجود دي چه دوئ علماء دي او د الله کتاب تورات ورکړے شوے وو، نو کارخانے د علم موجود دي. بیا دوي څنګه په ګمراهئ کښې شول؟ او دارنګه هرکله چه داسے علماء موجود دي،

نو بیا د رسول الله ﷺ رالیږلو ته څه ضرورت وو؟ یا یهودیانو وویل چه تاسو اُمیین یئ او مونږ علماء او اهل کتاب یو نو مونږ ستاسو نه غوره یو، لهٰذا مونږ باندے لازم نهٔ ده چه په رسول اُمي باندے ایمان راوړو،

نو الله جواب ورکړو چه د یهودیانو حیثیت خو دغه دے چه هسے کتاب ورته ورکړے شویدے لیکن په هغے ئے ځان نهٔ دے پوهه کړے، او د هغے مطابق هیڅ عمل نکوي نو دوئ خو د خرو مشابه دي، هیڅ غوره والے ورله نشته۔

د یهودو نه اُوسه پورے هدایت نهٔ وو خوړ شوے بلکه یهود دنیا پرست خلق وو، خلقو ته ئے دین نهٔ بیانولو بلکه د هغوی نه به ئے مالونه جمع کول۔

حُمِّلُوا التَّوْرٰىةَ: (بار کړے شوے وو په دوي باندے تورات) اَیْ کُلِّفُوْا بِالْعَمَلِ بِهَا۔ یعني دوئ د تورات په عمل باندے مکلف کړے شوي وو۔

لَمْ یَحْمِلُوْهَا: (هغه ئے پورته نکړو) اَیْ لَمْ یَعْمَلُوْا بِهَا۔ یعني عمل ئے ونکړو په هغے باندے۔

كَمَثَلِ الْحِمَارِ: یهودیانو تورات اولوستلو او هغه ئې یاد کړو، لیکن په هغې باندې ئې پوره عمل ونهٔ کړو، په دې طریقه چه په هغې کښې د نبي کریم ﷺ د پیغمبرئ خبر ورکړې شوې وو، د هغهٔ علامات بیان شوي وو، او په هغهٔ باندې د ایمان راوړو تاکید شوې وو، او دوئ ته کامل یقین وو چه هغه د الله تعالیٰ رشتینې نبي دې، لیکن خالص د حسد او عناد د وجې نه ئې ایمان رانهٔ وړو، دې وجې نه الله تعالیٰ هغوئ د خرهٔ سره مشابه کړل چه د هغوئ په شاګانو باندې د علومو او فنونو لوی لوی کتابونه بار شوي وو، چه ددې بوج خو خرهٔ محسوسوي، او ددې لاندې دباوېږي، لیکن په دې کښې د پرتو حقائقو او معارفو نه بې برخې او په دې باندې د عمل کولو نه محروم وي۔

أَسْفَارًا: جمع د سِفْرٌ ده، لوی کتاب ته وئیلې شي۔ او سفر ورته ځکه وائي چه سفر کښې معنیٰ د ښکاره والي ده، او کتاب هم مقاصد راښکاره کوي کله چه ولوستلې شي۔

میمون بن مهرانؒ وائي: خر پدې نهٔ پوهېږي چه په دهٔ باندې کتابونه بار شویدي او که ګندګي، نو دغه شان یهودیان هم دي۔ (چه د خپل علم هیڅ قدر نهٔ پیژني) نو هر هغه څوك چه په خپل علم باندې عمل نکوي نو دا د هغهٔ مثال دې۔

مفسرین لیکي: وَهٰذَا الْمَثَلُ يَلْحَقُ مَنْ لَّمْ يَفْهَمْ مَعَانِيَ الْقُرْآنِ وَلَمْ يَعْمَلْ بِمَا فِيهِ وَأَعْرَضَ عَنْهُ إِعْرَاضَ مَنْ لَّا يُحْتَاجُ إِلَيْهِ۔

او دا مثال هر هغه چاته هم رسېږي چه د قرآن کریم په معانیو باندې ځان نهٔ پوهه کوي، او پدې کښې په موجودو احکامو عمل نکوي، او ددې نه د هغه چا په شان مخ اړوي چه هغه ورته هیڅ حاجت نهٔ ګڼري۔

ددې وجه نه میمون بن مهرانؒ به فرمایل:

[يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ! اِتَّبِعُوا الْقُرْآنَ قَبْلَ أَنْ يَّتَّبِعَكُمْ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ]

اې قرآن والو! د قرآن تابعداري وکړئ مخکښې ددې نه چه قرآن تاسو پسې شي۔ (یعنی ستاسو بدې بیان کړي) بیا ئې دا آیت ولوستلو۔ (فتح البیان)

امام ابن القیم رحمه الله په خپل کتاب [اعلام الموقعین] کښې ددې آیت تفسیر بیانوي لیکي:

[وَهٰذَا الْمَثَلُ وَإِنْ كَانَ قَدْ ضُرِبَ لِلْيَهُودِ فَهُوَ مُتَنَاوِلٌ مِنْ حَيْثُ الْمَعْنٰى لِمَنْ حَمَلَ الْقُرْآنَ فَتَرَكَ الْعَمَلَ بِهِ، وَلَمْ يُؤَدِّ حَقَّهُ، وَلَمْ يَرْعَهُ حَقَّ رِعَايَتِهِ]

چه دا مثال اګر چه د یهودو دپاره بیان شوے، لیکن دا په هر هغه حاملِ قرآن باندے چسپانیږی چه هغه حفظ د قرآن کوی، (ختمونه ئے کوی لیکن هیڅ تدبر او فکر پکښې نهٔ کوی،) او په دے باندے عمل نهٔ کوی، او ددے پوره حق نهٔ اداء کوی. او ددے لائق رعایت نهٔ کوی (یعنی پدے باندے فیصلے نهٔ کوی او ددے په مطلب ځان نهٔ پو هه کوی)

بِئْسَ مَثَلُ الْقَوْمِ: یعنی کومو یهودو چه د الله د آیتونو تکذیب کړے دے، د هغوئ ډیر زیات خراب مثال دے، یعنی د دوئ حال د هغه خرو پشان دے چه په هغوئ باندے کتابونه بار شوی وی.

الْقَوْمَ الظَّالِمِيْنَ: پدے کښې اشاره ده چه داسے عالمان خو ظالمان دی او د توفیق د هدایت نه محروم دی.

| قُلْ يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ هَادُوْا إِنْ زَعَمْتُمْ أَنَّكُمْ أَوْلِيَاءُ لِلّٰهِ |
|---|
| اُووایه! اے هغه کسانو چه یهودیان دی که ګمان کوئ تاسو چه تاسو دوستان د الله یئ |
| مِنْ دُوْنِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِيْنَ ﴿٦﴾ |
| سوئ د نورو خلقو نه نو آرزو وکړئ د مرګ که چرته تاسو رشتینی یئ. |
| وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ |
| او دوی به آرزو د مرګ اُونکړی هیچرے په سبب د هغے عملونو چه لیږلی دی |
| أَيْدِيْهِمْ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِالظَّالِمِيْنَ ﴿٧﴾ قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِيْ |
| لاسونو د دوی او الله پو هه دے په ظالمانو. تهٔ اُووایه! یقیناً هغه مرګ |
| تَفِرُّوْنَ مِنْهُ فَإِنَّهٗ مُلَاقِيْكُمْ |
| چه تیخته کوئ تاسو د هغهٔ نه نو یقیناً هغه ملاویدونکے دے ستاسو سره |
| ثُمَّ تُرَدُّوْنَ إِلٰى عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ |
| بیا به واپس کړے شئ تاسو هغه ذات ته چه پو هه دے په هر پټ او ښکاره باندے |

| فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ |
| --- |
| پس خبر به درکړي تاسو ته په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ. |

**تفسیر** : دا په دویمه دعوىٰ د یهودیانو باندے رد دے چه دوی وئیلی وو چه مونږ د الله خامن او دوستان یو، او د هغهٔ محبوبان یو. لکه څنګه چه د سورۂ المائده په (۱۸) آیت کښ راغلی دی: ﴿نَحْنُ أَبْنَاءُ اللهِ وَأَحِبَّاؤُهُ﴾ بیا تاسو زمونږ بدی ولے بیانوئ او د خرو سره مو مشابه کوئ؟. نو الله تعالیٰ په دوئ باندے رد کوی په دعوت ورکولو مباهلے ته.

یعنی د دوئ دعوه د نبی کریم ﷺ په ژبه دروغجنه ثابتوی چه که تاسو ځانونو ته رشتینی وایئ چه تاسو د الله دوستان یئ او مؤمنان په باطله ګنړئ،

نو راځئ چه مباهله وکړو، چه څوك په حقه دی او څوك په باطله، او په دروغجنه ډله باندے د مرګ ښیرے وکړو.

لیکن یهودیان دے کار ته هیڅکله تیار نشول، نو معلومه شوه چه دوئ په باطله وو.

او ددے دویم تفسیر دا دے چه که ستاسو ګمان رشتینے وی، نو د الله مخے ته خپله آرزو څرګنده کړئ دے دپاره چه هغه تاسو ډیر زر آخرت ته اُورسوی، او په جنت کښ مو داخل کړی دے دپاره چه د دنیا او ددے د غمونو نه نجات بیامومئ. لیکن یهودو ته ځان معلوم دے چه مونږ د مرګ سره سمدست اُور ته روان یو نو څکه د مرګ آرزو څه چه د مرګ نوم هم په خوله نهٔ اخلی. او ددے آیت تفسیر مَا لَهَا او مَا عَلَيْهَا خبرے د سورة البقره په آیت کښ ذکر شویدی.

## شان نزول

مُقاتل بن سلیمانؒ په خپل تفسیر کښ نقل کړیدی چه نبی کریم ﷺ د مدینے یهودیانو ته د اسلام دعوت دپاره خط ولیکلو نو د مدینے یهودیانو د خیبر یهودیانو ته خط ولیکلو چه محمد ګمان کوی چه دے نبی دے، او دے مونږ او تاسو ته خپل دین طرفته دعوت راکوی نو که تاسو ددهٔ تابعداری غواړئ نو مونږ ته ددے وضاحت ولیکئ او که داسے نهٔ وی نو تاسو او مونږ په یو دین (یوه خبره) باندے یو چه په محمد به ایمان نهٔ لرو. او نهٔ به ئے تابعداری کوو. نو پدے کښ د خیبر یهودیان په غضب کښ راغلل او د مدینے یهودیانو ته ئے ډیر ناکاره خط ولیکلو او دا ئے پکښ ولیکل :

((ابراهیم (علیه السلام) صدیق او نبی وو، او د هغهٔ نه روستو اسحاق (علیه السلام) صدیق نبی وو، او د اسحاق نه روستو یعقوب (علیه السلام) صدیق نبی وو او د یعقوب دولس ځامن وو او د هر یو ځوی نه د انسانانو لوی امت پیدا شوے، بیا د دوی نه روستو موسی علیه السلام راغلے، او د موسیٰ نه روستو عزیر علیه السلام وو نو موسیٰ علیه السلام به تورات د تختو نه لوستلو او عزیر علیه السلام به په یادو لوستلو او که هغه د الله ځوی نهٔ وے (العیاذ بالله) او د هغهٔ نبی او صفی (غوره بنده) نهٔ وے نو دا کمال به ئے ورته نهٔ ورکولے۔

نو مونږ او تاسو د هغهٔ د خاندان نه یو او د هغه چا د خاندان نه یو چه الله تعالیٰ خپل خلیل جوړ کړے وو او د هغه چا د خاندان نه یو چه الله ورسره خبرے کړیدی نو مونږ په نبوت او رسالت باندے د محمد (ﷺ) نه ډیر حقدار یو، او په جزائر العرب کښې کله انبیاء راغلی دی؟ مونږ هیڅکله نهٔ دی آوریدلی چه د عربو نه یو نبی راغلے وی سوئ ددے سړی نه چه تاسو پرے گمان لرئ. سره ددے نه چه مونږ ددهٔ تذکره په تورات کښې موندهٔ کوو، نو که تاسو ددهٔ پسے روان شوئ نو ذلیله او بے عزته به مو کړی حال دا چه مونږ د الله ځامن او د هغهٔ محبوبان یو. نو دا آیت نازل شو او الله تعالیٰ خپل نبی ته وفرمایل: (قل یا ایها الذین هادوا)) الخ.

وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗ: الله تعالیٰ خبر ورکړے دے چه دوئ د خپل مرگ آرزو هیڅ کله نهٔ کوی، ځکه چه دوئ ته معلومه ده چه دوئ کوم گناهونه کړی دی هغه جهنم ته رسوونکی دی، او الله د دوئ د جرمونو نه زیات خبر دے۔

په سورت بقره کښې د دوی نه نفی د مباهلے په ډیر تاکید سره کړیده چه (لَنْ) حرف ئے راوړو ځکه چه هلته د جنت دعوئ دوئ په تاکید د (لَنْ) سره کړے وه، نو جواب د تاکید هم په تاکید سره مناسب وی۔

قُلْ إِنَّ الْمَوْتَ الَّذِیْ: نو اُوس ترغیب ورکوی چه هر کله چه تاسو مباهله نشئ کولے، او د مرگ نه یریږئ نو د مرگ نه خو خلاصیدے نشئ، یعنی که د مباهلے د نهٔ کولو د وجه نه په تاسو فی الحال مرگ رانغے خو یوه ورځ به دریاندے ضرور راځی، نو د هغے دپاره تیارے وکړئ په تابعداریٔ د رسول الله ﷺ باندے،

او پدے کښې په یهودو ځکه رد کوی چه دوی د رسول الله ﷺ تابعداری نهٔ کوله، او د هغهٔ په خلاف ئے ځانونه غوره گڼړل۔

او پدے آیتونو کښې دے ته هم اشاره ده چه یهود هم د رسول الله ﷺ راتللو ته محتاج دی، دوئ چه د غوره والی کومے دعوے کوی دا ټولے غلطے دی۔

تَفِرُّوْنَ مِنْهُ: د مرګ نه خو هر سړے تیختنه کوی، خو داسے تیختنه کول چه د الله حکم پرے مات کړی ناروا ده۔ لکه دے کښې دا هم داخلیږی چه یو تن د قتال د میدان نه د مرګ د یرے د وجه نه تیختنه کوی، او بیا جهاد نهٔ کوی، یا یوه علاقه کښې طاعون بیماری خوره شویده او دے د مرګ د یرے نه د هغه کلی نه تیختنه کوی۔

فَإِنَّهُ مُلَاقِيْكُمْ: یعنی تاسو خو د مرګ نه تیختنه کوئ او هغه خو ستاسو مخے ته راتلونکے دے، نو د هغهٔ نه تیختنه کول هیڅ فائده نهٔ ورکوی۔

ثُمَّ تُرَدُّوْنَ: یعنی بیا به د قیامت په ورځ د الله مخامخ اُودرولے شئ، چه هغه به تاسو ته ستاسو د ناکاره کوبیو خبر درکوی، او د هغے پوره پوره بدله به درکوی۔

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِذَا نُوْدِيَ لِلصَّلَاةِ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا |
| اے ایمان والو ! کله چه آواز اُوکړے شی دپاره د مانځه د ورځے د جُمعے نو جلتئ وکړئ |
| إِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَذَرُوا الْبَيْعَ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ |
| ذکر د الله (خطبے) ته او پریدئ سوداګری (اخستل خرڅول) دا غوره ده تاسو لره |
| إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٩﴾ فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانْتَشِرُوْا فِي الْأَرْضِ |
| که تاسو پو هیږئ۔ پس کله چه ادا کړے شی مونځ نو خوارهٔ شئ په زمکه کښې |
| وَابْتَغُوْا مِنْ فَضْلِ اللهِ وَاذْكُرُوا اللهَ كَثِيْرًا لَّعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿١٠﴾ |
| او اُولټوئ د فضل د الله نه او یادوئ الله ډیر، دے دپاره چه کامیاب شئ۔ |
| وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا نِانْفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوْكَ قَائِمًا |
| او کله چه اُووینی دوی تجارت یا تماشه واوړی هغے ته او پریدی تا لره ولاړ |
| قُلْ مَا عِنْدَ اللهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ |
| تهٔ اُووایه ! هغه څهٔ چه د الله سره دی غوره دی د تماشو او د تجارت نه (او هغه په |

وَاللّٰهُ خَيْرُ الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱﴾

عبادت حاصلیږي) او الله تعالیٰ غوره دے د رزق ورکونکو نه.

**تفسیر:**

ربط :

۱- مخکښې د رسول الله ﷺ عظمتِ شان او د یهودیانو بدی بیان شوه، نو اُوس فرمائي چه دا نبی کوم بیان تاسو ته کوی نو دا هم سپك او معمولي مهٔ ګنړئ، بلکه دده بیان ته غوږ کیږدئ. خاصکر د جُمعے په ورځ دده خصوصیت دے. ځکه چه پدے کښې هدایت دے.

۲- دا رد دے په دریمه دعوه د یهودیانو چه دوی فخر کولو چه زمونږ دپاره د خالي د ورځے تعظیم شته، او تاسو د هغے تعظیم نهٔ کوئ؟

حاصل د رد دا دے چه زمونږ دپاره د یوے ورځے تعظیم شته چه هغه د جُمعے ورځ ده، او دا د الله تعالیٰ د طرفنه انتخاب دے، او ستاسو ورځ د خالي خو ستاسو خپل انتخاب دے، او بیا دریاندے الله تعالیٰ د هغے تعظیم فرض کړولکه په سورة نحل (۱۲٤) آیت کښې ذکر شویدی.

۳- فخر الدین رازیؒ فرمائي: یهودیانو د دنیا د خوندونو نه د برخور کیدو دپاره منډے وهلے، او مومنانو هم اخستل او خرڅول د دنیا د سازو سامان حاصلولو دپاره کول، دے وجے نه الله تعالیٰ دوئ له تنبیه ورکړه چه کله دوئ د جُمعے اذان واوری، نو د الله د یاد یعنی د مانځه دپاره دے جلتي وکړي چه دا د آخرت سامان دے، دے دپاره چه د یهودو د مشابهت نه بچ شی.

مفسرینو لیکلي دی چه بعضِ مدینے والا به په (بقیع الزبیر) کښې د جُمعے د اذان کیدو نه پس هم په اخستلو او خرڅولو کښې مشغول پاتے کیدل، نو الله تعالیٰ مسلمانانو ته حکم وکړو چه دوئ د جُمعے د مانځه خاص اهتمام وکړي، او د اذان کیدو نه پس خپل کاروبار پریدی، او جومات طرفته روان شی، دے دپاره چه د خطبے او د مانځه د فضائلو او برکاتو نه نفعمن شی او د زیاتی تاکید په توګه ئے وفرمایل چه د دنیا د کاروبار په پریښودلو او د جُمعے د مانځه دپاره په تللو کښې ستاسو دپاره هره ښیګړه ده، کاش تاسو دا خبره اوپیژنئ.

## د دویم اذانَ ایجاد

نُوْدِیَ لِلصَّلَاةِ: ددے نه مراد اذان د جُمعے دے کله چه امام په منبر باندے د خطبے دپاره کینی، ځکه چه د رسول الله ﷺ په زمانه کښې ددے نه سوئ بل اذان نهٔ وو، بیا ابوبکر او عمر او علی رضی الله عنهم په کوفه کښې په همدے طریقه روان وو، تردے چه کله د عثمان بن عفان دور خلافت راغلو او خلق زیات شو او کورونه وړاندے شول، نو هغه په زَوْرَاء بازار کښې بل اذان زیات کړو، نو کله چه به خلقو هغه اذان واوریدو نو هغوی به مسجد طرفته راروان شول تردے چه کله به خطیب په منبر باندے کیناستو نو دویم اذان به ئے وکړو.

دا اذان د ضرورت په وخت باندے یو خلیفه راشد شروع کړے وو، دے ته بدعت وئیل صحیح نهٔ دی ځکه چه رسول الله ﷺ فرمایلی دی:

[عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ مِنْ بَعْدِيْ]

(ابوداود فی السنة باب ٥ والترمذی فی العلم باب ١٦)

لیکن د کوم ضرورت په بنیاد چه شروع شوے وو نو د هغه ضرورت رعایت ضروری دے، اُوس کله چه هغه ضرورت ختم دے، خلقو سره گینتے، موبائلے شته، وختونه پیژندلے شی، دارنگه لاوډ سپیکرے موجودے دی، نو د رسول الله ﷺ او ابوبکر او عمر او علی رضی الله عنهم سنت باندے عمل کول ډیر لائق دی.

لهذا کوم خلق چه پدے زمانه کښې اول اذان کوی او هیڅ ضرورت ورته نشته، نو دوی نه د رسول الله ﷺ سنت او د خلفاءِ راشدینو سنت پاتے کیږی ځکه چه هغه ضرورت پدے زمانه کښې ختم دے، البته که داسے زمانه راشی چه د خلقو نه گینتے موبائلے، او لاوډ سپیکرے ختمے شی، نو بیا به د عثمان ﷺ په دے طریقه عمل کولے شی.

مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ: مِنْ په معنیٰ د فِيْ سره دے، لیکن په حرف د مِنْ راوړو کښې اشاره ده چه د ورځے د جُمعے په بعض حصه کښې دا اذان دے چه هغه وخت د ظهر دے، د ټولے ورځے د جُمعے اذانونه مراد نهٔ دی.

فَاسْعَوْا: یعنی کوشش وکړئ/ لاړ شئ: د الله ذکر ته چه هغه د جُمعے مونځ او خطبه ده. په سعی سره ئے تعبیر وکړو، او سعی په اصل کښې منډے وهلو ته وئیلے شی، او

مانخه ته د راتللو په وخت کښې د منډې وهلو نه په حدیث کښې منع راغلې ده، نو ددې نه مراد کوشش او اهتمام دې، یعنی د جُمعې د ورځې اهتمام به کولے شي، سهار نه به غسل کوي، صفائي به کوي، خوشبوئي به لګوي، او بیا به وختي مانخه ته ځي، او امام ته به نزدې کیني.

څوک چه د جُمعې د ورځې اهتمام نهٔ کوي بلکه نا وخته خطبې له راروان وي، په دکانونو یا خوبونو کښې مشغول وي، نو دې په (فَاسْعَوْا) امر باندې عمل کونکے نهٔ دې.

او حسن بصريؒ وائي چه دې ته سعی بِالْقَلْبِ وَالنِّيَّةِ وئیلے کیږي.لکه چه په سورة اسراء (١٩) او سورة نجم (٣٩) او سورة اللیل (٤) آیت کښې راغلې دي. یعنی په زړهٔ او نیت سره منډه ووهه.

وَذَرُوا الْبَيْعَ : د بیع نه مراد سوداګري ده، نو اخستل خرڅول دواړو ته شامل دې.

هرکله چه د خطبې په وخت کښې خرڅول ناروا دي، نو اخستل به خامخا ناروا وي، دارنګه که دکاندار او سوداګر سامان بند کړي نو اخستونکي به خود بخود بند شي.

او پدې کښې هر هغه شے هم داخلیږي چه تا د جُمعې د مانځه او خطبې نه غافل کوي، نو هغه به حرام وي لکه روستو ئې تعمیم کړیدې، ﴿ وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا ﴾.

لهو ډیر عام لفظ دې، پدې کښې خوب، دکانداري، هسې ګرزیدل، کرکټ، ډاکټري، داخلیږي، دا هر څه د جُمعې د خطبې په وخت کښې حرام دي.

د جُمعې مونځ هر ځای کیږي.

**فائده** : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا خطاب ټولو مؤمنانو ته دې، لږ وي که ډیر. په ښارونو کښې وي او که په کلو او باندو کښې وي. نو دا آیت ښکاره دلیل دې چه د جُمعې مونځ دپاره هغه شرطونه ضروري نهٔ دي کوم چه فقهاء کرامو په خپلو اجتهاداتو سره ذکر کړیدي چه مصر جامع به وي، او خاص عدد به وي او امام اعظم به وي، او حمام وغیره به وي، او لوهاران او ترکاڼان او قصابان به وي بلکه د جُمعې مونځ په هر ځای کښې کیږي، کلې وي او که باندې او که ښار وي. دوه کسان وي او که درې کسان او که ډیر وي، دې ټولو ته دا خطاب متوجه دې.

علامه شوکانيؒ لیکي : د الله په کتاب او په سنت د رسول الله ﷺ کښې هیڅ یو حرف

نشته چه دلالت وکړي په صحت د هغه شروطو کومو چه دے علماؤ ذکر کړيدي، بلکه داټول د علماؤ آراء دي چه هيڅ صحيح دليل ورسره نشته۔ آه.
البته د احنافو محققينو هم دا رأيه غوره کړيده چه د جُمعے مونځ په هر ځاى کښې کيږي، علامه آلوسيؒ پدے باندے کتاب ليکلے دے۔
فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ: اُوس الله تعالىٰ د ايمان والو سره نور احسان کوي، د دنيا د کارونو اجازه ورکوي، او په ديني او دنياوي معاملاتو کښې د دوئ رهنمائي کوي، فرمائي چه کله تاسو د مانځه نه فارغ شئ نو په خپل کارو بار کښې لګيا شئ، او د رزق تالاش کولو دپاره هر ممکن کوشش کوئ، او په هر حال کښې الله يادوئ چه هغهٔ ستاسو په هر قدم باندے لارښوونه کړے ده، هيڅ کله د هغهٔ د ياد نه غافله کيږئ مهٔ، ځکه د هرے کاميابئ راز په همدے کښې دے۔
وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللَّهِ: فضل الله يواځے دنيا طلب کولو ته نهٔ وائي بلکه دا تجارت، د بيمار عيادت کول، ملاقات د ورور مسلمان، او طلب د علم او د جنازے حاضريدو تولو ته شامل دے۔ دارنګه په نيك عمل کولو او د ګناهونو نه ځان ساتلو کښې چه د الله سره کوم اجرونه دي هغه طلب کړئ۔
وَاذْكُرُوا اللَّهَ: علماؤ ليکلي دي چه د جُمعے د مانځه نه روستو د ذکر زيات اهتمام پکار دے ددے آيت د وجه نه۔ سعيد بن جبيرؒ به د جُمعے د مانځه نه روستو بيا د جُمعے د مازيګر نه تر مابنامه پورے د الله په ذکر کښې مشغول وو، او هيچا سره به ئے فضول خبرے نهٔ کولے۔ د الله ددے امر تعظيم به ئے کولو۔ او پدے کښې د جُمعے د مازيګر وخت اهتمام ته هم اشاره ده۔
وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا: شان نزول
ددے آيتِ کريمه د نازليدو د سبب په باره کښې بخاريؒ او مسلمؒ اونورو د جابر بن عبد الله رضي الله عنهما نه روايت کړے دے چه يو ځل نبي کريم ﷺ د جُمعے خطبه ورکوله چه يوے تجارتي قافلے د خوراك څښاك سامان بار کړے وو، او مدينے ته را اورسيده۔
صحابه کرام رضي الله عنهم چه کله خبر شول نو يو يو د جومات نه بهر وتل تردے چه صرف دولس سړي پاتے شول، چه په هغے کښې ابوبکر او عمر رضي الله عنهما هم وو، نو

دا آیت نازل شو۔ رسول الله ﷺ وفرمایل:

[لَوْ تَتَابَعْتُمْ حَتّٰی لَایَبْقٰی مِنْکُمْ اَحَدٌ لَسَالَ بِکُمُ الْوَادِیْ نَارًا]

که تاسو ټول وتلی وے نو په تاسو به دا کنده د اُور نه روانه شوے وے۔

(مسند ابی یعلی: ۱۹۷۹/۳/٤٦۸) باسناد صحیح وشعب الایمان ۳۰۱۹/۱۰۷/۳) باسناد حسن)

ابو داوُدؒ په [کتاب المراسیل] کښې د مقاتل بن حیانؒ نه روایت کړې دی چه د مدنی ژوند په شروع کښې نبی کریم ﷺ د جُمعے مونځ د دواړو اخترونو غونته د خطبے نه مخکښې کولو، یو ځل داسے اوشو چه رسول الله ﷺ د جُمعے د مانځه نه پس خطبه ورکوله چه یو سړے جومات ته راغے، او وے وئیل چه دِحیَه بن خلیفه تجارتی مال راوړے دے، دے آوریدو سره خلق یو یو د جومات نه بهر را اووتل، صرف یو څو کسه پاتے شول۔

د قافلے د راتلو نه پس د صحابه کرامؓ نه چه کومه غلطی اوشوه، په دے باندے الله تعالیٰ دوئ ملامته کړل او یو شکایتی انداز کښې ئے د دوئ تربیت وکړو چه کله دا خلق څهٔ تجارتی قافله یا د لهو او لعب سامان اُووینی، نو تیزئ سره دے طرفته ورمنډه کړی او تا په منبر باندے ولاړ یواځے پریدی۔ تهٔ دوئ ته اُووایه چه ستا د خطبے د آوریدو او ددے نه د نفع حاصلولو چه کوم اجر او ثواب دے، هغه د لهو او لعب او تجارتی نفع نه ډیر زیات بهتر دے۔ او تهٔ دوئ ته دا هم اووایه چه الله تعالیٰ د هر چانه بهتر روزی ورکونکے دے، دے وجے نه دوئ له د هغه خیر او برکت حاصلولو کوشش کول پکار دی کوم چه د الله سره دے، او د روزئ معامله الله ته حواله کول پکار دی۔

اَنْفَضُّوْا اِلَیْهَا: ۱- تَفَرَّقُوْا خَارِجِیْنَ اِلَیْهَا۔ یعنی دوی خوارهٔ شی چه وتونکی وی هغے ته۔ ۲- مبردؒ وائی: مَالُوْا اِلَیْهَا۔ هغے ته ورمائل /کاږهٔ شی۔

وَتَرَکُوْکَ قَآئِمًا: دا دلیل دے چه خطیب به خطبه په ولاړه وائی، او همدا د سنت نبوی نه ثابت دے۔ جناب کعب بن عجره ؓ مسجد ته راغلو او عبد الرحمن بن ام الحکم په ناسته خطبه وئیله نو وے فرمایل:

[اُنْظُرُوْا اِلٰی هٰذَا الْخَبِیْثِ یَخْطُبُ قَاعِدًا وَقَالَ اللهُ تَعَالٰی ﴿وَاِذَا رَاَوْا تِجَارَةً اَوْ لَهْوَا نِ انْفَضُّوْا اِلَیْهَا وَتَرَکُوْکَ قَآئِمًا﴾]۔

(دے خبیث ته وګورئ چه په ناسته باندے (د جُمعے) خطبه وائی، او حال دا چه الله

فرمائی : او کله چه دوی وینی یو تجارت یا تماشه نو لاړ شی هغې ته او تا لره ولاړ پریدی۔ (صحیح مسلم : ۲۰۳۸)
مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ : د الله سره اجر څکه د لهو او تجارت نه بهتر دے چه هغه یقینی او همیشه دے، په خلاف د لهو او د تجارت نه چه د لهو فائده یقینی نهٔ ده، او د تجارت فائده همیشه نهٔ ده۔ لهو، تماشے او هر مشغوله کونکی شی ته وئیلے شی۔
وبالله التوفیق

## امتیازات د سورة الجمعه :

١- د رسول الله ﷺ رالیږلو ته د تولو خلقو ضرورت بیان شو۔
٢- د یهودیانو په درے دعوو باندے رد وشو۔
٣- د یهودو سره د مباهلے اعلان وشو۔
٤- د جُمعے د مانځه اذان، آداب او احکام بیان شول۔

ختم شو تفسیر د سورة الجمعه په ٢٩ شعبان ١٤٣٧ هـ موافق : ٥/٦/٢٠١٦ء
یوم الاحد بجه : ١٠٠

❀❀❀

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| آياتها (۱۱) | (٦٣) سورة المنافقون مدنية (۱۰٤) | ركوعاتها (۲) |
| --- | --- | --- |

سورة المنافقون مدني دے، په دے کښې يولس آيتونه او دوه رکوع دي۔

## تفسير سورة المنافقون

نوم : دے سورت ته سورة المنافقون وائي، ځکه چه ټول بحث په کښې د منافقانو نه شويدے۔

د نازليدو زمانه : قرطبیؒ ليکلي چه دا سورت د ټولو په نيز مدني دے۔ ابن مردويةؒ او بيهقیؒ د ابن عباس ﷛ نه روايت کړی دی چه سورةُ المنافقون په مدينه کښې نازل شوے وو۔ مفسرينو ليکلي دي چه دا سورت په شعبان (٥) هجري کال کښې د غزوهٔ بني المصطلق نه په واپسئ کښې په لاره يا مدينے ته د رسيدو نه پس نازل شوے وو۔

### مناسبتونه

۱- مخکښې د دين ترقي په قوت د علم سره ذکر شوه، اُوس د دين ترقي په مال باندے ذکر کيږي۔ لکه مخکښې ذکر شو۔

۲- اَلَّذِيْنَ يَنْفَضُّوْنَ عَنِ الرَّسُوْلِ هُمُ الْمُنَافِقُوْنَ فَلَا يَجُوْزُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ التَّشَبُّهُ بِهِمْ۔ د رسول الله ﷺ نه چه څوك اوړي هغه منافق وي، نو اے مؤمنه! تهٔ د هغوی سره تشبيه مهٔ کوه۔

### مقصد د سورت

اَلزَّجْرُ لِلْمُنَافِقِيْنَ بِاَوْصَافِهِمُ الْخَبِيْثَةِ وَتَحْذِيْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ ذٰلِكَ ۔

منافقانو ته د هغوی په ناکاره صفتونو باندے رټنه بيانيږي، او مؤمنانو ته د هغے نه يره ورکوی چه د هغے نه ځان وساتي۔

اولـه رکـوع کښې د منافقانو بد صفتونه او هغوی ته رټنې او دويمه رکوع کښې مؤمنان د هغوی نه يره ول دی۔
منافقانو کښې درے بد صفتونه دی په آخر کښې راځی۔

## د سورت شان نزول

ددے سورت د تفسیر پیژندلو نه مخکښې، د سورت شان نزول پیژندل ضروری دی، چه د امام بخاریؒ، ابن اسحاقؒ او د ابن جریرؒ د روایتونو په مدد سره دلته لیکلے کیږی۔
د نبی ﷺ د هجرت نه مخکښې د اَوس او خزرج قبائل د خپلو اُوږدو جنګونو نه تنګ راغلل، او آخر په دے خبره متفق شو چه د خزرج قبیلے مشهور سردار عبد الله بن اُبی ابن سلول خپل بادشاه جوړ کړی، او ددهٔ په قیادت او سرداریٔ کښې ټول په یوځای د آرام زندګی تیره کړی، لیکن کله چه د مدینے مسلمانانو د هجرت نه وړاندے د نبی کریم ﷺ په لاس بیعت وکړو چه تاریخ دا د بیعتِ عقبه په نوم پیژنی، د کوم نه پس چه هغویٔ نبی ﷺ ته مدینے ته د راتلو دعوت ورکړو، او هغه مدینے ته راغے، او تمام انصارِ مدینه د هغهٔ نه ګیر چاپیره راجمع شول، او د عبد الله بن اُبی خوب نیمګړے پاتے شو،
نو ددهٔ په زړهٔ کښې د نبی ﷺ او د اسلام خِلاف دشمنی پریوته۔ دے وجے نه اګرکه دهٔ د حالاتو د تقاضے مطابق په ظاهره کښې اسلام قبول کړو، لیکن په پټه باندے د یهودیانو او کافرانو سره ملاوْ شو، او د نبی کریم ﷺ او د اسلام خلاف سازشونه به ئے کول۔
د بدر د غزا نه پس چه کله د بنی قینقاع یهودو د ښکاره بے لوظیٔ د وجے نه نبی ﷺ په هغویٔ باندے حمله اوکړه نو دا کس د هغویٔ د حمایت دپاره اودریدهٔ۔
د اُحُد د غزا په موقع هم دهٔ ښکاره غداری اوکړه، او عینِ وقت کښې ئے خپل درے سوه سوارهٔ واخستل او د میدانِ جنګ نه واپس لاړ۔
په (٤) هجری کال چه کله نبی کریم ﷺ په بنی نضیرو (یهودیانو) وروختهٔ، او د دویٔ علاقه ئے محاصره کړه، نو دهٔ دغه یهودیانو ته پیغام اولیږلو چه تاسو مضبوط اوسیږیٔ، مونږ تاسو سره یو، اوکه د مدینے نه د وتلو نوبت راغے نو مونږ به هم تاسو سره اوځو۔
دے واقعاتو نه پس د مدینے عامو مسلمانانو ته ددهٔ د منافق کیدو یقین راغلے وو، لیکن

د حالاتو تقاضا دا وه چه دا اونهٔ چیرلے شی، دے دپاره چه د نبی کریم ﷺ او د صحابه کرامو داخلی دشمنانو سره نښته اُونشی، او خارجی دشمنانو ته په مدینه باندے د حملے کولو موقعه ملاؤ نشی۔

په شعبان (۵) هجری کال کښ چه کله د بنی المصطلق غزا اُوشوه، نو عبد الله بن اُبی هم د منافقانو د یو ے ډلے سره مجبوراً شریك شوے وو۔ نبی کریم ﷺ په دے غزا کښ په کافرانو باندے د فتح حاصلولو نه پس د [المریسیع] نومے کوهی خواته پړاؤ اچولے وو، د عمر بن خطاب رضی الله عنه د خادم جَهْجَاهِ غِفَاری رضی الله عنه او د سِنان بن وَبْرَه جُهنی حلیف بنی عوف بن الخزرج رضی الله عنه ترمینځه جګړه اوشوه، دواړو د کوهی نه اُوبه راویستلے نو جهجاه مهاجر ډیر خوش طبع وو، نو د خوش طبعئ د وجه نه ئے سنان انصاری ته په کناتو کښ لته ورکړه، هغه غصه شو چه تا زما بے عزتی وکړه نو جګړه شوه او خبره زیاته شوه۔

جُهنی انصارو ته آواز اوکړو، او جهجاه مهاجرینو ته۔ دواړه ډلے نزدے وه چه انختی وے نو پدے کښ رسول الله ﷺ خبر شو او موقعے ته ورسیدو نو وے فرمایل : (دَعُوهَا فَإِنَّهَا مُنْتِنَةٌ) دا بد بویه کلمه مهٔ استعمالوئ چه په خپل قوم تعصب کوئ او خپلو قومیانو ته آوازونه کوئ۔ بلکه تاسو ټول د یو ے کلمے ورونه یئ۔

نو دواړو ډلو خپل مینځ کښ خپیمانه شول چه دا خو د شیطان وسوسه وه، او یو بل ته ئے د محبت غاړے ورکړے۔

عبد الله بن اُبی خبر شو، او د موقعے نه د فائدے پورته کولو لپاره ئے انصارو او منافقانو ته ووئیل چه آیا دوی اُوس دا کار کریدے، دا هر څهٔ ستاسو خپل عمل دے۔ تاسو دے خلقو له په خپل ملك کښ ځای ورکړو، په دوئ مو خپل مالونه تقسیم کړل، تردے چه اوس دا خلق مضبو طیدو سره خپله زمونږ خِلاف جوړ شو۔ زمونږه او د قریشو ددے کنګالانو په حالت باندے دا متل صادق شو چه پخوانو عربو وئیلے دے :

(سَمِّنْ كَلْبَكَ يَأْكُلْكَ)

((خپل سپی له خوراك څښاك ورکړه چاق ئے کړه دے دپاره چه تا اوخوری))۔

تاسو د دوئ نه لاس بند کړئ، یعنی په دوئ باندے خرچ بند کړئ، نو دوئ به پریشانه شی۔ قسم په الله ! مدینے ته چه واپس شو نو په مونږ کښ چه څوك عزت والا دے هغه به ذلیل لره اوباسی۔

زید بن ارقم صحابی ﷺ چه یو وړوکے هلك وو، هغهٔ دا ټولے خبرے واوریدے، رسول الله ﷺ خواته راغے او ټولے ئے ورته اوکړے. عمر بن خطاب ﷺ هلته موجود وو، هغهٔ نبی ﷺ ته ووئیل چه ته مُعاذ بن جبل ته حکم اوکړه چه هغه عبد الله بن اُبی اووژنی. نبی ﷺ وفرمایل: عُمر! داسے نهٔ دی کول پکار دے دپاره چه خلق دا اونهٔ وائی چه محمد (ﷺ) خپل ملګری وژنی.

عبد الله بن اُبیّ ته چه کله معلومه شوه چه نبی کریم ﷺ ته ددهٔ د فتنے اچولو پته لګیدلے ده، نو په منډه باندے د هغهٔ خواته راغے او سراسر دروغ ئے وویل چه ما دا خبره نهٔ ده کړے. او قسمونه ئے وکړل او دومره چالاکی ئے وکړه چه رسول الله ﷺ د زید بن ارقم تکذیب وکړو، چه کیدے شی تهٔ به غلط شوے ئے.

پدے کښې زید بن ارقم ﷺ ډیر زیات غمجن شو چه رسول الله ﷺ زما تکذیب وکړو نو تر قیامته پورے به زما څوك تصدیق نکوی، دروغجن به راته وائی. ترهٔ ورته وویل چه تا ولے رسول الله ﷺ دا خبرے کولے، چه اُوس پریشانه شوے. نو زید وائی چه زهٔ دومره پریشانه شوم چه آسمان او زمکه راباندے یو شول تردے چه مونږ مدینے ته راغلو نو الله دا آیتونه نازل کړل، او ما پسے رسول الله ﷺ جواب راولیږلو چه دلته راشه او وے فرمایل: يَا زَيْدُ قَدْ صَدَّقَ اللَّهُ أُذُنَكَ. اے زیده! الله ستا د غوږ تصدیق وکړو.

دے واقعے نه پس رسول الله ﷺ هلته نه فوراً روان شو، په لاره کښې چه کله نبی ﷺ اُسید بن حضیر ﷺ ته دا خبره اُوښودله، نو هغهٔ ووئیل: اے د الله رسوله! قسَم په الله! که چرے تهٔ غواړے نو هغه د مدینے نه اوباسه. قسَم په الله! هغه ذلیل دے، او تاسو عزت والا ئے.　(صحیح بخاری فی التفسیر: ٤٩٠٣ وغیره)

په مزه مزه دا خبره په تمامو انصارو کښې خوره شوه، او په دوئ کښې د عبد الله بن اُبیّ په خِلاف سخته غصه پیدا شوه. چنانچه کله چه دا قافله مدینے ته داخلیدله نو د عبد الله بن اُبیّ خوی چه د هغهٔ نوم هم عبد الله ﷺ وو، توره را اوښکله او د پلار مخے ته راغے، وے وئیل: تا وئیلی وو چه مدینے ته رسیدو سره به عزت والا ذلیله اوباسی، اُوس به تاته معلومه شی چه عزت ستا دے او که د الله او د هغهٔ د رسول دے. قسَم په الله! تهٔ مدینے ته داخلیدے نشے ترڅو چه رسول الله ﷺ تاته اجازت درنهٔ کړی.

رسول الله ﷺ ته چه کله خبر اوشو نو هغهٔ صحابو ته ووئیل: عبد الله ته اُووایه چه

خپل پلار کور ته پریږدي.

بیا عبد الله ﷺ وفرمایل: هرکله چه د الله د رسول ﷺ امر دے نو ځۀ کورته لاړ شه.

او په روایت د ترمذیؒ کښ دي: خوي ورته ووېل:

[وَاللَّهِ لَا تَنْقَلِبُ حَتَّى تُقِرَّ أَنَّكَ الذَّلِيلُ وَرَسُولُ اللَّهِ ﷺ الْعَزِيزُ فَفَعَلَ]

قسم په الله تـۀ کـور ته نشـے تللے تردے چه دا اقرار وکړے چه تۀ ذلیله ئے او رسول الله ﷺ عزیز دے نو هغه دا کار وکړو. (ترمذی: ۳۳۱۵) صحیح)

د ابـن اسـحاقؒ د روایت مطابق د رسول الله ﷺ مـدینے ته د رسیدو نه پس دا سورت نازل شو، چه په دے کـښ الله تـعالیٰ د منافقانو او د دوئ د سردار عبد الله بن اُبَیّ ابن سلول حالات بیان کړل، او د هغوئ د نفاق نه ئے پرده لرے کړه.

اوس راشئ، چه ددے سورت تفسیر وکورو:

| إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ |
| --- |
| کله چه راشی تا ته منافقان وائی دوی ګواهی کوو مونږ چه یقیناً تۀ خامخا رسول |
| اللَّهِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ |
| د الله ئے، او الله پوهیږی چه یقیناً تۀ خامخا رسول د هغه ئے او الله ګواهی ورکوی |
| إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ ﴿١﴾ |
| چه یقیناً منافقان خامخا دروغژن دی. |

**تفسیر**: یعنی اے زما نبی! کـلـه چه عبـد الله بـن اُبَیّ ابن سلول او نور منافقان ستا مـجلـس ته راځی، نو په خپلو ژبو سره د خپل اسلام اظهار کوی، او تاته دهوکے درکولو دپاره وائی: مونږ ګواهی کوو چه تۀ د الله رسول ئے. الله تعالیٰ اوونیل: الله پیژنی چه تۀ د هغـۀ رسـول ئـے، برابـره خبـره ده کـه مـنافقان ددے ګواهی ورکوی یا نۀ ورکوی، او الله ګـواهـی ورکـوی چـه مـنـافـقـان په خپله ګواهئ کښ دروغژن دی، د دوئ باطن د دوئ د ظاهر مطابق نۀ دے.

وَاللَّهُ يَعْلَمُ: دا جـمـلـه مـینـځ کښ ځکه وائی که روستو جمله ورسره ملاؤ کړی نو بیا د

(اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللهِ) تکذیب راځي.

اِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ لَكَاذِبُوْنَ: ١ – فِي الْبَيَانِ. د دغه خبرے په بیان کښې دروغجن دی.

٢ – او دپاسه ئے پرے قسمونه هم وکړل نو په دغه قسمونو کښې دروغجن دی.

٣ – فِيْ تَسْمِيَةِ قَوْلِهِمْ شَهَادَةً.

پدے کښې دروغجن دی چه خپلے دروغجنے خبرے ته ئے د شهادت نوم ورکړو، ځکه چه شهادت خو دے ته وائی چه د خولے خبره او د زړه تصدیق برابر وی او دوی (اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللهِ) په خوله وائی لیکن په زړه کښې ئے دا خبره نشته. نو په واقع کښې د زړهٔ او خوله لاره ئے برابره نهٔ ده.

٤ – فِي الْمَشْهُوْدِ بِهٖ فِيْ زَعْمِهِمْ:

دوی په خپل زعم کښې دروغجن دی، یعنی د دوی په نیز هم (اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللهِ) د واقع نه خلاف دے، او خلاف د واقع نه دروغ وی. یعنی د دوی په عقیده کښې هم دا خبره ده چه مونږ چه اِنَّكَ لَرَسُوْلُ اللهِ وایو نو دا دروغ دی. (تلخیص)

| اِتَّخَذُوْا اَيْمَانَهُمْ جُنَّةً فَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۭ اِنَّهُمْ |
|---|
| دوی نیولی دی قسمونه خپل ډهال نو (خلق) منع کوی د لارے د الله نه یقیناً دوی |
| سَاۗءَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٢﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ اٰمَنُوْا ثُمَّ |
| بد دی هغه عملونه چه دوی ئے کوی. دا پدے وجه چه دوی ایمان راوړو بیا ئے |
| كَفَرُوْا فَطُبِعَ عَلٰي قُلُوْبِهِمْ فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿٣﴾ وَاِذَا |
| کفر اُوکړو نو مهر اُووهلے شو په زړونو د دوی نو دوی نهٔ پو هیږی. او کله چه |
| رَاَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ اَجْسَامُهُمْ ۭ وَاِنْ يَّقُوْلُوْا |
| اُووینے تهٔ دوی لره تعجب کښې به اچوی تا لره بدنونه د دوی او که دوی خبرے کوی، |
| تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ ۭ كَاَنَّهُمْ خُشُبٌ مُّسَنَّدَةٌ ۭ |
| تهٔ به غوږ ایږدے خبرو د دوی ته، ګویا که دوی لرګی دی تکیه کړے شوی، |

| يَحْسَبُوْنَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ هُمُ الْعَدُوُّ فَاحْذَرْهُمْ |
| --- |
| گمان کوی د هرے چغے په ځان باندے، هم دوی دشمنان دی، نو ځان اوساته د دوی نه، |
| قَاتَلَهُمُ اللهُ أَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٤﴾ |
| هلاك دِے کړی دوی لره الله تعالیٰ، کوم طرف ته اړولے کیږی۔ |

**تفسیر**: د دوی نور عیبونه بیانیږی: دوئ خپل دروغژن قسمونه ډهال جوړ کړے دے چه ددے په ذریعه دوئ خپل ځان او خپل اهل او عیال د قید او قتل او د مؤمنانو د زورنے نه بچ کوی۔ خپله د زړهٔ نه په اسلام باندے عمل نهٔ کوی، او د مدینے په معاشره کښ د اسلام او د نبی کریم ﷺ خِلاف شکوك او شبهات خوروی، او خلق په اسلام کښ د داخلیدو نه بندوی، او څوك چه په اسلام کښ داخل شوی دی، هغوئ جهاد ته د تلو او د نیکئ د نورو کارونو نه منع کوی۔

خلقو ته دا ښکاره کوی چه دوی مسلمانان دی، او د هغوی خیر خواه دی، نو ددے په وجه خپله هم د الله د لارے نه واوړیدل او نور خلق ئے هم منع کړل۔

حقیقت دادے چه د دوئ دا ټول کارونه ډیر زیات خطرناك دی۔

**ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ**: یعنی د دوی بد عمل او دروغ وئیلو سبب د دوی منافقت دے چه اول خو ئے په الله باندے د ایمان راوړو په ژبه باندے اقرار وکړو، بیا په شك او شبهه کښ اخته شول او منافقان جوړ شول۔ او ددے نفاق اولنئ سزا دوئ له الله دا ورکړه چه د دوئ په زړونو ئے مهر ولګولو، ددے نه ئے د فهم او تدبر صلاحیت واخستهٔ، او د دوئ زړونو طرفته تلونکے ټولے لارے ئے بندے کړے۔

**آمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا**: یعنی دوئ اول کښ ایمان په ژبه راښکاره کړو بیا ئے د کفر کارونه وکړل نو مرتد شول، نو الله تعالیٰ د دوئ په زړونو مهر ووهلو نو دوی ئے د هدایت نه محروم کړل۔ یا ددے نه مراد کثرت او تکرار دے، یعنی هر وخت کښ ایمان ښکاره کوی، نو بیا د کفر کار کوی۔

**فَهُمْ لَا يَفْقَهُوْنَ**: دوئ په خبرهٔ نهٔ پوهیږی نو ځکه دروغ هم وائی، دروغو قسمونه هم کوی او بد عملونه هم کوی، او خلق هم د الله د لارے نه اړوی۔

یا دا چه هر کله چه په دوی باندے مهر ووهل شو نو دوئ د فقاهت نه محروم شو۔ فقاهت د حق او د باطل ترمینځ د تمییز کولو علم ته وئیلے شی۔

وَإِذَا رَأَيْتَهُمْ تُعْجِبُكَ: پدے کښې د منافقانو پنځه صفات ذکر کیږی۔

تُعْجِبُكَ أَجْسَامُهُمْ: یعنی د دوئ بدنونه غټ غټ دی، او ښائسته او صحت والا دی۔

عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی: ابن سلول جسیم (لوی جسم والا) روغ رمټ، فصیح او چالاکے ژبے والا وو، او ددهٔ ځه منافقان ملګری هم دغه شان وو، او دوئ د مدینے رؤساء مشران خلق وو، دوی به د نبی کریم ﷺ مجلس ته حاضریدل، او په هغے کښې به ئے دیوالونو ته تکیه لګولے وه، او نبی کریم ﷺ او نور حاضرین به د دوئ شکلونو ته کتل نو تعجب به ئے کولو۔

او پدے کښې اشاره ده چه دوئ هر وخت د بدن په اصلاح کښې او په قسم قِسم خوراکونو کښې مشغول دی، روحانی غذاء ته توجه نهٔ کوی۔

یا دا چه د دوئ خو ظاهری شکل او شباهت ډیر مزیدار دے لیکن انتهائی ضعیف، بزدله او حریصان او بے صبره دی۔ (ابن کثیرؒ)

وَإِنْ يَقُولُوا تَسْمَعْ لِقَوْلِهِمْ: یعنی د دنیا په خبرو کښې ډیر فصیح بلیغ دی، آوریدونکو کښې کشش پیدا کوی، لکه په سورة بقره (٢٠٤) آیت کښې ذکر دی، او د قَوْلِهِمْ نه مراد د دنیا د څیزونو په باره کښې خبرے کول دی ځکه چه ﴿يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ (سورة الروم: ٧) د دنیا په ظاهر باندے ډیر ښه پو هیږی۔

كَأَنَّهُمْ خُشُبٌ مُسَنَّدَةٌ: (ګویا که دوی تکیه کړے شوی لرګی دی)۔ یعنی دوئ د پو هے او سوچ او د هر قِسم روحانی فائدے نه داسے خالی دی لکه هغه لرګی چه هغه دیوال ته لګولو سره اُودرولے شی، نهٔ دا په څهٔ آبادئ کښې لګیدلی وی، او نهٔ بل کوم شئ کښې استعمال شوی وی، یعنی خالص بیکاره وی۔

داسے لرګے دننه ډډ وی (یعنی مینځ ئے تش وی) کمزورے وی، او یو طرف ئے لوند او بل طرف ئے اُوچ وی، د آبادئ او د فائدے د څیزونو جوړولو دپاره صلاحیت نهٔ لری، او ظاهر کښې غټ ښائسته ښکاره کیږی، بعینه همدا حال د منافقانو د جسمونو دے چه دا د حقیقی روح او د ژوند نه خالی دی، او هیڅ فائده پکښې نشته۔

اَیْ اِنَّهُمْ اَشْبَاحٌ بِلَا اَرْوَاحٍ وَاَجْسَامٌ بِلَا اَحْلَامٍ۔

دوی هسے جثے دی بغیر د روحونو نه، او بدنونه دی بغیر د عقلونو نه.

د دوئ تشبیه ئے د لرګو سره د ډیرو وجو نه ورکړیده او ټولے وجے صحیح دی.

(۱) یو تشبیه په قِلّةُ الْفَهْم کښې ده. لرګے په څه نهٔ پوهیږی نو دوئ هم دغه شان ناپوهه او بے عقله خلق دی. (۲) تشبیه په عدمُ الْانْتِفَاع کښې ده. دغه لرګی ته فائده نشی اخستے کیدے نو دغه شان د منافقانو نه هیڅ فائده نهٔ ملاویږی.

(۳) اَلْاتِّکَاءِ فِی مَجْلِسِ الرَّسُوْلِ . د رسول الله ﷺ په مجلس کښې به د تکیه په طریقه بے ادبه وران او غافل او متکبرانه انداز کښې کیناستل.

ددے نه معلومه شوه چه په دینی مجالسو کښې داسے ناسته د منافقت ناسته ده، ددے نه یره پکار ده. بلکه ادب نه کار اخستل پکار دی.

(٤) تشبیه په عَدَمُ الْعِبَادَة او عَدَمُ الْخُشُوْع کښې ده. یعنی دوی هسے لرګی دی چه د الله هیڅ بندګی او هغهٔ ته په کښې هیڅ خشوع نشته، وچ لرګی دی.

یَحْسَبُوْنَ کُلَّ صَیْحَةٍ عَلَیْهِمْ : پدے کښې اشاره ده چه سره د غټ والی د بدنونو او د چالاکئ د زړے نه ډیر بزدل دی. (یعنی ګمان کوی په هره چغه باندے چه دا په موږ باندے ده)

صَیْحَةٍ: نه مراد اعلان دے، یعنی که په معاشره یا معسکر کښې د ورك شوی شی اعلان وشی چه دا به چا اخستے وی، نو دوی ګمان کوی چه دا به موږ یادوی، ځکه چه غل ته خپل ځان معلوم وی. پښتانهٔ وائی : ((د غل په ګیره خس وی)).

دوئ هره خبره په ځان راړوی ځکه چه په زړهٔ کښې تک دے، د مؤمن په زړه کښې دا نهٔ تیریږی ځکه چه هغه د زړه نه صفا وی، نو وائی چه ما باندے به خلك ولے داسے غلط ګمان کوی.

۲- د صیحه نه مراد آیتونه او وحی هم ده، یعنی دوئ هر وخت یریږی چه پته نشته کله الله تعالیٰ په خپل نبی باندے وحی نازلوی، او د دوئ پرده لرے کوی، د دوئ د قید او قتل حکم به ورکوی، او د دوئ مالونه او د دوئ اولاد به هغوئ دپاره حلال جوړوی، دے وجے نه په هر آواز باندے د دوئ غوږونه للګ څلګ شی، او بیدار اودریږی چه چرته د دوئ په باره کښې د الله حکم خو نهٔ دے راغلے. او دا داسے جامع لفظ دے چه په هره موقعه کښې

د منافق د حال سره مناسب دے۔ که په بیان کښې يوه اصلاحي خبره وشي، نو دوئ وائي چه دا مونږ يادوي۔ که د کافرانو بدي ذکر کيږي، نو دوئ وائي چه مونږ يادوي۔

هُمُ الْعَدُوُّ : اُوس الله خپل نبي ﷺ ته فرمائي : چه دا منافقان ستا پاخهٔ دشمنان دي، ځکه چه دوي هغه خبرے راښکاره کوي چه کومے ئے په زړه کښې نهٔ وي۔ دا خلق د زړهٔ نه ستا د دشمنانو ملګري دي، او هر وخت په انتظار کښې وي چه کله به په تا او مسلمانانو باندے مصيبت نازليږي۔

فَاحْذَرْهُمْ : يعني د دوئ په باره کښې په هوښيارتيا او بچاؤ کښې وسيږه چرته دوي ستا نه فرصت مونده نکړي، يا ستا په رازونو باندے خبر نشي ځکه چه دوئ ستا د دشمنانو کفارو جاسوسان دي۔

قَاتَلَهُمُ اللهُ : اُوس ورته ښيرے کوي : يعني الله تعالىٰ دے دوئ تباه کړي۔ او په دوي دے لعنت وکړي۔

أَنَّى يُؤْفَكُونَ : يعني د ايمان د دليلونو نه روستو دوي د حقے لارے نه څنګه لرے روان دي، قرآن نازليږي، رسول الله ﷺ خلقو ته تعليم ورکوي، او د دعوتي کوششونو ښهٔ آثار د مومنانو په اقوالو او افعالو او اخلاقو او فکرونو باندے ښکاره کيږي، ليکن د زړهٔ دے ړندو ته هيڅ هم په نظر نهٔ راځي۔

| وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا يَسْتَغْفِرْ لَكُمْ رَسُولُ اللهِ |
| --- |
| او کله چه اُووئيلے شي دوي ته راشئ چه بخنه اُوغواړي تاسو لره رسول د الله، |
| لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ وَرَأَيْتَهُمْ يَصُدُّونَ وَهُمْ مُسْتَكْبِرُونَ ﴿٥﴾ |
| تاؤ کړي سرونه خپل او وينے به تهٔ دوي لره چه اوړي به او دوي ځان لوئي ګڼرونکي |
| سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَسْتَغْفَرْتَ لَهُمْ أَمْ لَمْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ |
| وي۔ برابره ده په دوي باندے بخنه غواړے تهٔ دوي لره او که بخنه نهٔ غواړے دوي لره |
| لَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَهُمْ إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿٦﴾ |
| هيچرے بخنه نهٔ کوي الله تعالىٰ دوي ته يقيناً الله هدايت نهٔ کوي قوم نافرمانو ته۔ |

**تفسير** : د ذکر شوي واقعې نه روستو او ددې آيتونو د نازليدو نه روستو څۀ خلقو عبد الله بن أبيّ له مشوره ورکړه چه د رسول الله ﷺ خواته لاړ شه، معافي اوغواړه او نبي ﷺ ته درخواست اوکړه هغه به تا دپاره د الله نه د مغفرت دعاء اوکړي، نو هغۀ کبر او غرور سره خپل څټ تاؤ کړو او وې وئيل چه:

[أَمَرْتُمُونِي أَنْ أُوْمِنَ فَآمَنْتُ، وَأَمَرْتُمُونِي أَنْ أُعْطِيَ زَكَاةَ مَالِي فَأَعْطَيْتُ، فَمَا بَقِيَ إِلَّا أَنْ أَسْجُدَ لِمُحَمَّدٍ] ((تاسو خلقو ماته د ايمان راوړو اُووئيل، ما ايمان راوړو، د زکاة ورکولو مو راته اووئيل، ما زکاة ورکړو، اُوس خو محمد ته صرف سجده کول پاتې دي))

(ابن جرير الطبري: ۳٤٤٧٥)

نو لاندينی څلور آيتونه نازل شول، چه په دې کښې د منافقانو د سردار او د هغۀ پشان د نورو منافقانو حال بيان شوې دې.

**تَعَالَوْا** : دا د عُلُو نه ماخوذ دې په هغه ځای کښې استعماليږي چه ترقئ او اُوچتوالي طرفته دعوت وي، نو د رسول الله ﷺ مجلس ته راتلل او د هغه دعا او استغفار غوښتل لويه مرتبه حاصلول دي. يعنې پورته راشئ د خپلې غلطئ نه اُوچتې مرتبې ته.

**لَوَّوْا رُءُوسَهُمْ**: لَيّ مخ او څټ تاوول دي په طريقه د نفرت او سرکشئ سره.

**يَصُدُّونَ** : يعنې مخ اړوي/ اعراض کوي د وينا د دغه ويونکي نه. يا اعراض کوي د رسول الله ﷺ نه.

**سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ** : الله وفرمايل: چه دا خلق د بخنې د غوښتلو لائق نۀ دي. اګرکه د دوئ خپلوان يا رسول الله ﷺ دا غواړي چه دوئ دپاره بخنه وغواړي.

**لَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَهُمْ**: يعنې ترڅو چه دوئ په منافقت باندې وي نو الله ورته بخنه نۀ کوي، او کله ئې چه د خپل فسق او نفاق نه توبه کړه نو بيا ورته الله تعالیٰ بخنه کوي.

**الْفَاسِقِينَ**: کامل نافرمان چه د الله او د رسول د طاعت نه وتونکي وي، او په خپل فسق باندې هميش والې کوي، فاسقانو کښې منافقان په طريق اولیٰ سره داخل دي، خاصکر عبد الله بن اُبيّ خو هغه دروغژن دې چه ددۀ د رګ رګ نه نِفاق او شرارت راوځي.

| هُمُ الَّذِينَ يَقُولُونَ لَا تُنْفِقُوا عَلَىٰ مَنْ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ |
|---|
| دا هغه کسان دي چه وائي دوی خرچ مۀ کوئ په هغه چا چه د رسول الله (ﷺ) سره |

| حَتّٰى يَنفَضُّوْا وَ لِلّٰهِ خَزَائِنُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
|---|
| دی تردے چه خوارهٔ به شی (ددهٔ نه) او خاص الله لره خزانے د آسمانونو او د زمکے دی |
| وَلٰـكِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ ﴿۷﴾ يَقُوْلُوْنَ لَئِنْ رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِيْنَةِ |
| لیکن منافقان نهٔ پو هیږی۔ وائی دوی که چرته واپس شو مونږ مدینے ته |
| لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ وَ لِلّٰهِ الْعِزَّةُ |
| خامخا اُوباسی به عزتمند ددے نه ذلیل لره او خاص الله لره عزت دے |
| وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰـكِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۸﴾ |
| او رسول د هغهٔ لره او مؤمنانو لره لیکن منافقان نهٔ پو هیږی۔ |

**تفسیر** : د دویٔ د فسق / یا د الله تعالیٰ د هدایت نه د محرومیدو یو علت دا دے چه دویٔ داسے گنده خبرے کریدی۔

يَقُوْلُوْنَ : یعنی دویٔ خپلو انصارو مخلصو مسلمانانو ته وویل کوم چه د دوی سره په ظاهره کښې په قومیت کښې ملگری وو او د دویٔ په منافقت باندے خبر نهٔ وو۔

يَقُوْلُوْنَ ئے مضارع راوړه اشاره ده چه د دوی دا وینا صرف یو ځل نهٔ وه بلکه په آینده کښې هم وخت په وخت دوی داسے غلطے خبرے کوی۔

لَا تُنْفِقُوْا عَلٰى مَنْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ : یعنی د مکے په دے فقیرانو باندے خرچ کول بند کړئ تردے چه دوی ددهٔ نه خوارهٔ شی، او خپل وطن ته لاړ شی، او په خپلو مخکنو کارونو کښې مصروف شی۔

نو الله تعالیٰ دا منافقان رټی او فرمائی چه د آسمانونو او زمکے د خزانو مالك خو الله دے، هم هغه چه چاته غواړی روزی ورکوی،، بیا دا منافقان څنگه دعویٰ کوی چه که دویٔ په صحابه کرامو باندے خرچ ونهٔ کړی، نو ټول به د لوږے نه پریشانه شی، او د محمد (ﷺ) د خوانه به تیتو پره شی۔

حقیقت دا دے چه د منافقت د بیماریٔ د وجے نه د منافقانو په ذهن کښې دا خبره نهٔ راځی چه په اصل کښې عزت او غلبه او سربلندی خو د الله، د هغهٔ د رسول، او مومنانو

دپاره دي. لیکن منافقان د خپلې کور مغزئ په سبب ددې حقیقت د موندلو نه کوتاه دي. د منافقانو او د کفارو دا ګمان دې چه ګنې رزق مونږ ورکوو، او مؤمنان به د رزق د تنګئ د وجه نه رسول الله ﷺ او ایمان پریدي.

هُمُ الَّذِيْنَ : مخکښې آیت کښې ئې د دوئ بخل بیان کړو نو دلته وائي چه دوئ مال سبب د عزت ګڼړي.

لَئِنْ رَّجَعْنَا: دا واقعه د غزوه د بني المصطلق نه په واپسئ کښې راغلې وه چه دې ته غزوه د مریسیع هم وائي.

لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ : همیشه منافقان معیار د عزت نهٔ پیژني، اهل حقو ته ذلیله وائي، او ځانونو ته عزتمند وائي، حال دا چه د هغه د حق دین دشمنان وي او بیا هم ځان دپاره عزت غواړي.

دلته د دوئ مقصد د اَعَز نه عبد الله بن اُبی ابن سلول وو چه دا مالداره وو او د اذل نه مراد ئې رسول الله ﷺ وو، او دا صریح کفر دې.

وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ : یعني عزت د الله په اختیار کښې دې، او هغه متصف په عزت دې، او دارنګه رسول الله ﷺ او مؤمنان متصف بِالْعِزَّةُ دي. دوی ته الله تعالیٰ ورکړیدې. د ایمان د فوائدو نه یوه دا ده چه انسان ته عزت ملاویږي.

ددې وجه نه اهل علم فرمائي : (بِقَدْرِ اِيْمَانِكَ تَعِزُّ) د خپل ایمان په اندازه به تهٔ عزتمن کیږې، څومره چه ډېر ایمان وي هغومره به عزتمن ئې.

| يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تُلْهِكُمْ أَمْوَالُكُمْ وَلَا أَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ |
|---|
| اے ایمان والو! غافله دې نهٔ کړي تاسو لره مالونه ستاسو او نهٔ اولاد ستاسو د ذکر د الله |
| وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَأُولٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُوْنَ ﴿٩﴾ وَأَنْفِقُوْا مِنْ مَّا |
| نه او چا چه وکړو دا کار نو دا کسان هم دوی تاوان والا دي. او خرچ کړئ د هغې |
| رَزَقْنَاكُمْ مِّنْ قَبْلِ أَنْ يَّأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ |
| مالونو نه چه درکړي مونږ تاسو ته مخکښې ددې نه چه راشي یو تن ستاسو ته مرګ |

| فَيَقُوْلَ رَبِّ لَوْلَا أَخَّرْتَنِيْ إِلٰى أَجَلٍ قَرِيْبٍ فَأَصَّدَّقَ |
|---|
| نو وائي به اے ربه زما ! ولے نۀ روستو کوے ما تر نيتے نزدے پورے نو زۀ به صدقه |
| وَأَكُنْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۰﴾ وَلَنْ يُّؤَخِّرَ اللهُ نَفْسًا |
| وکرم او شم به د نيکانو نه۔ او هيچرے نۀ روستو کوی الله تعالىٰ هيڅ نفس لره |
| إِذَا جَاءَ أَجَلُهَا وَاللهُ خَبِيْرٌ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۱۱﴾ |
| کله چه راشي نيته د هغے، او الله خبردار دے په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسير** : اوس ايمان والو ته تحذير دے د صفاتو د منافقانو نه۔ چه د منافقانو د مشابهت نه ځانونه وساتئ، د منافقانو درے جدا صفتونه دی، يو د الله د ذکر نه غفلت او دويم بخل، او دريم د آخرت نه غفلت۔

ربط :

په مخکنو آيتونو کښ د منافقانو د هغه خرابو عادتونو او خويونو ذکر اوشو چه د هغے په نتيجه کښ دا خلق د الله د ياد نه غافله شوی وو، او اوس مومنانو ته وائی چه کورئ، تاسو د هغوئ پشان نشئ، او د خپل مال او دولت او د اولاد په روند محبت کښ داسے نشئ چه د الله د ياد نه غافله شئ، چه دا په دنيا او آخرت کښ د هر تاوان او تباهئ اولنے سبب دے۔

لَا تُلْهِكُمْ : اِلْهَاء دے ته وائی چه د انسان زړه مشغوله شی۔ او شغل دے ته وائی چه انسان کاروبار هم کوی او الله هم ورته ياد وی، دا ناروا نۀ دے۔

او دا دليل دے چه د دنيا د مالونو قباحت فِيْ نَفْسِهَا نشته بلکه په هغه وخت به ددے قباحت وی چه د الله د ذکر او د دين نه مانع وګرځی۔

عَنْ ذِكْرِ اللهِ: د بعضو په نيز ددے نه مراد فرائض دی، (حسن بصریؒ)

او بعض وائی : جهاد دے۔ او بعض وائی : قرآن مراد دے۔ بعض وائی : طاعت دے۔ غوره دا ده چه دلته اِدَامَةُ الذِّكْر (يعنی هميشوالے د ذکر) مراد دے۔

دلته مفسرينو ليکلی دی : اَللّٰهُ اَكْرَمُ مِنْ اَنْ يَّبْتَلِيَ بِالنِّفَاقِ قَلْبًا ذَاكِرًا لِلّٰهِ۔

الله ددے نه ډير عزتمن دے چه داسے زړه په منافقت باندے اخته کړی چه هغه الله

یادونکے وی۔
وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ: دا اشاره ده ترك د ذكر الله ته په سبب د مال او اولاد سره۔
الْخَاسِرُوْنَ: د تاوان وجه دا ده چه دوئ د لوی الله نه محروم شول. او باقی لره ئے تباه کړو په فانی څیز سره، او عمر (رأس المال) ئے تباه شو۔
وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ: د منافقانو بل خصلت دا دے چه دوئ د الله دپاره مال نهٔ لګوی۔ نو الله ایمان والو ته فرمائی چه تاسو مالونه ولګوئ مخکښې ددے نه چه تاسو له مرګ راشی، او تاسو د افسوس ورغوی مروړئ، او هغه وخت نهٔ پوره کیدونکے آرزو کوئ، او وایئ: چه اے ربه! تهٔ ماله لږ شان مهلت راکه دے دپاره چه صدقه خیرات اوکړم او د نیکو کارونو کونکو نه جوړ شم۔ دے کښې فرضی زکٰوة او نفلی صدقات ټول داخل دی۔ خو ظاهر پدے کښې نفلی انفاق دے، مؤمن پدے سره د منافق نه جدا کیږی۔
لولا: لولا استفهامیه دے، یا لو تمنائیه دے او لا زائد دے۔
فَاَصَّدَّقَ: دلته جمله شرطیه پټه ده اَیْ اِنْ اَخَّرْتَنِیْ فَاَصَّدَّقَ ۔ که تا ما ته مهلت راکړو نو زهٔ به خیرات وکړم۔ اَصَّدَّقَ په اصل کښې اَتَصَدَّقُ دے۔ تاء په صاد سره بدله شوه او صاد په صاد کښې مدغم شو۔ او اصدق منصوب دے ځکه چه دا جواب تمنی دے او پدے کښې ان ناصبه مقدر راځی۔ ای فان اصدق۔ او پدے ادغام کښې اشاره ده مبالغه کولو ته په صدقه کولو کښې۔ یعنی زهٔ به ډیرے صدقے وکړم۔
وَاَكُنْ: دا مجزوم دے عطف دے په محل د (اَصَّدَّقَ) باندے ځکه چه هغه محلًا خبر د (ان اخبرتنی) دے۔ او جزاء د شرط مجزوم وی۔
مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ: ددے نه مراد بعض وائی چه مونځ کونکی دی، ظاهر دا ده چه ددے نه مراد نور نیك اعمال دی سوئ د صدقے نه۔ ایمان راوړل، اتباع د سنت کول، د ګناهونو نه توبه ویستل وغیره۔
**فائده**: مفسر الکیا هراسیؒ لیکلی دی: ﴿وَاَنْفِقُوْا مِنْ مَّا رَزَقْنٰكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾ الآیة دلیل دے چه زکاة د واجبیدو نه پس اداء کول ضروری دی۔
ترمذیؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړے چه چا سره مال وی او هغه حج نهٔ کوی، یا د زکاة واجبیدو نه پس هغه نهٔ اداء کوی، نو هغه به د مرګ په وخت دنیا ته د دوباره واپس کیدو آرزو کوی۔ بیا ئے دا آیت اولوستلو۔ وبالله التوفیق۔

**فائده ۲:** عبد الله بن عباس ﷺ به ونیل چه هر شے زهٔ د قرآن نه معلوموم. چا ورته وویل چه د رسول الله ﷺ مرگ د کوم آیت نه معلوم دے؟،
نو هغه وفرمایل چه ددے آیت د سورة المنافقون نه، ځکه چه دلته دا ذکر دی چه د چا نیته پوره شی نو الله تعالیٰ ئے نهٔ روستو کوی، او دا درے شپیتم سورت دے، او روستو ترے تغابن ذکر دے، او تغابن معنیٰ ده لوی تاوان نو ما چه وکتل نو پته ولګیده چه غټ تاوان د رسول الله ﷺ مرگ دے، نو پدے کښ د رسول الله ﷺ حالاتو ته اشاره ده.

## امتیازات د سورة المنافقون

۱- د منافقانو ګنړ صفتونه.
۲- مؤمنانو ته تحذیر د صفاتو د منافقانو نه.
۳- د عبد الله بن ابی ابن سلول منافقانه روّیه.

ختم شو تفسیر د سورة المنافقون په اوله شپه د رمضان ۱۴۳۷ هـ. ۶/جون/۲۰۱۶)

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ط

| ركوعاتها (٢) | (٦٤) سورة التغابن مدنية (١٠٨) | آياتها (١٨) |
|---|---|---|

سورة تغابن مدني دے، په دے کښې اتلس آيتونه او دوه رکوع دي.

## تفسير سورة التغابن

نوم : دے ته سورة التغابن وائي . د تغابن معنیٰ ده تاوان ښکاره کيدل. او دا د قيامت نوم هم دے نو په دغه ورځ به د خلقو تاوان راښکاره شي.

د نازليدو زمانه : د اکثرو په نيز دا سورت مدني دے. البته ضحاكؒ وائي چه دا مکي دے، او د کلبي وينا ده چه ددے څۀ آيتونه مکي او څۀ مدني دي.

نحاسؒ د ابن عباس ﷺ نه روايت کړے چه سورة التغابن په مکه کښې نازل شوے وو، صرف آخري څو آيتونه د عوف بن مالك اشجعي ﷺ په باره کښې په مدينه کښې نازل شوي وو. هغۀ نبي کريم ﷺ ته د خپل ځان سره د خپل اهل او عيال د بد چلنې ذکر وکړو، نو ﴿ يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ فَاحْذَرُوْهُمْ ﴾ نه تر سورت آخره پورے نازل شو.

مناسبت :

۱- مخکښې د منافقانو بد صفات ذکر شول، نو دلته وائي چه د قيامت په ورځ به ددے خلقو تغابن (نقصان) راښکاره شي.

۲- د مخکښې سورت په آخر کښې ئے مرګ ذکر کړو، نو دلته وائي چه که څوك کفر کښې مړ شو نو لوی تاوان به ئے راښکاره شي.

۳- دارنګه مخکښې سورتونو کښې په يهوديانو او منافقانو باندے رد وو، نو پدے

سورت کښې په مشرکينو او په منکرينو د بعث بعد الموت باندې رد دې.

٤- مخکښې سورت کښې د منافقانو انکار د رسول الله ﷺ نه ذکر شو په طريقه د منافقت سره، نو پدې سورت کښې ترغيب دې ايمان بالرسول ﷺ ته.

٥- مخکښې سورت کښې ئې وفرمايل: ﴿لَا تُلْهِكُمْ اَمْوَالُكُمْ وَلَا اَوْلَادُكُمْ عَنْ ذِكْرِ اللهِ﴾.

نو پدې سورت کښې د هغې علت ذکر کوی په ﴿اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِكُمْ وَاَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا لَّكُمْ﴾ او ﴿اِنَّمَا اَمْوَالُكُمْ وَاَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ سره.

## موضوع او مقصد د سورت

اِظْهَارُ غَبْنِ الْكُفَّارِ بِالْكُفْرِ وَفَلَاحُ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْاِيْمَانِ.

په کفر کولو سره د کافرانو د تاوان رابنکاره کول، او په ايمان سره د مؤمنانو کاميابی ذکر کوی.

دا وجه ده پدې سورت کښې د کفر او ايمان لفظ ډير ذکر دې. په اوله رکوع کښې په کفر باندې ردونه ذکر دی، او په دويمه رکوع کښې مؤمنانو ته آداب ذکر دی دپاره د کاميابئ د هغوی.

| يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ |
|---|
| پاکی وائی الله لره هغه څۀ چه په آسمانونو او هغه څۀ چه په زمکه کښې دی، |
| لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ |
| خاص هغۀ لره بادشاهی ده، او خاص هغۀ لره ستاينه ده او هغه په هر شی باندې |
| قَدِيْرٌ ﴿١﴾ هُوَ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ |
| قادر دې. خاص الله هغه ذات دې چه پيدا کړی ئې يئ تاسو نو بعض ستاسو نه |
| كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ |
| کافر دی او بعض ستاسو نه مؤمن دی، او الله په هغه عملونو چه تاسو ئې کوئ |

| |
|---|
| بَصِيرٌ ﴿٢﴾ خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ وَصَوَّرَكُمْ |
| لیدونکے دے۔ پیدا کړی نے دی آسمانونه او زمکه په حق سره او شکل نے درکړے |
| فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ ﴿٣﴾ |
| تاسو ته نو ښائسته کړی نے دی شکلونه ستاسو او خاص هغهٔ ته ورګرځیدل دی۔ |
| يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَيَعْلَمُ مَا |
| پو هیږی په هغه څهٔ چه په آسمانونو او په زمکه کښې دی او پو هیږی په هغه څهٔ |
| تُسِرُّوْنَ وَمَا تُعْلِنُوْنَ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ |
| چه تاسو نے پټوئ او هغه څهٔ چه تاسو نے ښکاره کوئ او الله پو هه دے |
| بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿٤﴾ |
| په هغه خبرو چه سینو کښې دی۔ |

**تفسیر**: په ابتدائی آیتونو کښې د الله عظمت ولے ذکر کوی؟ نو :

اَلْعَظَمَةُ لِرَدِّ الْكُفْرِ وَلِجَلْبِ الْإِيْمَانِ۔ یعنی د الله عظمت ددے دپاره ذکر کوی چه کفر رد کړی، او د خلقو ایمان راخکاږی، یعنی دومره لوی الله دے موجود وی او بندګان په هغه باندے کفر کوی، او ایمان دے پرے نهٔ راوړی۔

**لَهُ الْمُلْكُ**: پوره او ټوله بادشاهی د دنیا او د آخرت خاص الله تعالیٰ لره ده، نو دا دلیل دے چه په الله تعالیٰ کښې هیڅ صفت د نقصان نشته۔

**وَلَهُ الْحَمْدُ** : د کمال ټول صفتونه خاص هغهٔ لره ثابت دی، او هغه نے مستحق دے ځکه چه هغه د ټولو نعمتونو ورکونکے دے نو د حمد لائق دے۔

او تسبیح بیانول د هغهٔ حق دے ځکه چه هغهٔ کښې هیڅ قسم عجز او مجبوری نشته بلکه په هر شی باندے کامل قدرت لرونکے دے۔

داسے صفاتو کښې تدبر کولو سره د بنده د الله تعالیٰ سره محبت پیدا کیږی۔

هُوَ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ: (۱) مفسر ابو السعودؒ ددے تفسیر دا بیان کړے چه الله

تعالیٰ انسانان د ټولو نه په ښهٔ شکل کښې پیدا کړل، په دوئ کښې ئې د علمي او عملي کمالاتو قبلولو صلاحیت کیښودهٔ، په دوئ کښې بعضو د خپل پیدائش د تقاضې خِلاف د حقې کلمې نه انکار اوکړو او کفر ئې غوره کړو، او بعضو د خپل پیدائش د تقاضې مطابق په الله باندې د ایمان لاره اختیار کړه، او په دې باندې روان شو۔

د دوئ د پیدائش تقاضا دا وه چه دوئ ټولو صرف ایمان اختیار کړې وې، او د خپل خالق او مُوجِد د پیدائش د نعمت او د هغهٔ د نورو نعمتونو شکر ئې اداء کولے، لیکن دوئ داسې اونهٔ کړل، بلکه په مختلفو ډلو او ګروپونو کښې تقسیم شول۔

(۲) بعض وائي : دلته کفر او ایمان تقدیري مراد دي، یعنی الله تعالیٰ په تقدیر کښې څوک کافر مقرر کړیدې او څوک مؤمن۔ نو خالق او تقدیر کونکے الله تعالیٰ دے، او د کفر او د ایمان کسب کونکے بنده دے۔ اول تفسیر غوره دے۔

فَمِنْكُمْ كَافِرٌ : مفسرین لیکي : د مومن نه مخکښې کافر څکه ذکر شوے دے چه په مکي زندګئ کښې د کافرانو اکثریت وو، او دے وجے نه هم چه د زجر او رټنے مقام ددے تقاضا کوي۔

او بله دا چه په انسانانو کښې اکثر انکار کونکي وي۔ ﴿وَأَكْثَرُهُمُ الْكَافِرُوْنَ﴾ (النحل : ۸۳)

بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ : یعنی اے خلقو ! الله ستاسو د اعمالو نه ښهٔ خبر دے، یوه ذره هم د هغهٔ نه پټه نهٔ ده، او هغه به خامخا تاسو ته ستاسو د دغه اعمالو مطابق بدله درکوي۔

خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ : الله تعالیٰ آسمانونه او زمکه د یو خاص غرض او مقصد دپاره پیدا کړي، دا ئې بے مقصده نهٔ دي پیدا کړي۔

او دا د الله د معرفت دپاره پیدا شویدي، د کفر دپاره نهٔ دي پیدا شوي۔

وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ : یعنی انسانان ئې د ټولو نه په ښائسته شکل او صورت کښې پیدا کړي دي، دوئ له ئې انتهائي درمیانه مزاج ورکړے، د عقل، د خبرو طاقت، د آوریدو طاقت سره ئې پرے پیرزو وکړه، او په مخلوقاتو کښې د تصرف کولو او ددے نه د فائدے حاصلولو صلاحیت ئې ورکړو۔ نو دا ښائسته شکل او صورت بندګان ولے د غیر الله دپاره استعمال کړي او الله ته پرے سجده نهٔ کوي۔

الله تعالیٰ همدا مقصد د سورتِ غافر په (٦٤) آیت کښې داسې فرمائیلي دے :

﴿ وَصَوَّرَكُمْ فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ وَرَزَقَكُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ ﴾

(او هغهٔ ستاسو شکل او صورت جوړ کړو، نو تاسو له ئے ډیر ښهٔ صورت درکړو، او د روزئ په توګه ئے تاسو له عُمده څیزونه درکړل).

او د سورتِ تین په (٤) آیت کښې ئے فرمایلي دي:

﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ﴾

(مونږ انسان په ډیر زیات ښائسته شکل او صورت کښې پیدا کړے). انسان دا ارمان نهٔ کوي چه ددهٔ صورت دے د نورو حیواناتو د شکلونو په شان شوے وے.

فَأَحْسَنَ صُوَرَكُمْ: حُسن په اعتبار د باطن او د ظاهر دواړو سره وي، او جمال صرف په ظاهر کښې وي نو په انسان کښې باطني او معنوي صفات او تناسب د اندامونو او سیده قد وقامت داسې دے چه په نور مخلوق کښې نشته.

بعض حکماؤ وئیلي دي چه د دوه څیزونو هیڅ انتهاء نشته، یو جمال (ښائست) او بیان. او بل تصویر او تخطیط او تشکیل.

وَإِلَيْهِ الْمَصِيْرُ: یعني په هر صورت کښې د قیامت په ورځ هغهٔ طرفته واپس کیدل دي، دے دپاره چه هغه دوئ ته د نیکو او بدو اعمالو بدله ورکړي. نو بندګانو له پکار دي چه په خپل حسن او صورت باندے تکبر ونکړي بلکه آخرت دے رایاد کړي.

يَعْلَمُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ: دا بل دلیل دے، مخکښې صفات د تصرف بیان شو اُوس صفت د علم بیانیږي، او د علم درے کلیات ئے ذکر کړیدي چه هر یو کلي په بے شماره جزئیاتو باندے مشتمل دے.

اول مَا فِي السَّمٰوٰتِ، او دویم مَا تُسِرُّوْنَ او دریم ذَاتِ الصُّدُوْرِ.

او هر یو د بل نه اخص دے. او دا ئے راجمع کړل پدے کښې اشاره ده چه د الله تعالیٰ علم په جزئیاتو او کلیاتو احاطه کونکے دے، هیڅ شے د هغهٔ د علم نه بهر نشته.

عَلِيْمٌ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ: یعني الله تعالیٰ د سینو په خبرو پوهه دے نو دے وجے نه بندګانو له پکار دي چه دوئ خپل باطن د بدو اخلاقو نه پاك ساتي، او هغه ښائسته اخلاق اختیار کړي چه هغې سره الله خوشحالیږي.

| أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَبْلُ |
|---|
| آیا نهٔ دے راغلے تاسو ته خبر د هغه کسانو چه کفر ئے کړیدے مخکښ |
| فَذَاقُوا وَبَالَ أَمْرِهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٥﴾ ذٰلِكَ |
| نو اُوڅکله دوی سزا د کار د دوی او دوی لره عذاب دردناك دے۔ دا پدے وجه |
| بِأَنَّهُ كَانَتْ تَأْتِيهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَقَالُوا |
| چه بیشکه دوی ته راتلل رسولان د دوی په ښکاره دلیلونو نو اُووئیل دوی |
| أَبَشَرٌ يَهْدُونَنَا فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوْا |
| آیا بندګان دی چه لاره ښائی مونږ ته نو کفرئے اُوکړو او مخ ئے واړولو، |
| وَّاسْتَغْنَى اللّٰهُ وَاللّٰهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٦﴾ |
| او بے پرواهی ښکاره الله تعالیٰ، او الله بے حاجته ستائیلے شویدے۔ |

**تفسیر** : اُوس په کفر کولو باندے تخویف دنیوی ذکر کوی۔ چه کفر دومره قبیحه ګناه ده چه پدے سره الله تعالیٰ ډیر انسانان تباه کړیدی۔

آیا تاسو ته د هغوی د هلاکت خبرونه نهٔ دی راغلی لکه د نوح ﷺ عادیان، ثمودیان او د لوط ﷺ قومونه، څنګه الله تعالیٰ د زمکے نه د هغوئ وجود ختم کړو، او کله چه قیامت راشی نو هغه به هغوئ له دردناك عذاب ورکوی۔

وَبَالَ أَمْرِهِمْ: وبال په اصل کښ ثقل او شدت ته وئیلے کیږی۔ دلته ترے سزا مراد ده، او سزا نه ئے په وبال سره تعبیر وکړو، اشاره ده چه دا سزا داسے محسوس کیده لکه یو درون شے چه محسوس کیږی۔

ذٰلِكَ بِأَنَّهُ: یعنی دا هر څهٔ دوئ سره څکه اوشو چه دوئ ته به د الله تعالیٰ پیغمبران په ښکاره او واضحو نښو سره راتلل، نو په تکبر کښ به راغلل او هغه به ئے دروغژن وګنړل، او هغوئ پورے به ئے د توقو کولو په توګه وئیل چه اوګورئ دوئ! دا زمونږ غونته انسانان دی، او دعوئ کوی چه دوئ زمونږ هادی او لارښود دی۔

بیا به هغوئ د الله د حق پیغام، دین او رسول نه انکار اوکړو، او د سرکشئ لاره به ئے اختیار کړه، نو الله به هم د دوئ د ایمان او د دوئ د بندګئ نه بے نیازی ښکاره کړه او دوئ به ئے هلاک کړل۔ ځکه چه الله تعالیٰ د خپلو تمامو مخلوقاتو او د خپلو بندګانو د ایمان او عمل نه بیخی بے نیازه دے، هغه د هیڅ یو شئ محتاج نهٔ دے، او هر شے د هغهٔ محتاج دے۔

او د تمامو حمدونو او ثناء هغه یواځے حقدار دے، او هر مخلوق په هر حال کښ او په هره طریقه باندے د هغهٔ تعریف بیانوی۔

اَبَشَرٌ: دا اِسم جنس دے مفرد او جمع دواړو دپاره استعمالیږی، دلته ئے ورته ضمیر د جمع راجع کړیدے۔

فَكَفَرُوا: اَیْ بِالْقَلْبِ۔ یعنی په زړهٔ سره ئے په پیغمبرانو باندے کفر وکړو۔

وَتَوَلَّوْا: اَیْ عَمَلاً۔ او په عملی طور سره د هغوی نه واوړیدل، د هغوی تابعداری ئے ونکړه۔ او د هغوی په تعلیماتو او بیّناتو کښ ئے هیڅ سوچ ونکړو۔

وَّاسْتَغْنَى اللهُ: اَیْ اَظْهَرَ غِنَاهُ عَنْ اِیْمَانِهِمْ۔ الله خپله غنا (بے نیازی) راښکاره کړه د دوئ د ایمان نه۔

| زَعَمَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا اَنْ لَّنْ يُّبْعَثُوْا قُلْ بَلٰى |
|---|
| ګمان کوی کافران چه هیچرے به دوی راپورته نکړے شی تهٔ ورته اُووایه ! ولے نهٔ |
| وَرَبِّىْ لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ |
| قسم مے دے په رب زما خامخا تاسو به راپورته کولے شئ بیا به خبر درکړے شی تاسو |
| بِمَا عَمِلْتُمْ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرٌ ﴿٧﴾ |
| ته په هغه عملونو چه تاسو کړیدی او دا کار په الله باندے آسان دے۔ |
| فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالنُّوْرِ الَّذِىْٓ اَنْزَلْنَا |
| پس ایمان راوړئ په الله او په رسول د هغهٔ او په هغه رڼرا چه رالیږلے ده مونږ |

| وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ ﴿۸﴾ |
| --- |
| او الله په هغه عملونو چه تاسو ئے کوئ خبردار دے۔ |

**تفسیر** : پدے آیت کښې زجر دے په انکار د بعث بعد الموت باندے۔ او دا د (فَكَفَرُوْا) کښې د کفر یو صورت دے۔

الله تعالیٰ د کافرانو د کبر او عناد او د دوئ ددے باطل گمان رد کړے دے چه دوئ به دوباره ژوندی نهٔ کړے شي۔

او بعض مفسرین وائي چه دا د عاص بن وائل سهمي په باره کښې نازل وو چه د خباب بن الارت رضی الله عنه د قرض نه ئے انکار وکړو او کله چه هغهٔ په آخرت سره ویرولو نو عاص وویل چه اول خو دوباره ژوندی کیدل نشته او که بالفرض زهٔ دوباره ژوندے شوم نو هلته به ستا قرض ادا کړم۔ (مسخرے ئے کولے)۔ لکه چه ددے تفصیل د سورة مریم په آیت (۷۷) کښې ذکر شویدے۔ (قرطبی)

زَعَمَ : زعم اکثر په باطل او دروغو کښې استعمالیږی، او په گمان باندے خبره کول، او د علم دعوه کولو دپاره استعمالیږی۔

قاضی شُرَیح وائي: [لِكُلِّ شَيْءٍ كُنْيَةٌ وَكُنْيَةُ الْكَذِبِ زَعَمُوْا] د هر شی کنیت وی او د دروغو کنیت زَعَمُوْا لفظ دے۔ (قرطبی ومفاتیح الغیب والتحریر)

او کله په معنیٰ د نفس قول سره استعمالیږی۔

خو کله چه ددے په فاعل باندے یقین نهٔ وی، او بے دلیله بل چا ته نسبت کوی، نو په هغه وخت کښې به دا کلمه استعمالول منع وی، لکه په روایت د ابوداود کښې دی :

(بِئْسَ مَطِيَّةُ الرَّجُلِ زَعَمُوْا) (ابوداود : ۴۹۷۲) وصحیح الجامع : ۲۸۴۶)

(د سړی ناکاره سورلی زَعَمُوْا لفظ دے)۔ یعنی لکه چه یو تن په سورلئ سره مقصد ته رسیږی نو دغه شان یو تن د خپل کلام نه مخکښې زَعَمُوْا لفظ استعمال کړی پدے سره خپل حاجت ته خان رسوی، نو رسول الله ﷺ حکم وکړو چه کومه خبره نقل کوئ نو په هغے کښې تثبت او احتیاط وکړئ او ترڅو پورے چه یوه خبره او حدیث ډیر د ثقه (معتمد) انسان نه نهٔ وی آوریدلے نو همداسے ئے مهٔ نقل کوه۔ (البانیؒ فی الصحیحة)

قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ : دا په قرآن کریم کښې څلورم ځای دے چه د الله تعالیٰ په ربوبیت قسم

شویدے دپاره د اثبات د بعث. الله خپل نبی ته حکم وکړو چه د دوئ د باطل ګمان رد وکړی، او د هغوئ په دل او دماغو کښې ددے خبرے اچولو کوشش وکړی چه قیامت به خامخا راځی، او دوئ به دوباره خامخا پورته کیږی، او دوئ له به د دوئ د کړو خبر ورکړے شی. او دا کار کول الله تعالیٰ ته نهایتِ آسان دی.

اولنے آیت د سورتِ یونس (۵۳) ﴿ وَيَسْتَنْبِئُوْنَكَ أَحَقٌّ هُوَ قُلْ إِيْ وَرَبِّيْ إِنَّهُ لَحَقٌّ ﴾ دے چه ددے ترجمه ده (او دوئ تانه تپوس کوی چه آیا د آخرت عذاب واقعی حق دے. ته اووایه چه هاؤ! قسم دے زما په رب باندے، هغه واقعی رشتینے دے).

او دویم آیت د سورة مریم (۶۸) ﴿ فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِيْنَ ﴾

او قسم دے په رب ستا چه خامخا به دوی راجمع کړم او شیطانان هم.

او دریم د سورتِ سبا (۳) ﴿ وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَا تَأْتِيْنَا السَّاعَةُ قُلْ بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَأْتِيَنَّكُمْ ﴾ دے، چه ددے ترجمه ده: (او کافران وائی چه په مونږ به قیامت نۀ راځی، تۀ اووایه چه هاؤ! په رب مے دے قسَم وی! هغه به په تاسو خامخا راځی).

او څلورم دا ځای شو.

فَآمِنُوْا: هرکله چه د قیامت راتلل، د تمامو انسانانو دوباره ژوندی کیدل، او جزاء او سزا یقینی ده، نو څه کول پکار دی؟ نو الله تعالیٰ ایمان ته ترغیب ورکوی چه د نقصان او تاوان نه بچ شی.

نو اے خلقو! ستاسو دپاره په همدے کښې ښیګړه ده چه په الله، د هغۀ په رسول، او په قرآن کریم ایمان راوړئ چه دا کامله رڼړا ده چه دا رڼړا به د کفر او ناپوهئ تیَرے بیخی ختمے کړی، او ددے په دولت سره به انسان په نیغه لاره بیغمه روان وی چه دۀ لره به دا جنتِ الفردوس ته اُورسوی.

وَالنُّوْرِ الَّذِيْ: ددے نه مراد ټوله وحی او خصوصًا قرآن کریم دے چه ددے په ذریعه د تیارو د ګمراهئ او د جهل نه خلاصے حاصلیږی.

او دلته ئے په قیامت باندے ایمان ذکر نکړو څکه چه قرآن کریم باندے ایمان راوړو سره په قیامت او جزاء او سزا باندے هم ایمان راځی.

| |
|---|
| يَوْمَ يَجْمَعُكُمْ لِيَوْمِ الْجَمْعِ ذٰلِكَ يَوْمُ التَّغَابُنِ |
| په هغه ورځ جمع به کړي تاسو ورځ د جمع کولو ته دا ورځ د نقصان ښکاره کیدو ده |
| وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُكَفِّرْ |
| او چا چه ایمان راوړو په الله باندے او عمل ئے وکړو د سنت مطابق نو وُبه رژوی |
| عَنْهُ سَيِّئَاتِهٖ وَيُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ |
| د هغهٔ نه گناهونه د هغهٔ او داخل به ئے کړی جنتونو ته چه بهیږی به |
| مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿٩﴾ |
| لاندے د هغے نه ولے همیشه به وی په هغے کښې همیشه، دا کامیابی لویه ده۔ |
| وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ |
| او هغه کسان چه کفرئے کړیدے او دروغژن گنړی آیتونه زمونږ دا کسان اُور والا دی |
| خٰلِدِيْنَ فِيْهَا وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿١٠﴾ |
| همیشه به وی پدے کښې او بد دے ځائے د ورګرځیدو۔ |

**تفسیر** : اُوس د قیامت د ورځے زیاتی تفصیل کوی، او ددے تعلق د پورتنو دواړو آیتونو سره دے چه په هغے کښې دا بیان شو چه د قیامت په ورځ به انسان له د هغهٔ د اعمالو خبر ورکړے کیږی۔ نو فرمائی چه په دے ورځ به الله تعالیٰ تمام انسانان راجمع کړی کوم چه د انسانیت د پیدائش نه واخله تر دنیا ختمیدو پورے په دنیا کښې موندلے کیږی۔ یعنی د ایمان او د نیک اعمالو پوره فائده به په قیامت کښې رابنکاره کیږی۔

**يَوْمَ**: دا منصوب دے په (اُذْكُرْ) سره۔

**لِيَوْمِ الْجَمْعِ** : دا د قیامت د ورځے یو نوم دے ځکه چه پدے ورځ کښې به ټول اولین او آخرین تمام انسانان او پیریان او زمکے او آسمانونو والا او انبیاء علیهم السلام او د هغوی امتونه، او ظالمان او مظلومین، او ټول اعمال جمع کیږی لکه دا صفت ئے په

سورة هود (۱۰۳) او سورة الواقعه (۵۰) آيت كښې ذكر دے۔

**يَوْمُ التَّغَابُنِ**: دا د غبن نه ماخوذ دے، په لغت كښې د قيمت نقصان ته وئيلے كيږي، كله چه يو انسان يو قيمتي شے په كم قيمت خرڅ كړي نو خلق وائي : فلانى غبن وكړو۔ يعني دا ورځ ده د نقصان وركولو۔ نو د تغابن معنىٰ ده :

اَىْ يَتَغَابَنُ فِيْهِ السُّعَدَاءُ الْاَشْقِيَاءَ بِاِيْرَاثِ مَنَازِلِهِمْ ۔ نيك بخته خلق به بدبختانو ته نقصان وركړي، پدے طريقه چه د جهنميانو دپاره په جنت كښې كوم مقامات مقرر شوي وو هغه به ترے جنتيان واخلي۔ نو نقصان به وركړي۔ (القرطبي، والطبري)

۲- دويم تغابن كښې معنىٰ د اظهار ده۔ يعني دا ورځ ده د تاوان راښكاره كيدو۔

اَىْ يَظْهَرُ فِيْهِ غَبْنُ الْكَافِرِ وَيَظْهَرُ غَبْنُ الْمُؤْمِنِ غَيْرِ الْمُحْسِنِ۔

پدے ورځ به د كافر غبن راښكاره شي چه د ايمان نه محروم شو او د مؤمن چه مُحسن نهٔ وي د هغه غبن به پكښې راښكاره شي چه ولے ئے اُوچتے درجے ونهٔ گټلے۔

(قرطبي وغيره)

**حكمة** : ذلك يوم التغابن : د قيامت ورځے ته ئے صرف د تغابن ورځ ووئيله ؟ (لكه چه د مبتداء او خبر د تعريف نه حصر فهميږي) وجه دا ده چه د آخرت نقصان كامل نقصان دے، چه د هغے جبيره او تدارك نهٔ كيږي او دنيا كښې اگركه نقصانونه شته ليكن هغه كامل نقصان نهٔ دے، د هغے تدارك كيدے شي۔

**فائده** : امام قرطبيؒ د حسن او قتادهٔ نه نقل كړيدي چه هغوي وئيلي دي : مونږ ته رارسيدلي دي چه تغابن به په درے قسمه خلقو كښې وي۔

(۱) يو هغه سړے چه علم ئے زدهٔ كړيدے او بل ته ئے بيان كړيدے ليكن خپله ئے پرے عمل نهٔ دے كړے نو دے پدے سره بد بخته شو۔ او چا چه ددهٔ نه زده كړيدے هغه پرے عمل وكړو نو هغهٔ پرے نجات ومندو۔

(۲) هغه سړے چه مال ئے د مختلفو لارو نه پيدا كړو بيا ددهٔ نه د هغے سوال كيږي مگر دے پرے بخل كوي او د خپل رب په طاعت كښې د مال په وجه كوتاهي كوي او په هغے كښې خير خيگړه نهٔ كوي، او وارث ته ئے پريدي چه په هغهٔ باندے ددے حساب (هم) نهٔ وي مگر هغهٔ پدے مال كښې د الله تعالىٰ طاعت وكړي۔

(۳) هغه سړے چه د هغهٔ يو غلام وي نو هغه د خپل رب طاعت وكړي نو نيك بخته

شي او مالك ئې د رب نافرماني وکړي نو بد بخته شي. (تفسیر القرطبي)

وَمَنْ يُؤْمِنْ : اُوس وائي چه د غبن نه به څنګه بچ کيږو ؟ نو الله ترغيب ايمان او عمل صالح ته ورکوي چه پدې سره بچاؤ راځي، ددې وجه نه دې ته ئې فوز عظيم وئيلې دې.

د نبي کريم ﷺ يو صحيح حديث دې :

[لَا يَدْخُلُ اَحَدٌ الْجَنَّةَ اِلَّا اُرِيَ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ لَوْ اَسَاءَ لِيَزْدَادَ شُكْرًا، وَلَا يَدْخُلُ النَّارَ اَحَدٌ اِلَّا اُرِيَ مَقْعَدَهٗ مِنَ الْجَنَّةِ لَوْ اَحْسَنَ لِيَكُوْنَ عَلَيْهِ حَسْرَةً] (بخاري : ٦٥٦٩)

چه کله يو بنده جنت ته داخل کړې شي نو هغهٔ ته به په جهنم کښې د هغهٔ هغه مخصوص ځائې اوښودلې شي، چه په دې کښې که هغهٔ بد عملونه کولې نو داخليدلو به، دې دپاره چه د الله زياتي شکر اداء کړي.

او کله چه کوم بنده جهنم ته داخل کړې شي نو دهٔ ته به په جنت کښې ددهٔ مخصوص ځائې اوښودلې شي چه په دې کښې به دې که دهٔ ښهٔ اعمال کولې نو داخليدلو به، دې دپاره چه ددهٔ افسوس او نا اميدي نوره هم زياته شي.

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا : پدې آيت کښې د قيامت په ورځ د کافرانو د شقاوت او بدبختئ سبب بيان شوې چه کوم خلق په دنيا کښې د کفر لاره غوره کړي، او د الله آيتونه د کبر او عناد د وجې نه دروغژن ګنړي، په آخرت کښې به د دوئ د اُوسيدو ځاى جهنم وى.

**حکمة** : وَمَنْ يُؤْمِنْ ئې په صيغه د مضارع سره او (كَفَرُوْا) ئې په صيغه د ماضي سره ذکر کړو، ددې وجه دا ده چه اول ئې يوم التغابن ذکر کړو،

او اصل تغابن والا خو کافران دي، نو د هغې نه د نجات دپاره ايمان راوړل او عمل صالح کول دي، نو کفر مخکښې دې، او ايمان او عمل صالح روستو حاصليږي، نو تقدير د عبارت داسې دې :

(وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ مِنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا)

چا چه ايمان راوړو د هغه کسانو نه چه کفرئې کړېدې.

او د وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا مطلب دا دې (وَمَنْ لَّمْ يُؤْمِنْ مِنْهُمْ فَاُولٰئِكَ اَصْحَابُ النَّارِ) چا چه د دوئ نه ايمان نهٔ دې راوړې نو دغه کسان اُور والا دي.

| مَا أَصَابَ مِنْ مُّصِيبَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ وَمَنْ يُّؤْمِن |
|---|
| نۀ رسیږی هیڅ مصیبت مګر په حکم (تقدیر) د الله تعالیٰ سره او چا چه ایمان راوړو |
| بِاللهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ وَاللهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١١﴾ |
| په الله باندے کلک به کړی زړهٔ د هغهٔ، او الله په هر شی باندے پو هه دے۔ |
| وَأَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ |
| او تابعداری کوئ د الله او تابعداری کوئ د رسول نو که چرته اُوګرځیدئ تاسو |
| فَإِنَّمَا عَلٰى رَسُولِنَا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ ﴿١٢﴾ اَللهُ لَا إِلٰهَ |
| نو یقیناً په رسول زمونږ رَسول ښکاره دی۔ الله تعالیٰ چه دے نشته حقدار د بندګئ |
| إِلَّا هُوَ وَعَلَى اللهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ ﴿١٣﴾ |
| سوئ د هغهٔ نه او خاص په الله باندے دِے ځان اُوسپاری مؤمنان۔ |

**تفسیر** : پدے آیتونو کښی مؤمنانو ته آداب ورکوی چه کله مصیبت راشی، نو دا د الله په اذن سره راغلے وی، نو په الله توکل کوئ، صبر نه کار اخلئ۔

او تقدیر ته اشاره ده چه په تقدیر ایمان ولرئ چه مصیبتونه درته آسان شی۔

او دا د (فَآمِنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهٖ) سره متعلق دے په طریقه د جواب د سوال سره۔

**سوال** دا دے چه په توحید و اتباع د قرآن او سنت کښی ډیر مصیبتونه راځی، نو د هغے علاج څه دے؟

حاصل د **جواب** دا دے چه هر مصیبت د الله تعالیٰ د طرفنه مقرر وی، نو هرکله چه په چا باندے مصیبت راشی، نو دا عقیده دِے وساتی چه دا د الله تعالیٰ په تقدیر سره دے، نو پدے سره به د هغهٔ زړهٔ مضبوط شی او په هدایت باندے به کلک شی۔

## شان نزول

خینو مفسرینو ددے آیتِ کریمه د نازلیدو سبب د مکے د کافرانو دا وینا بیان کړے دے :

[لَوْ كَانَ مَا عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ حَقًّا لَصَانَهُمُ اللهُ عَنِ الْمَصَائِبِ فِي الدُّنْيَا فَبَيَّنَ اللهُ تَعَالٰى أَنَّ مَا

أَصَابَ مِنْ مُصِيبَةٍ فِي نَفْسٍ أَوْ مَالٍ أَوْ قَوْلٍ أَوْ فِعْلٍ، يَقْتَضِي هَمًّا أَوْ يُوجِبُ عِقَابًا عَاجِلًا أَوْ آجِلًا فَبِعِلْمِ اللهِ وَقَضَائِهِ] (قرطبی)

چه که د مسلمانانو دین حق وے، نو الله تعالیٰ به دوئ په دنیوی مصیبتونو نهٔ اخته کولے۔ الله تعالیٰ د دوئ په جواب کښې وفرمایل چه که مصیبت هر څنګه وی، په نفس کښې وی یا په مال کښې یا په وینا او عمل کښې وی او د هغے په وجه غم راځی یا په جلتئ یا په تاخیر سره سزا راځی نو دا هر یو انسان ته د الله په حکم او د هغهٔ په مشیت (او ارادے) سره رسیږی، په دے باره کښې نیکان او بدان ټول برابر دی۔ لیکن کوم مومن بنده چه په دے خبره یقین لری چه دهٔ ته چه کوم مصیبت اورسیدهٔ، هغه د الله تقدیر او د هغهٔ د مشیت مطابق دے، الله تعالیٰ ددهٔ ایمان زیاتوی، او دهٔ ته د زړهٔ سکون ورکوی، او د قیامت په ورځ به دهٔ له لوی اجر ورکوی، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ زمر په (۱۰) آیت کښې فرمایلی دی:

﴿ إِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُونَ أَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴾

(صبر کونکو له به بے حسابه اجر ورکړے کیږی)۔

لیکن کوم بنده چه د صبر لمنه پریدی، د الله په تقدیر راضی نهٔ وی، او جزع فزع کوی، الله تعالیٰ دا ددهٔ نفس ته حواله کوی، او د قیامت په ورځ به دهٔ له هیڅ بنه بدله نهٔ ملاویږی۔

وَمَنْ يُؤْمِنْ بِاللهِ: یعنی لکه څنګه چه د ایمان فائده په آخرت کښې شته، نو دغه شان په دنیا کښې هم شته هغه دا چه الله تعالیٰ ئے زړهٔ ته هدایت کوی۔

دلته د هدایت د زړهٔ نه څه مراد دے؟

۱- نو ابن قُتیبةؒ او کلبیؒ وائی: إِذَا ابْتُلِيَ صَبَرَ، وَإِذَا أُنْعِمَ عَلَيْهِ شَكَرَ وَإِذَا ظُلِمَ غَفَرَ۔

کله چه په دهٔ باندے مصیبت راشی صبر کوی، او کله چه پرے نعمت وکړے شی، شکر کوی، او کله چه پرے ظلم وکړے شی معافی کوی۔

۲- سعید بن جبیرؒ وائی: د مصیبت د راتللو په وخت کښې به إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ وائی۔

۳- ابن عباس ﷛ وائی: [يَهْدِ قَلْبَهُ لِلْيَقِينِ، فَيَعْلَمُ أَنَّ مَا أَصَابَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَهُ، وَمَا أَخْطَأَهُ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَهُ]۔ یعنی زړهٔ ته به ئے د یقین هدایت وکړی، نو دا یقین به ئے جوړ شی چه

کوم مصیبت دهٔ ته ورسیدو نو دا نهٔ خطاء کیدو، او کوم چه نهٔ دے رسیدلے نو هغه دهٔ ته نهٔ رسیدو. یعنی د الله تعالیٰ په تقدیر به ئے یقین پیدا شی.

٤– يَهْدِ قَلْبَهُ إِلَى اتِّبَاعِ السُّنَّةِ. (ابو عثمان الحیریؒ)

ددهٔ زړه ته به هدایت وکړی اتباع د سنت ته.

٥– علقمهؒ او ابن مسعود ﷺ وائی:

هُوَ الرَّجُلُ تُصِيبُهُ مُصِيبَةٌ فَيَعْلَمُ أَنَّهَا مِنَ اللهِ فَيُسَلِّمُ لَهَا وَيَرْضَى.

یو سړی ته مصیبت ورسیږی نو دا یقین وکړی چه دا د الله د طرفنه دے نو هغے ته غاړه کیږدی او د الله نه راضی شی. یعنی د الله په تقدیر باندے راضی کیدل او د مصیبت په وخت کښ په ایمان باندے زړه کلك کیدل مراد دی.

٦– يَهْدِ قَلْبَهُ إِلَى الْعَمَلِ بِمُقْتَضَى إِيمَانِهِ وَيَشْرَحُهُ لِلْازْدِيَادِ مِنَ الطَّاعَةِ وَالْخَيْرِ.

یعنی الله تعالیٰ به ئے د ایمان د تقاضا مطابق عمل طرفته زړهٔ مائل کړی. او زړهٔ به ئے ډیرو عبادتونو او خیرونو کولو ته کولاؤ کړی. (قاسمیؒ)

٧– خطیب شربینیؒ وئیلی دی چه کله زړهٔ په هدایت باندے پوخ شی نو د هغهٔ نه هر باطل اعتقاد او بدعت او خبیث صفات زائل شی.

نو اول ادب دا شو چه په تقدیر باندے ایمان راوړی.

وَأَطِيعُوا اللهَ: دا دویم ادب دے چه د الله او د رسول طاعت به کوی. او د الله د رسول په اطاعت سره په بنده باندے مصیبتونه آسانیږی.

اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ: یعنی مخکښ آیت کښ چه الله تعالیٰ د خپل اطاعت او د خپل رسول د اطاعت حکم ورکړے دے، دا هغه الله دے چه د هغهٔ نه سوئ هیڅوك د بندګئ لائق نشته دے، دے وجے نه مومنانو له په هر حال کښ صرف په همدے قادرِ مطلق باندے بهروسه کول پکار دی.

په توکل باندے ځکه حکم کوی چه پدے سره هر قسم مصیبت آسانیږی، او په باب د دعوت کښ توکل ته انتهائی زیات ضرورت وی.

الْمُؤْمِنُونَ: لفظ د مؤمنون ئے راوړو پدے کښ اشاره ده چه د توکل او د ایمان ترمینځ تلازم دے، ایمان چه پکښ وی نو توکل به وی، او چه توکل وی نو ایمان به وی.

د ایمان لویه شعبه توکل دے.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ وَأَوْلَادِكُمْ عَدُوًّا |
| اے ایمان والو! یقیناً بعض د بیبیانو ستاسو نه او د اولادو ستاسو نه دشمنان دی |
| لَّكُمْ فَاحْذَرُوهُمْ وَإِنْ تَعْفُوا |
| ستاسو دپاره نو ځان بچ اوساتئ د دوی نه او که چرته معاف کوئ تاسو (خطائی د |
| وَتَصْفَحُوا وَتَغْفِرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ |
| هغوی) او مخ اړوئ (د ملامته کولو نه) او بخنه کوئ نو یقیناً الله بخونکے |
| رَّحِيمٌ ﴿١٤﴾ إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ ۚ |
| رحم کونکے دے۔ یقیناً مالونه ستاسو او اولاد ستاسو امتحان دے، |
| وَاللَّهُ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ ﴿١٥﴾ |
| او الله چه دے خاص د هغهٔ سره اجر لوئی دے۔ |

**تفسیر**: دا بل ادب دے۔

## شان نزول

د ابن عباس ﷺ نه ددے آیت په باره کښې یو تن تپوس وکړو نو هغهٔ وفرمایل:

[هَؤُلَاءِ رِجَالٌ أَسْلَمُوا مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ وَأَرَادُوا أَنْ يَأْتُوا النَّبِيَّ ﷺ فَأَبَى أَزْوَاجُهُمْ وَأَوْلَادُهُمْ أَنْ يَدَعُوهُمْ أَنْ يَأْتُوا رَسُولَ اللَّهِ ﷺ]

دا آیت د بعض هغه مؤمنانو په باره کښې نازل شوے وو چه په مکه کښې ئے اسلام راوړو نو رسول الله ﷺ ته ئے د هجرت اراده وکړه، بیا د دوئ ښځو او بال بچ دوئ لره د هجرت کولو نه منع کړل۔ چه تاسو ځئ مونږ چا ته پریدئ، نو د هغوی د وجه نه په مکه کښې پاتے شول (لکه ډیر کرته زنانه سړی لره د جهاد، علم او نورو اُوچتو مرتبو نه منع کوی)

[فَلَمَّا أَتَوْا رَسُولَ اللَّهِ ﷺ رَأَوُا النَّاسَ قَدْ فَقِهُوا فِي الدِّينِ هَمُّوا أَنْ يُعَاقِبُوهُمْ فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا الخ﴾]۔

(الترمذی: ٣٣١٧ سورة التغابن، باسناد حسن والطبرانی والحاکم وصححه)

؟ لـه چه دویٔ مدینے ته راغلل نو وے کتل چه دلته مؤمنانو ډیرے دینی فائدے حاصلے کړے وے، علمونه ئے زده کړی وو، جهادونه ئے کړی وو، او د هجرت په شان لوی فضیلت ئے حاصل کړے وو، او دوی ددے خیرونو نه محروم شوی وو، نو دوی اراده وکړه چه خپلو ښځو او بچو له سزا ورکړی چه د دویٔ په وجه ترے ډیر خیرونه او نیك اعمال پاتے شوی وو۔ نـو الله تـعـالیٰ دغـه مسـلـمـانـانو ته حکم وکړو چه ستاسو دا ښځے او بچی ستاسو دشمـنـان دی چه تاسو ئے د خیر نه محروم کړی یئ، آینده کښ د دوی سره په هوښیارتیا ژوند تیرویٔ چه د الله د مرضیٔ د کارونو نه مو منع نکړی، لیکن اُوس چه څه شویدی نو دویٔ معاف کړیٔ۔

او دا عـام قـانـون دے چـه مـؤمـن چـه د ایـمان کار کوی نو ډیر کرته ښځه او بچی د هغے دپاره مـانـع کـرځـی، نـو الله فـرمـائی چه دا ډے ستا دپاره مانع ونۀ کرځی، که وګرځی نو مـعـاف ئے کـړیٔ د الله دپاره لیـکن خپله کوشش کوه، هغوی ته ردے بدے مۀ وایه بلکه ځان هوښیار کړه۔

نو دا هم مسلمانانو ته ډیر ښه ادب شو۔

(۲) قتادهٔ وائی چه دے کښ هغه اولاد او ښځے هم داخل دی چه د اسلام نه ئے منع کوی او دوی کفار وی نو د دوی نه یره وکړیٔ۔

(۳) عـطاء بن یسارٔ وائی: ټول سورت په مکه کښ نازل دے سویٔ ددے آیتونو نه چه دا د عوف بن مالك اشجعی ؓ په باره کښ په مدینه کښ نازل شوی وو۔

[ كَانَ ذَا أَهْلٍ وَوَلَدٍ، فَكَانَ إِذَا أَرَادَ الْغَزْوَ بَكَوْا إِلَيْهِ وَرَقَّقُوْهُ، فَقَالُوْا: إِلَى مَنْ تَدَعُنَا ؟ فَيَرِقُّ وَيُقِيْمُ فَنَزَلَتْ: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِنَّ مِنْ أَزْوَاجِكُمْ الخ﴾ ]

دے د اهل او اولادو والا وو نو کله چه به دۀ د جهاد ته د تللو اراده وکړه نو هغوی به ورته ژړا شروع کړه او دے به ئے نـرم کړو او دا به ئے ورته ووېل: چه تۀ مونږ چا ته پریدے؟ نو دے به نرم شو او پاتے به شو۔ نو دا آیت نازل شو۔ (ابن جرير الطبری: ٣٤٥١٧)

عَدُوًّا لَّكُمْ: د بـچـو او ښځے سره دشمنی عداوة د بغض نۀ دے بلکه دیته عَدَاوَةُ الْمَحَبَّة وائـی۔ یـعـنـی د هـغـوی د ډیـر محبت په وجه هغوی ستاسو دپاره دشمنان ګرځی چه د خیرونو او د دینی کارونو نه مو پاتے کوی۔ دے ته بعض هوښیاران خوږ دشمن وائی۔

فَاحْذَرُوْهُمْ: یـعـنـی د دویٔ سـره په احتیاط ژوند تیر کړه او د دویٔ د شر نه ځان وساته،

هسے نهٔ چه د خیر نه مو محروم کړی.

مجاهدؒ وائی : [إِنَّهُمَا يَحْمِلَانِهِ عَلَى قَطِيعَةِ رَحِمِهِ، وَعَلَى مَعْصِيَةِ رَبِّهِ، فَلَا يَسْتَطِيعُ مَعَ حُبِّهِ إِلَّا أَنْ يُقْطِعَهُ] (ابن جرير الطبري : ٣٤٥١٨)

دا دواړه دهٔ لره پـه رشتـے قطع کولو باندے راپورته کوی، او د رب په نافرمانئ باندے، نو دے د هغوی د محبت سره بلـه چاره نهٔ لری مگر دا چه رشته به قطع کوی. نو ددے خبرے احتیاط ورله پکار دے.

وَإِنْ تَعْفُوا وَتَصْفَحُوا : اَیْ بَعْدَ مَا هَاجَرْتُمْ. یعنی اُوس چه دِے هجرت وکړو نو ددے نه روستـو پـه مخکـنئ گناه باندے بچو او ښځو ته سزا مهٔ ورکوه. ځکه که اُوس دوی ته سزا ورکړے شی، نو هیڅ فائده پکښ نشته، او اُوس به دِے کورنئ خرابه شی، هسے هم ستا نه جهاد او هجرت پاتے شو خو آینده کښ خپل ځان هوښیار کړه.

## د عفو او صفح او مغفرت فرقونه

تَعْفُوا: عفو دے ته وائی چه گناه د زړهٔ نه وباسی، ورانه ئے کړی.

او صفح دے ته وائی چه د مخ نه ئے ورانه کړی، وران او په غصه ورته ونهٔ گوری.

او مغفرت دے ته وائی چه د خولے نه هغه وباسی، او هغه ورته بار بار نهٔ ذکر کوی. او نهٔ ئے خلقو ته ښکاره کوی.

❁ یا بـنـده د غـصـے په اول کښ سزا ورکول غواړی په وهلو سره، نو هغے دپاره ئے عفو ذکر کړه، او که عملی سزا نهٔ ورکوی نو بیا په خوله سره هغه ملامته کوی، او کنځل او بد رد وائی نو د هغے دپاره ئے صفح ذکر کړه،

او دریم که ملامته کول نهٔ کوی، نو بیا د هغه گناه نورو ته ښکاره کوی، نو د هغے دپاره ئے په مغفرت باندے حکم وکړو چه دے کښ معنیٰ د پټوالی ده.

او دا آداب ددے دپاره بیـانـوی چـه یـو خو پدے کښ خوش اخلاقی ده چه د مؤمن سره مناسب ده، او دویم پدے کښ د کورنئ نه فساد ختمیږی.

إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ : دا بـل ادب دے. یـعـنـی ستاسو مالونه او اولاد امتحان دے.

١ - يَحْمِلُهُ عَلَى قَطِيعَةِ الرَّحِمِ وَغَيْرِهَا. چـه پـدے سره په دهٔ باندے خپلولی کټ کوی، د

مالونو او د بچو په وجه ځومره کورنو کښې تکبر او لوئی خبرے او دیو بل سره جنګ جګړے پیدا کیږی۔ ډیر خلق د بچو په وجه جهنم ته لاړ شی۔

۲- یَحْمِلُهٗ عَلٰی تَرْكِ الْعِبَادَةِ۔ مال او اولاد د عبادت د پریخودو سبب جوړیږی۔ تاسو وګورئ ځومره خلق د مالونو او د تجارتونو په وجه د ډیرو عبادتونو بلکه فرائضو نه محروم دی، فرض مونځ د جمعے سره کولو ته هم وزګار نۀ وی، ټول عمر ئے دا کار وی، دا ځومره لویه فتنه ده۔

د مال او بچو په وجه انسان حرامو ته لاس اچوی، د الله حقوق منع کوی، په لویو لویو ګناهونو کښې اخته کیږی، پردی مالونه غصب کوی، سودونه کوی۔

او دلته ئے (مِنْ) ذکر نکړو لکه مخکښې ئے (مِنْ اَزْوَاجِکُمْ) ذکر کړے وو، وجه دا ده چه مال او اولاد د فتنے نه خالی نۀ دی، زړه پدے دواړو باندے ضرور مشغوله کیږی، ډیر خلق به تاسو وینئ چه د مونځونو په وختونو کښې به ئے بچی په غیږ کښې نیولی وی، او دکاندار ته به روان وی چه هغوی له ځیزونه واخلی، او دا فکر ئے نۀ وی چه دا خو د جمعے وخت دے۔ ځومره لویه فتنه شوه۔

او مال ئے په اولاد باندے مخکښې ذکر کړو ځکه چه د مال فتنه زیاته ده، رسول الله ﷺ فرمائی: [لِکُلِّ اُمَّةٍ فِتْنَةٌ وَفِتْنَةُ اُمَّتِی الْمَالُ]

(الترمذی (۲۳۳۶) والحاکم وابن حبان والصحیحة: ۵۹۴)

د هر امت یو فتنه (امتحان) وی او زما د امت فتنه مال دے۔

او دلته ئے ښځه په فتنه کښې ذکر نکړه ځکه چه په بعض اوقاتو کښې ښځه د انسان دپاره د نیکئ او د آخرت د کارونو مددګاره جوړیږی، نیکیو ته ئے راخکاری۔

| فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوْا وَاَطِیْعُوْا |
| --- |
| نو اُویریږئ د الله نه ځومره چه طاقت وی ستاسو او واورئ خبره او تابعداری کوئ |
| وَاَنْفِقُوْا خَیْرًا لِّاَنْفُسِکُمْ وَمَنْ یُّوْقَ شُحَّ نَفْسِهٖ |
| او خرچ کوی دا به خیر وی تاسو لره او څوك چه بچ کړے شو د بخل د خپل نفس نه |

| فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿١٦﴾ إِنْ تُقْرِضُوا اللَّهَ قَرْضًا حَسَنًا |
|---|
| نو دا كسان هم دوى كامياب دى. كه چرته تاسو قرض وركوئ الله ته قرض ښائسته |
| يُضَاعِفْهُ لَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ وَاللَّهُ شَكُورٌ |
| نو دوچنده به ئے كړى تاسو لره او بخنه به درته وكړى او الله قبلونكے (د عمل) دے، |
| حَلِيمٌ ﴿١٧﴾ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١٨﴾ |
| صبرناك دے. پوهه دے په هر پټ او په ښكاره، زورور دے، حكمتونو والا دے. |

**تفسير** : فَاتَّقُوا اللَّهَ : اُوس ورته دا فرمائى چه تاسو ته چه د الله او د رسول د اطاعت حكم شويدے، او د مال او د اولاد د فتنے نه يره ولے شوى يئ نو الله تعالىٰ ستاسو نه ستاسو د طاقت نه د زيات يريدو او د نيك عمل مطالبه نهٔ كوى، بلكه تاسو ته د افراط او تفريط نه بچ كيدو سره د اعتدال لارے اختيارولو حكم دركوى.

نو اے خلقو! تاسو چه څومره طاقت لرئ هغومره د الله نه ويريږئ، او د الله اوامر په ښے طريقے سره اُويږئ، او په هغے عمل كوئ، او الله چه تاسو له كوم مال او دولت دركړے، د هغے نه د هغهٔ په لاره كښې خرچ كوئ، په همدے كښې تاسو له خير او كاميابى ده.

او ياد ساتئ چه په آخرت كښې كاميابى موندونكى صرف هغه خلق دى چه الله تعالىٰ هغوئ د مال او دولت د سخت لالچ، د هغے د بندگئ او د بُخل د بيمارئ نه بچ كړے وى، چه ددے په نتيجه كښې هغه د الله وركړے مال د هغهٔ په لاره كښې د خرچ كولو نه ډډه نهٔ كوى.

په مخكښې آيت كښې اسباب د فتنے ذكر شو چه هغه د گمراهئ اسباب دى. اُوس د هدايت او د دين كارونه ذكر كوى، چه هغه څلور اوامر دى.

فَاتَّقُوا اللَّهَ : دا اول امر دے. الله تعالىٰ په دوه ځايونو كښې (مَا اسْتَطَعْتُمْ) وئيلے دے، يو په سورة الانفال (٦٠) آيت كښې ﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ﴾

د كافرانو دپاره په وسلو تيارولو كښې،

او بل د تقوىٰ په باره كښې، معلوميږى چه دا دواړه څيزونه ډير ضرورى دى. نو څومره چه ددے وسه كيږى د الله په حكمونو عمل كوه.

او دا آیت په اسلام کښې قاعده کلیه ده، او ددې سره هغه حدیث ملګرې کړه:
(وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِأَمْرٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ)
کله چه زهٔ تاسو ته د یوې خبرې حکم وکړم نو په هغې باندې د خپل وس مطابق عمل کوئ. (صحیح بخاري: ۷۲۸۸)

ددې ډېر مثالونه دي، تقویٰ دا ده چه مونځ به په ولاړه کوې، که په ولاړه دې وس نهٔ وي نو په ناسته، او که په ناسته وس نهٔ وي نو په ملاسته او په اشاره سره کوه.
اودس وکړه که اودس باندې طاقت نهٔ وي، نو تیمم وکړه، که فاقد الطهورین وي، نو همداسې مونځ کوه، جامې واچوه، که جامې نهٔ وي نو په برینډه ئې وکړه.
نو هر هغه واجب عمل چه د هغې د کولو نه بنده عاجزه شي، دا کار کول ددهٔ نه ساقطیږي، او د کوم عمل په بعضِ حصه چه دې قادر وي، او د بعضِ د کولو نه عاجز پاتې شي، نو هغه به صرف د خپل طاقت او قدرت مطابق د عمل مکلف وي، او باقي به ددهٔ نه ساقط وي. لکه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: (زهٔ چه کله تاسو ته د یو کار حکم اوکړم نو د خپل طاقت موافق په هغې عمل کوئ).
**وَاسْمَعُوا:** دا دویم امر دې په دې کښې علم حاصلولو ته اشاره ده.
**وَأَطِيعُوا:** پدې کښې په علم باندې عمل کولو ته اشاره ده.
**وَأَنْفِقُوا:** څلورم امر. په انفاق سره د انسان محبت د دین سره زیاتیږي، او په دین باندې کلکیږي.
**وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ:** یعنی څوک چه د خپل نفس د بخل نه وساتلې شو پدې طریقه چه خپل مال د الله تعالیٰ د رضا په ځایونو کښې لګوي، او د الله تعالیٰ دغه مخکنی حکمونو باندې عمل کوي، او نفس ئې ددې نه مانع نهٔ ګرځي نو دا انسان کامیاب دې.
**إِنْ تُقْرِضُوا اللَّهَ:** مخکښې ئې په انفاق باندې حکم وکړو نو اُوس انفاق ته ترغیب ورکوي، او انفاق ته ئې د قرض نوم کیخودو دپاره د ترغیب.
یعنی تاسو چه د الله تعالیٰ په لاره کښې کوم حلال مال هم خرچ کوئ ګویا کښې تاسو الله له قرض ورکوئ، چه هغه به څو چنده زیاتولو سره بیرته تاسو ته واپس کړې شي، او زیاتي په دې به ستاسو ګناهونه هم معاف کړې شي.
څکه چه هغه [شکور] دې، د خپلو بندګانو د لږ عمل په عوض کښې ډېر زیات اجر

ورکوي، او هغه [حلیم] دې، په ګناهونو باندې زر نیوکه نهٔ کوي، بلکه د توبې مهلت ورکوي، او هغه د پټو او ښکاره تمامو اعمالو خبر لري،

دې وجې نه د خیر ښیګړې هیڅ یو عمل د هغهٔ په نیز ضائع کیږي نهٔ. او هغه ډیر زیات زبردست او لوی حکمتونو والا دې، په هغهٔ باندې هیڅوك غالبه کیدې نشي، او د هغهٔ تمام امرونه او منع کړې څیزونه د حکمت نه ډك دي چه په هغې صرف هغه پو هیږي.

عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ : دا صفتونه دپاره د تحذیر دي د ګناهونو کولو نه چه د الله نه هیڅ څیز پټ نشته. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورت تغابن

١ – د انسانانو دوه ډلو ته تقسیم چه یو کافر او بل مؤمنان.

٢ – د بعث بعد الموت په اثبات باندې په رب قسم وکړې شو.

٣ – د قیامت ورځې ته د تغابن ورځ ووئیلې شوه.

٤ – د بیبیانو او د اولاد او د مال په باره کښې ښکلې آداب بیان شول.

ختم شو تفسیر د سورة التغابن په اوله ورځ د رمضان ١٤٣٧ هـ موافق (٦/٦/٢٠١٦). یوم الاثنین. کالام.

❀❀❀

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ط

| رکوعاتها (۲) | (٦٥) سورة الطلاق مكية (٩٩) | آیاتها (۱۲) |
|---|---|---|

سورة الطلاق مدني دے په دے کښې دولس آیتونه او دوه رکوع دي.

## تفسیر سورة الطلاق

**نوم** : په (۱) آیت کښې دوه ځله د طلاقو لفظ راغلے، او د ټول سورت موضوع د طلاقو احکام دي، دے وجے نه ددے نوم (سُوْرَةُ الطَّلَاق) کیښودل شوے.
عبد الله بن مسعود ﷺ دیته سُوْرَةُ النِّسَاءِ الْقُصْرٰی ((وړوکے سورتِ نساء)) هم وئیلے دے. (بخاري : ٤٥٣٢)

### مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې د بعض اَزواجو عداوت ذکر وشو نو پدے سورت کښې په وخت د ضرورت کښې د هغوی د مفارقت شرعي طریقه ذکر کوي.
۲- مخکښې سورت کښې امر وو په تقویٰ باندے، نو پدے سورت کښې د تقویٰ پنځه فائدے ذکر کوي.
۳- مخکښې سورت کښې هم مؤمنانو ته آداب ذکر وو نو پدے سورت کښې هم ورته داسے آداب او احکام راوړی چه په هغے سره د دوی د کورنۍ خانداني ژندگی برابریږی.

### موضوع د سورت

۱- تَصْحِيْحُ نِظَامِ الْاُسْرَةِ وَفَوَائِدُ التَّقْوٰى وَاَحْكَامُ الطَّلَاقِ وَالْعِدَّةِ. یعنی د کورنۍ نظام برابرول، او د تقویٰ فائدے او د طلاق او عدت احکام.
او دا تصحیح ددے نه معلومیږی چه الله تعالیٰ طلاق او تقویٰ جمع کړیدی، یعنی که کورنۍ دے جوړه کړه او تقویٰ درکښې راغله، ښځه او خاوند دواړه د یو بل حقوق ادا کوی

نو طلاق به نهٔ واقع کیږي، او که طلاق واقع هم شي خو چه تقویٰ د رکښې وي نو بیا به هم ستاسو پروګرام ښهٔ کیږي. الله به درله نظام جوړوي.

په سورت کښې ئے په تقویٰ باندے ډیر زور ورکړیدے، ددے نه معلومیږي چه په کور کښې اکثر انسانان تقویٰ نهٔ کوي، اکثر انسانان د خپلو ښځو او بچو او رعیت حقوق نهٔ ادا کوي او کور کښې انتشارونه پیدا کوي.

دغه شان ښځه هم د خاوند حقوق بربادوي نو نظام به نهٔ جوړیږي، دا وجه ده په اکثرو کورونو کښې شرونه وي ځکه چه تقویٰ نهٔ وي.

۲- زمونږ شیخ محترم (رستمیؒ) فرمائي: پدے سورت کښې امر دے په رعایت د حدودِ شرعیه ؤ سره عمومًا او په معامله د طلاق او د عدت د زنانو کښې خصوصًا، او دا معنیٰ د تقویٰ ده چه د هغے پنځه فوائد ئے ذکر کړیدي او حدودِ شرعیه په دیارلس اوامرو سره او په درے نواهیو سره ذکر شویدي.

د سورت اوله رکوع په احکامو د طلاقو او په تقویٰ باندے روانه ده، او دویمه رکوع کښې ئے تول ترغیب تقویٰ ته ورکړیدے.

آخري آیت کښې د الله د علم او د قدرت ذکر دے، په هغے کښې حکمة دے چه د دغه علیم او قدیر الله تعالیٰ نه یره پکار ده.

| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ |
|---|
| اے نبي ! کله چه طلاقوئ تاسو ښځے نو طلاق ورکوئ دوی ته په اول د عدت د دوی |
| وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللَّهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوهُنَّ |
| کښې او اُوشمارئ عدت لره او اُویریږئ د الله نه چه رب ستاسو دے، مهٔ اُویاسئ دوی |
| مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ |
| لره د کورونو خپلو نه او نهٔ به اُوځي دوی مګر دا چه راتلل وکړي په بي حیائي |
| مُبَيِّنَةٍ وَتِلْكَ حُدُودُ اللَّهِ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللَّهِ فَقَدْ |
| ښکاره باندے او دا پولے د الله دي او څوک چه واوړیدو د پولو د الله نه، نو یقیناً |

| ظَلَمَ نَفْسَهٗ لَا تَدْرِیْ لَعَلَّ |
| --- |
| دهٔ ظلم اُوکړو په ځان خپل باندې، نهٔ پو هیږې نفس کیدے شي |
| اللهَ یُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ اَمْرًا ﴿۱﴾ |
| چه الله به راپیدا کړي روستو ددے نه یوه خبره۔ |

**تفسیر** : یَا اَیُّهَا النَّبِیُّ : دے ته خطاب التَّلْوِیْن وائی۔ (رنګارنګ خطاب) یعنی اے زما نبی ! او اے امته ! تاسو چه کله طلاق ورکوئ۔ الخ۔ ځکه چه دا حکم د رسول الله ﷺ او د ټول امت ترمینځ شریك دے۔

پدے آیت کښې اته جملے دی، او په هره جمله کښې ډیر احکام او شرعي حکمتونه دی۔

طلاق ورکول جائز کار دے، دا د ضرورت په وجه واقع کیږی، نو الله فرمائی چه کله ضرورت راشي طلاق ورکړئ لیکن د حدودو حفاظت وکړئ،

په طلاقو کښې اکثر د حدودو حفاظت نهٔ کیږی، خلق درے طلاقه په یو ځل ورکوی، ښځه سمدست شړی، په حالت د حیض کښې هم طلاق ورکوی، د جماع نه روستو طلاق ورکوی۔

حال دا چه شرعي طلاق دا دی چه طلاق به هله ورکولے شي چه انسان په هوش کښې وی، په طهر کښې به طلاق ورکوی، حیض به نهٔ وی، او په دغه طهر کښې به ئے جماع نهٔ وی کړی۔ یعنی یو ځل به ئے حیض راشي بیا چه د حیض نه پاکه شوه نو دغه وخت کښې به طلاق ورکړی، دے دپاره چه پته ولګی چه ستا د ښځې سره سمه ورانه ده ځکه چه ستا ورته ښه ضرورت هم شته او بیا هم ورسره نزدیکت نهٔ کوے، نو ستا طلاق ورکولو ته ضرورت دے۔

بله دا چه د طلاقو نه روستو به هغه ستا کور کښې درے حیضه یا درے میاشتے ناسته وی دے دپاره چه ستا ورته بیرته زړه وشي نو رجوع به وکړے او کورنئ برابره کړے۔

فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ : (یعنی د عدت دپاره) نو لام د عاقبت دے، یعنی طلاق چه ورکړئ نو عاقبت به دا شي چه هغوی به عدت تیروی۔

یا لام په معنیٰ د قُبُل سره دے اَیْ فِیْ قُبُلِ عِدَّتِهِنَّ ۔ یعنی د عدت په ابتداء کښې طلاق

ورکړئ. او د عدت ابتداء دا ده چه ښځه د حیض نه پاکه شوه او غسل ئے وکړو نو بیا به طلاق ورکولے شي. نو د عدت نه مراد دلته طهر دے.
یا لام په معنیٰ د توقیت سره دے. یعنی په وخت د عدت کښې طلاق ورکړئ.

## شان نزول

(۱) ځینو مفسرینو لیکلي دي چه دا آیت نازل شویدے په باره د طلاق د عبد الله بن عمر ﷺ کښې چه هغهٔ خپلے ښځے ته په حالت د حیض کښې یو طلاق ورکړو نو رسول الله ﷺ ورته حکم وکړو چه رجوع ورته وکړي بیا دِے ئے خان سره وساتي، تردے چه پاکه شي بیا ئے حیض راشي بیا پاکه شي نو بیا که طلاق ورکول غواړي نو په حالت د طهر کښې دِے ورکړي مخکښې د جماع کولو نه، نو دا هغه عدت دے چه الله تعالیٰ امر کړیدے چه ددے دپاره دِے زنانو ته طلاق ورکړے شي. (قرطبي) وصحیح مسلم (۱٤۷۱۹)
(۲) ابن ابی حاتمؒ وغیره د انس بن مالك ﷺ نه روایت کړي دي چه نبی کریم ﷺ حفصے رضی الله عنها له طلاق ورکړو، نو هغه خپلے مور پلار کره لاړه، بیا دا آیت نازل شو، او نبی ﷺ ته ووئیلے شو چه [لَا تُطَلِّقْهَا فَإِنَّهَا صَوَّامَةٌ قَوَّامَةٌ وَإِنَّهَا زَوْجَتُكَ فِي الْجَنَّةِ]
هغه حفصه واپس واخلي، ځکه چه هغه روژه داره او تهجد گذاره ده، او په جنت کښې به ستا د ښځو نه وي.
هیثميؒ په مجمع الزوائد (۲٤۸/۹) کښې لیکلي دي چه دا حدیث بزار او ابو یعلیٰ روایت کړے، او د ابو یعلیٰ د سند روایان د صحیح بخاري راویان دي.
(صحیح الجامع : ۵۱٤۳) والصحیحة ۱۷/۵) یرتقی الی درجة الحسن)
امام قرطبيؒ وائي : پدے کښې ډیره صحیح خبره دا ده چه دا ابتدائي شرعي حکم دے او خاص سبب د نزول ته محتاج نهٔ دے.
په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ اول نبی کریم ﷺ او بیا د هغهٔ امت مخاطب کړے او فرمایلي ئے دي چه اے مسلمانانو! کله چه تاسو د څهٔ ضروري خبرے د وجے نه خپلو ښځو له طلاق ورکول وغواړئ، نو په دے باره کښې د الله د اوامرو لحاظ ساتلو نه بغیر فوراً طلاق مهٔ ورکوئ، بلکه د مشروعے طریقے مطابق طلاق ورکوئ،
یعنی په داسے [طهر] کښې طلاق ورکوئ چه په هغے کښې تاسو د هغوئ سره کور والے

نهٔ وي کړے، دے دپاره چه د هغوئ د عدت موده واضحه او معلومه پاتے شي۔ ځکه که تاسو هغوئ له د حیض په حالت کښې طلاق ورکړئ، نو دا حیض به په عدت کښې نهٔ شمارلے کیږي، او د هغوئ د عدت زمانه به اُوږده شي۔

دغه شان که تاسو هغوئ له په داسے (طهر) کښې طلاق ورکړئ، چه په هغے کښې مو هغوئ سره کوروالے کړے وي، نو کیدے شي چه حمل نښتے وي، او معلومه به نشي چه ددے د عدت دپاره به د حیض اعتبار وي یا د ماشوم د پیدا کیدو۔

## د طلاق اقسام

حافظ ابن کثیرؒ فرمائي : ددے آیت نه فقهاؤ د طلاق اقسام راخستي دي چه سنت طلاق دا دے چه په داسے حال کښې طلاق ورکړي چه د حیض نه پاکه وي، او جماع ئے ورسره نهٔ وي کړي لکه مخکښې بیان شو۔ یا حامله وي چه حمل ئے ښکاره شوے وي۔

او بدعت دا دے چه طلاق ورکړي په حالت د حیض کښې، یا په طهر کښې چه جماع ئے ورسره کړي وي، او نهٔ پوهیږي چه حامله ده او که نهٔ ده؟۔

او دریم قسم طلاق نهٔ سنت دے او نهٔ بدعت دے چه هغه طلاق د ماشومے یا د هغه بوډئ چه نا امیده وي۔ یا غیر مدخول بِهَا وي یعنی لا اوسه پورے د خپل خاوند سره ملاؤ شوے نهٔ وي۔ (ابن کثیرؒ)

## د طلاق بدعي د واقع کیدو په باره کښې اختلاف

د طلاقِ بدعي په باره کښې د علمائے اسلام دوه رائے دي : د جمهورو خیال دے چه طلاق واقع کیږي، او د شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ، د هغهٔ د شاګرد امام ابن القیمؒ او د اکثرو محدثینوؒ رائے داده چه طلاق بدعي حرام دي، او واقع کیږي نهٔ۔

دارنګه د دوئ رائے دا هم ده چه که یو کس په یو مجلس کښې درے طلاقه ورکړي نو صرف یو به واقع کیږي، ځکه لکه څنګه چه په حیض کښې او په داسے (طهر) کښې طلاق ورکول ناجائز دي چه په هغے کښې خاوند کوروالے کړے وي، او طلاق نهٔ واقع کیږي، دغه شان د یو مجلس درے طلاقه هم حرام دي دے وجے نه صرف یو واقع کیږي، باقي دوه طلاقه به بیکاره ګڼړلے شي۔

او ددې تفصیل په کتابونو د حدیث کښې ذکر کیږي. او «امین الفتاوی» وګورئ.

وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ: دا بل حکم دې. یعنې اې مسلمانانو! د خپلو طلاق کړو ښځو د عدت زمانه په صحیح طریقې سره یاده لرئ، که چرې زنانه داسې وي چه د هغې حیض راځي نو د درې حیضونو په ذریعه، او که حیض ئې بند شوې وي نو د میاشتو د شمارې په ذریعه، یا که حامله وي نو د زیږکون په ذریعه. ځکه چه ددې په ذریعه د الله تعالیٰ د حق، د طلاق ورکونکي د حق، او د هغه سړي د حق حفاظت کیږي کوم چه دې ښځې سره آینده وادهٔ کول غواړي.

دا رنګه د طلاقې شوې ښځې د نان او نفقې حفاظت کیږي.

وَاتَّقُوا اللهَ: او اې مسلمانانو! په خپلو تمامو کارونو کښې د الله نه یریږئ چه هغه ستاسو رب دې،

لَا تُخْرِجُوْهُنَّ: دا بل حکم دې. یعنې هغه طلاقې شوې ښځې د خپلو کورونو نه په اوخکلو باندې مهٔ مجبوروئ، په کومو کښې چه د طلاق په وخت هغوئ دیره وې، ځکه چه د عدت په زمانه کښې د هغې د استوګنې ذمه داري په خاوند باندې ده، او دې ښځو له هم جائز نهٔ دي چه دوئ د دغه ځاې نه اوځي او بل چرته لاړې شي، ځکه چه د عدت په زمانه کښې دوئ د خاوند په نکاح کښې باقي پاتې کیږي.

بُیُوْتِهِنَّ: زنانو ته ئې نسبت د کورونو وکړو ځکه چه دوئ پکښې وسیږي. یعنې هغه کورونه چه دوئ پکښې وسیدلې.

إِلَّا أَنْ يَأْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ: (۱) البته که طلاقه شوې ښځه د زنا، یا د بل کوم داسې خراب قول یا فعل ارتکاب وکړي چه هغه د کور والو د ذلت او رسوائي سبب وي، نو په داسې صورت کښې به ددې کور نه د هغې ویستل جائز وي، ځکه چه شریعت په خاوند باندې د هغې د استوګنې ذمه واري پدې وجه واجب کړې وه چه ښځه به د خاوند رعایت کوي، (ابن مسعود ﷺ)

(۲) او کله چه هغې په خپله داسې حرکت اوکړو چه هغه د خاوند او د هغهٔ د خاندان دپاره د پریشانئ سبب جوړ شو، مثلًا د خاوند اهل ته په خبرو او کارونو سره تکلیف ورکوي، نو د هغه ځائې نه ددې اوخکل جائز شو. (ابي بن کعب وابن عباس ﷺ)

که ښځه زنا وکړي نو بیا به د کور نه د حد قائمولو دپاره راویستلې شي او بیرته به

کورته واپس کړلے شي۔ (ابن عباس ﷺ)

(۳) عبد الله بن عمر ﷺ فرمائي : د ښځے د عدت نه مخکښ د خاوند د کور نه بغير د اجازت نه وتل خپله فاحشه بيّنه ده، نو كه داسے زنانه چه په عدت كښ روانه وه، او د عدت تيريدو نه مخكښ ووتله نو دا مجرمه ده، او ددے جرم سزا به دا وركولے شي چه د خاوند كور نه ويستل ئے جائز شو۔

كه چرے طلاقه كړے ښځه بائنه ده، نو ددے دپاره استوگنه واجب نۀ ده، ځكه چه استوگنه د نان او نفقے تابع ده۔ او نفقه د مطلقه رجعيه دپاره ده، نۀ د بائنے دپاره۔

**وَتِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ**: يعني دا پورته چه كوم احكام بيان شوى دى، دا د الله تعالىٰ حدونه دى، د هغے نه ستاسو دپاره تجاوز كول جائز نۀ دى، او ددے ښكاره بيان باوجود كه يو كس ددے حدونو نه تجاوز كوى نو هغه په خپل ځان ظلم كوى، او په جلتئ يا تاخير سره د الله تعالىٰ د سزا حقدار جوړيږى۔

**لَا تَدْرِىْ لَعَلَّ اللهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا** : لَا تَدْرِىْ كښ ضمير نفس ته راجع دے۔ يعني اے مسلمانانو ! تاسو ته معلومه نۀ ده د عدت د زمانے سره متعلق چه كوم احكام پورته بيان كړے شول، په هغے كښ الله تعالىٰ څۀ حكمتونه پټ ايښى دى، كيدے شى چه د خاوند په زړۀ كښ الله تعالىٰ طلاقے شوے ښځے سره دوباره محبت واچوى، او هغه واپس كړى او د سر نه عُمده ازدواجي زندگى تيرول شروع كړى۔

كيدے شى چه د طلاقو سبب د ښځے د طرفنه راغلے وى، او د عدت په زمانه كښ هغه سبب ختم شى، او خاوند هغه واپس واخلى۔ نو ځكه دا حكم وشو چه د عدت په وخت كښ به ښځه د خاوند په كور كښ وى۔ نو د (امرًا) نه مراد رجوع شوه۔

او يو ښكاره حكمت دا هم دے چه د عدت د مودے ختميدو پورے يقين كيږى چه د ښځے رحِم د طلاق وركونكى خاوند د بچى نه پاك او صفا دے۔

**بَعْدَ ذٰلِكَ**: ذلك اشاره ده يو طلاق يا دوه طلاقو ته۔

او دا آيت دليل دے چه درے طلاقه په يو ځل وركول ظلم دے، او ددے حكمت خلاف دے كوم چه دلته ذكر شو۔

| |
|---|
| فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ |
| نو کله چه نزدے شی نیتے خپلے ته نو وے ساتئ د ځان سره په ښه طریقه |
| أَوْ فَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ وَأَشْهِدُوا ذَوَيْ عَدْلٍ |
| یا جدا کړئ دوی لره په ښه طریقه او گواهان جوړ کړئ دوه کسان خاوندان د عدل |
| مِنْكُمْ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ ۚ ذٰلِكُمْ يُوعَظُ بِهِ |
| ستاسو نه او اُودروئ گواهی د الله دپاره دا (حکم) نصیحت کیدے شی پدے سره |
| مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ |
| هغه چا ته چه ایمان لری په الله او په ورځ روستنئ او هغه څوك چه اُویریدو د الله نه |
| يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا ﴿٢﴾ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ |
| وُبه گرځوی دهٔ لره لاره د نجات۔ او رزق به ورکړی دهٔ ته د هغه ځائے نه چه دے به ئے |
| لَا يَحْتَسِبُ ۚ وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهُ ۚ إِنَّ اللّٰهَ |
| گمان نهٔ کوی او چا چه ځان اُوسپارلو په الله باندے نو هغه ورله کافی دے۔ یقیناً الله |
| بَالِغُ أَمْرِهِ ۚ قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا ﴿٣﴾ |
| رسونکے دے کار لره (خپل ځائے ته) یقیناً گرځولے ده الله تعالیٰ هر شی لره اندازه۔ |

**تفسیر**: اُوس پدے آیت کښ نور څلور امرونه ذکر کیږی۔

بَلَغْنَ: بلوغ دلته نزدے والی ته وائی۔ یعنی د طلاقے شوے ښځے د عدت موده چه کله ختمیدو ته نزدے شی، نو خاوند دے هغه د هغے د تمامو حقونو سره واپس کړی، یا دے د هغے حقوقو اداء کولو سره په غیر د اختلاف او جگړے پیدا کولو نه او هغے دپاره د مشکلاتو د پیدا کولو نه بغیر، هغه دے په خپل حال باندے پریدی، تردے چه د هغے عدت تیر شی، او بائنه (جدا) شی او خپلو خپلوانو خواته لاړه شی۔

پدے واپس کولو یا پریخودو کښ د ښځے رضا شرط نهٔ دے۔

بِمَعْرُوْفٍ: یعنی ددے نه مراد د ښځې حقوق ادا کول، نفقه، جامے، اُوسیدل او ښه ژوند تیرول دی۔
بِمَعْرُوْفٍ: ددے نه مراد دا دے چه د زورنے او بد رد او کنځلے کولو نه بغیر ډے رخصت کړی۔
وَاَشْهِدُوْا ذَوَیْ عَدْلٍ مِّنْکُمْ: دا بل حکم دے چه طلاق ورکونکے ډے د رجوع کولو او د همیشه دپاره د پریښودلو، دواړو حالتونو کښې دوه دیندار او امانتدار مسلمانان ګواه جوړ کړی، دے دپاره چه آینده کښې د اختلاف او جګړو دروازه بنده شی۔
د اهل علمو پدے دواړو حالتونو کښې د ګواهانو نیولو حکم کښې اختلاف کړیدے،
(۱) اکثر اهل علم وائی چه دا حکم د وجوب دپاره نه دے، البته که څوك پدے دواړو حالتونو کښې ګواه ونهٔ ونیسی نو دا به خلاف سنت وی۔
لکه د عمران بن حصین رضی الله عنه نه د داسے سړی په باره کښې تپوس وشو چه هغه طلاق ورکړی وو او ګواه ئے نهٔ وو نیولے او رجوع ئے کړے وه او ګواه ئے نهٔ وو نیولے۔
نو هغه وفرمایل:
[بِئْسَمَا صَنَعَ، طَلَّقَ فِیْ بِدْعَةٍ وَارْتَجَعَ فِیْ غَیْرِ سُنَّةٍ، فَیُشْهِدُ عَلٰی طَلَاقِهٖ وَعَلٰی مُرَاجَعَتِهٖ وَیَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ]
دهٔ طلاق په بدعت کښې ورکړل او رجوع ئے د سنت نه په غیر وکړه۔ نو دے ډے په طلاقو او رجوع دواړو باندے ګواه ونیسی او بیا ډے د الله نه بخښنه وغواړی۔
ابن ماجه (۲۰۲۵) باسناد صحیح (الطبرانی فی الکبیر: ۱٤٨٣٣) واللفظ له)
(۲) او علامه قاسمیؒ وائی چه ظاهر دا ده چه دا حکم هم د وجوب دپاره دے، ځکه چه ددے سورت ټول اوامر د وجوب دپاره دی، او د وجوب نه هیڅ مانع نشته، او دا یو قول د امام شافعیؒ دے۔ او همدا قول حق دے۔
ابن عباس رضی الله عنه وائی: که خاوند خپله طلاقه شوے ښځه واپس اخلی، نو اُوس به دهٔ سره دوه طلاقه باقی پاتے شی، او که هغه واپس نهٔ اخلی، او د هغے عدت تیر شی، نو هغه به د یو طلاق نه پس بائنه (جدا) شی، او اُوس دهٔ له اختیار دے، که غواړی نو همدے سره دے دوباره وادهٔ اوکړی، یا که غواړی نو بلے سره ډے وادهٔ وکړی۔
وَاَقِیْمُوا الشَّهَادَةَ لِلّٰهِ: دا بل حکم دے او دا ګواهانو ته دے۔ یعنی د رجوع یا طلاقو په

باره کښې چه کومه ګواهي هم وي، ګواهان دې هغه صرف د الله د رضاء دپاره اداء کړي، د خاوند یا مُطلقې له خاطره دې په دې کښې هیڅ بدلون نهٔ پیدا کوي. کله سړے غلط وائي نو ګواهان به پرې رد کوي او کله ښځه غلط وائي نو ګواهان به ئې اصلاح کوي.
او ددې یو صورت دا دے چه یو تن یوې ښځې ته طلاق ورکړو، دوه درې ورځې پس سړي د ښځې په نا خبرئ کښې دوه کسان ګواهان ونیول چه ما ښځې ته رجوع وکړه، پدې کښې درې میاشتې تیرې شوې، سړے خپلې ښځې ته راغلو، ښځې ورسره جګړه واچوله چه زهٔ طلاقه شوې یم، او زما عدت تیر شویدے نو دې وخت کښې به ګواهان صحیح ګواهي ورکړي چه دې ښځې ته زمونږ په مخامخ رجوع شویده.
ذٰلِكُمْ يُوْعَظُ بِهٖ: اُوس الله تعالیٰ دے مخکنو احکامو باندې عمل کولو ته ترغیب ورکوي چه په دې ټولو احکامو باندې هغه کس عمل کوي چه هغه په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري، ځکه چه د الله تعالیٰ د عذاب نه صرف همدا انسان یریږي، دې وجې نه هغه د هغهٔ نافرماني نهٔ کوي.
وَمَنْ يَّتَّقِ اللّٰهَ: یعنې کوم خلق چه د الله تعالیٰ د عذاب او سزا نه یریږي او د الله تعالیٰ عظمت ئې په زړهٔ کښې وي نو هغه د هغهٔ د اوامرو پابندي کوي، د منع شوو کارونو نه ځان ساتي، او د هغهٔ د حدودو لحاظ کوي، نو الله تعالیٰ به هغهٔ دپاره د سختیو او محنتونو نه د وتلو دپاره لارې جوړوي، او هغهٔ دپاره د داسې ځي نه د روزئ بندوبست کوي چه هغه ددهٔ په وَهُم او ګمان کښې هم نهٔ وي.
مفسرین لیکي چه د آیت مفهوم عام دے، چه په دې کښې د سنت مطابق طلاق ورکونکے سړے په طریقه اولیٰ سره داخل دے چه الله تعالیٰ به ددهٔ په زړهٔ کښې یا خو د طلاقې شوې ښځې د واپس اخستو خبره واچوي، یا د عدت تیریدو نه پس به هغهٔ دپاره د هغې سره د دوباره وادهٔ کولو ګنجائش باقي پریدي.
او دا مطلب دے چه څوك د الله نه ویریدو او سنت طریقې سره ئې طلاق ورکړل، او عدت والا زنانه ته ئې ضرر ورنکړو، او هغه ئې د کور نه ونهٔ شړله او ګواهان ئې ونیول نو الله به دهٔ لره د زنانو په باره کښې د غمونو او مشقتونو کښې د واقع کیدو نه لاره راوباسي او خلاصې به ورکړي. (فتح البیان)
عبد الله بن عباس ﷺ ته یو تن راغے چه ما ښځې له سل طلاقه ورکړیدي، نو هغه ورته

وفرمایل : [مَا اتَّقَيْتَ اللَّهَ فَيَجْعَلُ لَكَ مَخْرَجًا] تـهٔ د الله نه نهٔ ئې یریدلے نو تا له هیڅ مخرج نشته۔ نو درې طلاقـه واقـع شـو او اُوه نـوی طـلاقـونو سره تا د الله د کتاب پورې توقې کړیدی۔ (سنن الدارقطني : ٣٩٢٦) والكبير للطبراني (١٠٩٩٤)

د عمر فاروق ﷺ په شان فتوىٰ ئې ورکړه۔ څکه چه دغسې شخص ته همدا فتوىٰ ورکول پکار دی۔

يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا : ١- ابن عباس ﷺ وائي : يُنجِيهِ مِنْ كُلِّ كَرْبٍ فِي الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ ۔ دے به په دنیا او په آخرت کښې د هر غم او پریشانئ نه بچ کړي۔

٢- كلبيّ وائي : وَمَنْ يَتَّقِ اللَّهَ بِالصَّبْرِ عِنْدَ الْمُصِيبَةِ يَجْعَلُ لَهُ مَخْرَجًا مِنَ النَّارِ إِلَى الْجَنَّةِ۔

څوك چه د الله نـه یـریـږي د مـصیبت په وخت کښې، نو الله بـ- ورله د اُور نه جنت ته لاره کولاوه کړي۔

٣- حسن بصريّ وائي : مَخْرَجًا مِمَّا نَهَى اللَّهُ عَنْهُ۔

يعني څوك چه تقوىٰ اختیاروی نو الله به ئې په منهیاتو او حرامو کښې نهٔ اخته کوی، او لاره د وتلو به ورله ورکوی۔ يعني څوك چه تقوىٰ کوی نو الله به ورله په دین کښې مخرج (لاره) پیدا کـوی، تـهٔ که د الله د حکم لحاظ ساتے نو الله به درته لاره پیدا کوی، لکه مثلاً یو تن وائي چه زهٔ به حرامه نهٔ خورم نو الله به ورله ضرور حلاله پیدا کوی۔

داسے مهٔ وایه چه په حلالو باندے رزق نـهٔ پیدا کیږی۔ لکه شیطان دا خبره په ډیرو ناپوهو کښې خوره کړیده۔ یو سخت ځای کښې تهٔ عزم وکړے چه زهٔ به په سنت عمل کوم نو الله به درله موقعه درکوی۔ سخت احکام به درته آسانوی۔

ابو ذر ﷺ ته رسول الله ﷺ وفرمایل : اے ابو ذره [لَوْ أَنَّ النَّاسَ كُلَّهُمْ أَخَذُوا بِهَا لَكَفَتْهُمْ] که ټول خلق پدے آیت باندے عمل وکړي نو دا به ورله کافی شي۔

(ابن ماجه: (٤٢٢٠) ابن حبان : ٦٦٦٩) والحاكم : (٣٨١٩) وصححه ووافقه الذهبيّ وهو كما قالا)

مَخْرَجًا کښې اشاره ده چه تـکلیفونه او مصیبتونه به وریاندے راځي لیکن د هغے نه راوتـل او د هغے د ناکاره آثارونـه بـه نـجات مـومـی، څـکه چه خروج مخکښې دخول غواړي۔

وَمَنْ يَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ فَهُوَ حَسْبُهُ : پدے کښې زنانه او سړي دواړو ته اشاره ده چه په ټولو

کارونو کښې په الله باندې بهروسه او توکل وکړئ، هغهٔ ته خان وسپارئ او د هغهٔ فرائض او واجبات مهٔ ضائع کوئ، نو الله به مو په هر حال کښې حفاظت او مدد وکړي. کله ښځه وائي چه زهٔ طلاقه شوم نو د کوم ځای نه به خوراك کوم، او سړے به وائي چه ښکلے ښځه رانه لاړه نو الله فرمائي : ما باندې توکل وکړه زهٔ به دِے کافي شم.

إِنَّ اللهَ بَالِغُ أَمْرِهِ : دا د توکل دپاره په طریقه د علت دے. په الله باندې ځکه بهروسه پکار ده چه هغه خپل کارونه په هر حال کښې سر ته رسونکے دے. الله تعالىٰ لره هیڅوك عاجزه کولے نشي.

او الله تعالىٰ د هر يو کار ځای او زمانه مقرر کړے ده، چه د هغې نه هغه مخکښې یا روستو کیدے نشي، او نهٔ په هغې کښې کمے یا زیاتے کیدے شي دے وجے نه مومن له د هغهٔ په تقدیر باندې راضي اوسیدل پکار دي.

دا ورسره ځکه وائي : پدے کښې دفع تو هم د تَعْجِيلُ الْكِفَايَةَ ده. یعنې یو تن به ووائي چه الله به زما کله کافي کيږي، زهٔ هر څه اُوس غواړم،

نو الله فرمائي چه د هر شي دپاره اندازه او وخت مقرر دے، جلتي مهٔ کوه، الله به ئے درته در رسوي.

| وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ |
|---|
| او هغه زنانه چه نا اُميده شويدي د حيض نه د ښځو ستاسو نه که چرته |
| ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ |
| شك وی ستاسو نو عدت د دوی درے میاشتے دي او هغه زنانه چه حائضے نهٔ دي |
| وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ |
| (هم دغه شان دي) او حمل والا زنانه نيټه د عدت د هغوی دا ده چه اُوزيګوی |
| حَمْلَهُنَّ وَمَنْ يَتَّقِ اللهَ يَجْعَلْ لَهُ مِنْ أَمْرِهِ يُسْرًا ﴿٤﴾ |
| حمل خپل او هغه څوك چه اُويريدو د الله نه وبه ګرځوی دهٔ لره د کار ددهٔ نه آساني. |

| ذٰلِكَ أَمْرُ اللّٰهِ أَنْزَلَهُ إِلَيْكُمْ وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ |
|---|
| دا حكم د الله تعالىٰ دے نازل كړے ئے دے تاسو ته او څوك چه اُويريدو د الله نه |
| يُكَفِّرْ عَنْهُ سَيِّئَاتِهِ وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا ﴿٥﴾ |
| وُبه رژوى دده نه گناهونه دده او لوئى به كړى دهٔ لره اجر۔ |

**تفسير**: اُوس د عدت احكام راوړى۔

په دے آيتِ كريمه كښې د بوډئ، نابالغه، او حاملو (اميدوارو) ښځو عدت بيان شوے دے چه د كومو ښځو حيض بند شوے وى، د دوئ عدت درے مياشتے دے،

او كومے چه نابالغه وى (وخته لا نهٔ وى رسيدلے) د هغوئ عدت هم درے مياشتے دے، او د اميدواره ښځو عدت زيكون دے۔ برابره ده چه طلاقه كړے شوى وى يا خاوند ترے وفات شوے وى، او لږ وخت روستو ئے ولادت وشى، يا ډير وخت روستو۔ او دلته هم چونكه د حمل په وجه حيض بند شويدے پدے وجه په عدت كښې حمل د حيض په ځاى باندے قائم كړے شو۔

بخارىؒ او مسلمؒ د ام سلمه رضى الله عنها نه روايت راوړيدے چه سُبيعه اسلميه د خپل خاوند د مرگ نه صرف څلويښت ورځے روسته ماشوم اُوزيگولو، نو نبى كريم ﷺ د هغے د وادهٔ اجازت وركړو۔ (بخارى: ٣٩٩٠) مسلم: ٣٧٩٦)

إِنِ ارْتَبْتُمْ: يعنى كه ستاسو شك وى د هغے په عدت كښې او د هغے په اندازه كښې۔

وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ: يعنى څوك چه په طلاقو او په نورو كارونو كښې د الله تعالىٰ د احكامو پابندى كوى، الله هغهٔ دپاره آسانى پيدا كوى۔ هر كار به ورته آسان كړى، د عدت او د طلاق او عتاق مسئلے به ورته آسانے كړى۔

يُسْرًا: دا عام دے د مَخْرَجًا نه، د دنيا او د آخرت آسانتيا ته شامل دے، نو دا د مخكنو دوارو فائدو په نسبت لويه فائده ده۔

ذٰلِكَ أَمْرُ اللّٰهِ: دا تاكيد دے دپاره د عمل كولو په تير شوو احكامو، او د تقوىٰ نورے دوه فائدے ذكر كوى۔

ذٰلِكَ:اشاره ده قرآن ته۔ يا مخكنو ټولو احكام ته اشاره ده، طلاق، عدت، رجوع،

شهادات او تقویٰ۔
أَمْرُ اللّٰهِ: د امر نه مراد قانون او حکم دے، برابره ده چه په صیغه د امر سره وی یا په صیغه د نهی سره۔
أَنْزَلَهُ إِلَيْكُمْ: یعنی دا احکام الله تعالیٰ ددے دپاره نازل کړی دی چه بندګان په دے باندے عمل وکړی۔ او څوك چه د الله نه یریږی، الله د هغهٔ ګناهونه معاف کوی، او هغهٔ له لوی اجر ورکوی، یعنی جنت ته ئے ننباسی۔
وَيُعْظِمْ لَهُ أَجْرًا : دا ئے په صیغه د مضارع سره ذکر کړو اشاره ده چه څومره تقویٰ زیاتیږی نو دومره به اجر او ثواب عظیم ورکړے کیږی۔

| أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنْتُمْ مِنْ وُجْدِكُمْ |
| --- |
| اُوسوئ دوی لره په هغه ځائے کښ چه اُوسیږئ تاسو د طاقت ستاسو نه |
| وَلَا تُضَارُّوهُنَّ لِتُضَيِّقُوا عَلَيْهِنَّ |
| او ضرر مهٔ ورکوئ دوی ته دے دپاره چه تنګی راولئ تاسو په دوی باندے |
| وَإِنْ كُنَّ أُولَاتِ حَمْلٍ فَأَنْفِقُوا عَلَيْهِنَّ حَتَّى يَضَعْنَ |
| او که چرته وی دوی حمل والا نو خرچ کوئ په دوی باندے تردے چه اُوزیګوی |
| حَمْلَهُنَّ فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ فَآتُوهُنَّ |
| حمل خپل نو که چرته دوی تے ورکوی (بچو ته) ستاسو دپاره نو ورکوئ دوی ته |
| أُجُورَهُنَّ وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُمْ بِمَعْرُوفٍ وَإِنْ |
| مزدوری د دوی او جرګے (مشورے) کوئ په مینځ خپل کښ په ښه طریقه او که چرته |
| تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَىٰ ﴿٦﴾ |
| سخت کوئ تاسو (یو بل سره) نو زردے چه تے به ورکړی دهٔ ته بله زنانه۔ |

| لِيُنفِقْ ذُو سَعَةٍ مِّن سَعَتِهِ وَمَن قُدِرَ |
|---|
| خرچ دې اوکړي خاوند د فراخئ د فراخئ خپلې نه او هغه څوك چه تنګ شوېدې |
| عَلَيْهِ رِزْقُهُ فَلْيُنفِقْ مِمَّا آتَاهُ اللهُ |
| په هغهٔ باندې رزق د هغهٔ، نو خرچ دې کړي د هغې نه چه ورکړې وي دهٔ ته الله تعالیٰ، |
| لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا مَا آتَاهَا |
| تکلیف نهٔ ورکوي الله تعالیٰ يو نفس لره مګر د هغې چه طاقت ئې ورکړيدې، |
| سَيَجْعَلُ اللهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا ﴿٧﴾ |
| زر دې چه وبه ګرځوي الله تعالیٰ روستو د تنګئ نه آسانی۔ |

**تفسیر**: اُوس د مطلقات رجعیه ؤ زنانو حکم بیانوي۔

مُطلقه په دوه قسمه ده (۱) مطلقه رجعي،

(۲) مطلقه مُغلظه۔ چه يو طلاق ورکړې شي بيا ورته رجوع شوي وي بيا طلاق ورکړي او څه موده روستو بيا دريم طلاق ورکړي نو د دريم طلاق نه روستو د دغه زنانه دپاره په خاوند باندې نهٔ سکنیٰ (کور) وي او نهٔ نفقه۔

او مطلقه رجعيه چه يو طلاق ورکړې شوې وي، يا دوه ورکړې شوي وي نو د هغې دپاره د عدت په دوران کښې سکنیٰ او نفقه دواړه په خاوند باندې لازم دي۔

نو په دې آيت کښې د رجعي طلاقې شوې ښځې د کوره ويستلو نه منع راغلې ده۔

دلته الله تعالیٰ ددې حکم زيات تفصيل بيانوي فرمائي چه هغه په داسې کور کښې ساتئ چه په هغې کښې د هغې د حيثيت ښځې او سړي اُوسيږي، او هغه د استوګنې، نان نفقې او نورو کارونو کښې پريشانه کوئ مهٔ، دې دپاره چه هغه تنګه شي او د کور په پريښودلو مجبوره کړې شي۔

او دا حکم د حاملې او غير حاملې دواړو قسمونه مطلقه رجعيه دپاره دې، يعنی تر څو پورې چه د عدت زمانه ختمه شوې نهٔ وي، هغوئ د هغوئ د کورونو نه اُوخکل جائز نهٔ دي۔

او که طلاق شوې ښځې له دریم طلاق ورکړې شوې وي، او هغه حامله ده، نو هغې له به استوګنه او نان او نفقه ورکول وي ترڅو چه هغې ماشوم زیګولې نهٔ وي.

د ماشوم د زیګولو نه پس دواړو (مور پلار) له اختیار دے، که غواړي نو دغه مور دے په مقرر اجرت باندے ماشوم له پئ ورکوي، او که غواړي نو پلار ډے د بلے کومے ښځے نه دا کار واخلي.

او په دے باره کښې الله تعالیٰ مور پلار ته نصیحت کړے چه د مشورے کولو په وخت ډے دواړه یو بل ته د معافی کولو او د ماشوم د خیر خواهئ نیت اوکړي دے دپاره چه ماشوم د موره جدا نشي، او پلار باندے د هغهٔ د طاقت نه زیات بوج وانهٔ چولے شي.

او که د پئ ورکولو د اجرت په باره کښې دواړه په یوه خبره باندے متفق نشول نو بیا ډے پلار د بلے کومے دائی انتظام وکړي، او مور ډے په پئ ورکولو باندے مجبوروي نهٔ، مفسرینو لیکلي دي چه په دے کښې مور دپاره یو قِسم ملامتیا ده چه دے د مور کیدو باوجود د ماشوم له خاطره په اجرت کښې کمی برداشت نهٔ کړه، نو بیا به ددے نه ماشوم اخستے کیږي، او بلے دائی ته به حواله کیږي. او پلار دپاره هم ملامتیا ده، دهٔ د پلار کیدو باوجود د خپل بچی له خاطره په اجرت کښې اضافه اونهٔ کړه، نو ددے انجام به داشي چه ماشوم به د خپلے مور نه جدا شي، او دائی خواته به لاړ شي.

مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم : مِنْ د تبعیض دپاره دے یعنی مکان د وسیدو. یا مِنْ زائده دے، یا مِنْ ابتدائیه دے، یعنی د هغه طریقے نه چه تاسو څنګه وسیږئ.

مِّن وُجْدِكُمْ: ددے نه مراد د خاوند قدرتِ مالیه دے که په طریقه د ملکیت سره وي، یا په اجرت سره وي.

وَلَا تُضَارُّوهُنَّ: یعنی زنانه به ددے دپاره نهٔ تنګه وي چه هغه ددے کور نه لاړه شي او دهٔ ته نفقه او کور بچت شي. ابو الضحیٰؒ وائي : ددے نه مراد دا دے چه طلاق ورکړي خو کله چه د هغے د عدت دوه ورځے پاتے شي، نو بیرته ورته رجوع وکړي بیا ورله طلاق ورکړي او دغه شان سلسله جاري وساتي.

فَأَنفِقُوا عَلَيْهِنَّ: حامله زنانه چه طلاقه کړے شي نو په خاوند باندے د هغے نفقه او سُکنیٰ واجب ده، او دا اجماعي مسئله ده. او هر چه حامله ده چه خاوند ئے وفات شوے وي نو ددے په نفقه او سکنیٰ کښې اختلاف دے :

(۱) علی، ابن عمر، ابن مسعود رضی الله عنهم، شُریحؒ، نخعیؒ، شعبیؒ، حمادؒ، ابن ابی لیلیٰؒ او سفیانؒ او د هغهٔ شاګردان وائی: په هغې باندې به د ټول مال د خاوند نه تر ولادت پورې نفقه کولې شي۔

(۲) ابن عباس، ابن الزبیر، جابر بن عبد الله رضی الله عنهم، مالكؒ، شافعیؒ او ابو حنیفةؒ او د هغهٔ شاګردان وائی چه پدې زنانه باندې به صرف ددې د برخې د میراث نه انفاق کولې شي، او همدا قول حق دې ځکه چه په سنتِ مُطهره کښې ددې دپاره ډیر دلائل موجود دي۔

ابن عباس ﷺ پدې آیت کښې فرمائي: دا حکم د هغه زنانه دې چه خاوند ورته طلاق ورکړي او هغه حامله وي نو الله حکم وکړو چه دې ته به سکنیٰ ورکوي او نفقه هم، تردې چه بچې راوړي او که تې ورکوي نو تردې چه هغه د تي نه پریکړي۔

فَإِنْ أَرْضَعْنَ لَكُمْ: یعنی که دې میندو ستاسو دپاره ستاسو اولاد ته تې ورکولو او اجرت ئې نهٔ غوختلو نو خیر وخلاص او که دوی په اجرت سره تې ورکولو نو بیا تاسو دوی ته د دویٔ دتې ورکولو مزدوری ورکړئ۔

وَأْتَمِرُوا بَيْنَكُم بِمَعْرُوفٍ: إِئْتِمَار مشورې ته وائی۔ یعنی خپل مینځ کښې د ماشوم د فائدې دپاره مشوره کوئ۔

مقاتلؒ وائی: ددې معنیٰ دا ده: چه مور او پلار دې په معلوم اجرت باندې راضی شي، او هر یو دې د بل سره سختی نهٔ کوي۔ نو خاوند له پکار دي چه پوره اجرت ورکړي، او ښځې له پکار دي چه دومره زیات اجرت ونهٔ غواړي چه خاوند تنګ کړي۔

وَإِن تَعَاسَرْتُمْ: یعنی که تاسو د بچي او د رضاعت د مزدورئ په باره کښې د یو بل سره سختی کوئ نو بیا به بله زنانه تې ورکړي۔

او که بله دائی نهٔ ملاویده نو بیا به همدا مور په اجرت قبلولو باندې مجبوره کولې شي، او بچی ته به تې ورکوی دې دپاره چه د بچی حق ضائع نهٔ شي۔

لِيُنفِقْ: په دې آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د طلاقې شوې پئ ورکونکې مور په باره کښې پلار ته حکم کړې چه که هغه مالدار دې، نو د ماشوم په مور باندې د مال په خرچ کولو کښې دې د بُخل نه کار نهٔ اخلي، بلکه په مور او بچي دواړو دې په فراخه زړهٔ سره خرچ کوي، او که لاس ئې تنګ وي نو د خپل حال موافق دې خرچ کوي۔ نفقه وي یـ بل یو

عمل وی، الله تعالیٰ هیڅوك د هغهٔ د طاقت نه زیات نهٔ مکلف کوی.
سَيَجْعَلُ اللهُ بَعْدَ عُسْرٍ يُسْرًا: پدے کښې الله تعالیٰ تنګ لاسو ته زیرے ورکړے چه هغه به د دوئ پریشانی او تنګ حالی ډیر زر لرے کړی، لکه الله تعالیٰ فرمایلی دی: ﴿ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا ﴾ (بیشکه تنګدستئ سره آسانی ده).
دا د الله قانون دے چه کله هم یو کار ګران شی چه د برداشت نه وځی نو الله آسانی راليږی، ګرمی چه سخته بے برداشه شی نو سمدست باران شروع شی.
مفسرین لیکی چه الله تعالیٰ خپله دا وعده صحابه کرامو سره رښتیا اُوښودله چه د دوئ د تنګ دستئ لرے کولو دپاره الله دوئ ته جزیرة العرب او روم او فارس فتح کړل، او د روم او فارس د خزانو مالکان ئے جوړ کړل.
البته عامو مسلمانانو دپاره الله د تقویٰ شرط لګولے، لکه چه په (۳/۲) آیتونو کښې تیر شو چه څوك د الله نه یریږی، الله هغهٔ دپاره لارے اوباسی، او د هغه ځی نه ورله روزی ورکوی چه هغه ددهٔ په شان او ګمان کښې هم نهٔ وی.
او په (٤) آیت کښې ئے وفرمایل: څوك چه د الله نه یریږی، الله د هغهٔ معاملات آسان جوړوی. (فتح البیان)

| وَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ عَتَتْ عَنْ أَمْرِ رَبِّهَا وَرُسُلِهِ |
|---|
| او ډیر د کلو والو نه نافرمانی ئے اُوکړه د حکم د رب خپل نه او د رسولانو د هغهٔ نه |
| فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيدًا وَعَذَّبْنَاهَا |
| نو حساب اُوکړو مونږ د هغوی سره حساب سخت او عذاب ورکړو مونږ هغوی ته |
| عَذَابًا نُكْرًا ﴿٨﴾ فَذَاقَتْ وَبَالَ أَمْرِهَا وَكَانَ عَاقِبَةُ أَمْرِهَا |
| عذاب بد (ناشنا). نو اُوڅکولو هغوی سزا د کار خپل او وو انجام د کار د هغوی |
| خُسْرًا ﴿٩﴾ أَعَدَّ اللهُ لَهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فَاتَّقُوا اللهَ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ |
| تاوان. تیار کړیدے الله دوی لره عذاب سخت نو اُویریږئ د الله نه اے عقل والو! |

| الَّذِيْنَ آمَنُوْا قَدْ أَنْزَلَ اللّٰهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا ﴿۱۰﴾ |
| --- |
| هغه کسانو چه ایمان ئې راوړیدے یقیناً رالیږلے دے مونږ تاسو ته ذکر (یاداشت) |

**تفسیر** : پدے رکوع کښې ترغیب دے تقوىٰ ته، او تخويف دنیوی او اُخروی دے چه د الله تعالىٰ د احکامو او اَوامرو رعایت کوئ، او ددے د مخالفت نه ویرېږئ گنے د پخوانو قومونو غونته به هلاك شئ.

فرمائی چه په تیرو شوو زمانو کښې ډیرو قومونو د خپل رب د احکامو نافرمانی کړے، نو الله د هغوئ د عملونو هغوئ سره سخت حساب وکړو، او هغوئ ئې په بدترین عذاب باندے اخته کړل، او د خسارے او هلاکت او بربادئ نه سوىٰ هغوئ ته هیڅ هم ملاؤ نشو، ځکه چه په جنت او د هغے په نعمتونو باندے هغوئ د دنیا سپك سازومان له ترجیح ورکړه.

فَحَاسَبْنَاهَا حِسَابًا شَدِيْدًا : دلته د حساب شدید نه مراد دنیاوی سزا ده، یعنی الله تعالىٰ وفرمایل چه د دوی دا عملونه ډیر ناکاره دی، د سزا مستحق دی، نو الله پرے عذاب راوستو. نو دلته حساب په بخنه نهٔ کولو سره دے، او په عذاب ورکولو سره دے.
او هرچه د آخرت حساب دے نو هغه جدا دے.

عَذَابًا نُكْرًا : یعنی ناشنا غذاب په دنیا کښې په لوږه، قحط، قتلونو، خسف (په زمکه ننویستلو) او شکلونو مسخ کولو، او کلی اپوته کولو سره.

وَبَالَ أَمْرِهَا: یعنی د خپل کفر او شرك او د رسالت دا نکار او تکذیب انجام ئې وڅکلو.

أَعَدَّ اللّٰهُ لَهُمْ: دا تخويف اُخروی دے.

فَاتَّقُوا اللّٰهَ: نو هرکله چه الله تعالىٰ پخوانی د مخالفت په وجه هلاك كړل، نو اے د الله عقلمندو بندگانو ! تاسو د الله نه ویرېږئ، او د الله نه په یریدو سره ژوند تیر کړئ، او د هغهٔ د اوامرو پابندی وکړئ. الله ته د خپلو حکمونو پابندی ډیره خوښه ده.

يَا أُولِي الْأَلْبَابِ : دا هغه خلق دی چه د هغوی عقلونه د مقابلے د وَهم نه او د شکونو او شبهاتو نه محفوظ دی. او د هغوی صفات په سورة آل عمران (۱۹۰) او سورة الزمر (۱۸) آیت کښې ذکر دی.

الَّذِيْنَ آمَنُوْا: دا صفت دے، یا عطف بیان دے یا بدل دے د اُولی الْاَلْبَاب نه.

او پدے کښې اشاره ده چه ایمان او تقویٰ والا صحیح عقل والا خلق دی۔

قَدْ أَنْزَلَ اللّٰهُ إِلَيْكُمْ ذِكْرًا: ددے نه مراد قرآن کریم دے، او پدے کښې تاکید دے چه اے مؤمنانو! غفلت ونکړئ ځکه چه تاسو سره د تذکیر کتاب موجود دے۔

| |
|---|
| رَسُوْلًا يَتْلُوْ عَلَيْكُمْ آيَاتِ اللّٰهِ مُبَيِّنَاتٍ لِيُخْرِجَ |
| رسول دے چه لولی په تاسو آیتونه د الله، وضاحت کونکی دے دپاره چه اُوباسی |
| الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنَ الظُّلُمَاتِ |
| الله هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے او عملونه ئے کړیدی نیک د تیارو نه |
| إِلَى النُّوْرِ وَمَنْ يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ وَيَعْمَلْ صَالِحًا يُدْخِلْهُ |
| رڼرا ته او چا چه ایمان راوړو په الله او عمل ئے اُوکړو نیک داخل به ئے کړی دهٔ لره |
| جَنَّاتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِيْنَ فِيْهَا أَبَدًا ط |
| جنتونو ته چه بهیږی به لاندے د هغے نه نهرونه همیشه به وی په هغے کښې همیشه |
| قَدْ أَحْسَنَ اللّٰهُ لَهُ رِزْقًا ﴿١١﴾ اَللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ |
| یقیناً الله ښائسته کړیدے دهٔ لره رزق۔ الله هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی |
| سَبْعَ سَمَاوَاتٍ وَمِنَ الْأَرْضِ مِثْلَهُنَّ يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ |
| اُوه آسمانونه او د زمکے نه پشان د هغوی، نازلیږی حکم د هغه په مینځ د دوی کښې |
| لِتَعْلَمُوْا أَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ |
| دے دپاره چه تاسو پو هه شئ چه بیشکه الله په هر شی باندے قدرت لرونکے دے |
| وَأَنَّ اللّٰهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا ﴿١٢﴾ |
| او یقیناً الله راګیر کړیدے هر شے په علم خپل کښې۔ |

**تفسیر** :رَسُوْلًا: ددے په نصب (زور) کښې ډیر اقوال دی:

(۱) يو دا چه دا بدل دے د (ذِكْرًا) نه او رسول ته ئے ذکر مُبَالغةً ووئيلو، يعنى صاحب د ذکر دے۔ ليكن ددے سره د اَنْزَلَ اللهُ لفظ سمون نهٔ خوری۔

(۲) دويم دا چه ذِكْرًا مصدر دے او رَسُوْلًا د هغے مفعول دے۔ اَیْ ذِكْرَ رَسُوْلٍ۔ يعنى الله تاسو ته رالیږلے دے ذکر د رسول الله ﷺ په قرآن کښې۔ نو پدے کښې به د رسول الله ﷺ رشتين والى ته اشاره وى۔

(۳) غوره دا ده چه د رَسُوْلًا نه مخکښې (اَرْسَلَ) پټ دے۔ او دا قول زجاج غوره کړيدے۔ هغه فرمائی: انزال د ذکر دليل دے چه دلته اَرْسَلَ پټ دے۔ يعنى راليږلے ئے دے رسول۔ نو پدے کښې قرآن او حديث دواړو ته اشاره شوه۔

(٤) بعض وائی: دا منصوب دے په اِغراء سره، اَیْ اِتَّبِعُوْا وَالْزَمُوْا رَسُوْلًا۔

تابعدارى وکړئ د رسول۔ او لازم شئ د رسول سره۔

لِيُخْرِجَ الَّذِيْنَ: ضمير د يُخْرِجَ رسول ته راجع دے، يا آيَاتٍ مُبَيِّنَاتٍ ته په تاويل د قرآن، يا د ذکر سره، يا الله تعالىٰ ته راجع دے۔

او پدے کښې مقصد مسلمانانو ته د الله تعالىٰ لوى احسان رايادول دى چه هغهٔ د دوئ د هدايت دپاره قرآن کريم نازل کړو، او نبى کريم ﷺ ئے را اوليږلو چه هغه د قرآن کريم د ښکاره آيتونو تلاوت کوى، د هغے معنىٰ او مفهوم بيانوى، او په صراط مستقيم باندے د تلو دعوت ورکوى، دے دپاره چه ايمان راوړونکى او نيك عمل کونکى د کفر او شرك او د ګناهونو د تيارو نه اوباسى او د اسلام رڼړا ته ئے راولى۔

مِنَ الظُّلُمَاتِ اِلَى النُّوْرِ: سوال دا دے چه ايمان او عمل صالح والا خو د تيارو نه وتلى دى نو بيا د هغوى د اخراج څه معنىٰ ده؟

(۱) جواب دا دے چه ددے نه مراد هغه کسان دى چه هغوى لا تر اُوسه ايمان نهٔ دے راوړے او الله ورله په تقدير کښې ايمان ليکلے دے۔ او اراده د ايمان او عمل صالح لرى۔

(۲) ښهٔ جواب دا دے چه هر مؤمن ته وخت په وخت په ژوند کښې تيارے رامخے ته کيږى، کله شکوك او شبهات او شيطانى وسوسے راځى، او کله د يوے خبرے معلومات نهٔ لرى، مخے ته ئے تيارهٔ وى، کله د يقين، او کله د عمل کمزورى وى، نو ددے کتاب او سنت په وجه ئے الله تعالىٰ د دغه تيارو نه راوباسى او په نيغه لاره ئے روانوى، او يقين او عمل ئے مضبوطيږى۔

قَدْ أَحْسَنَ اللهُ لَهُ رِزْقاً: دا یا په جنت کښې مراد دے، د احسان نه مراد وسعت (فراخی) او مزیدار والے دے، او د رزق نه مراد د جنت رزق دے۔ یعنی الله ورله ښائسته رزق او نهٔ ختمیدونکی نعمتونه تیار کړیدی۔

یا دا دنیاوی زیرے دے، یعنی په دنیا کښې ورله الله تعالیٰ ښائسته رزق ورکوی د تقویٰ او ایمان په وجه لکه چه په (۳) آیت کښې ذکر شو۔

اَللهُ الَّذِیْ: په دے آخری آیت کښې الله تعالیٰ خپل تعارف بیانوی، دلیل عقلی دے په توحید او تصرف د الله تعالیٰ باندے، یو الله خالق دے، هغه متصرف دے،

پدے کښې غرض دا دے چه انسانان د الله په قدرت او علم باندے پوهه شی، کائنات الله تعالیٰ ددے دپاره روان کړیدی چه الله تعالیٰ بندګانو ته خپل خان ورښائی، او دا ددے دپاره چه د الله تعظیم وشی، او بندګان د هغهٔ عبادت وکړی، نو د دوئ فائده به هم وشی۔ زړونه به ئے د الله د محبت نه ډک شی، نیک کارونه به وکړی نو جنت ته به داخل شی۔

ربط د آیت

پدے کښې بیان د عظمت د رب دے دپاره د تقویٰ کولو، نو هغه انسان تقویٰ نهٔ کوی چه د الله شان ئے نهٔ وی پیژندلے، کوم شاګرد چه د خپل استاذ شان وپیژنی، نو بیا د هغهٔ سره ډیر په ادب باندے ژوند تیروی۔ نو دغه شان نبی کریم ﷺ چه چا نهٔ وی پیژندلے نو خبره ئے نهٔ منی، او نهٔ پرے اثر کوی، او چه الله ئے نهٔ وی پیژندلے نو خبره ئے نهٔ منی۔

دویم پدے سورت کښې د ښځے او د خاوند ترمینځ د اختلافاتو خبره ذکر شوه څکه چه طلاق د اختلاف د وجه نه راځی،

نو الله خپل عظمت بیانوی چه ستاسو رب دومره لوی دے، او لوئی د الله سره لائقه ده، ستاسو سره لائقه نهٔ ده، نو په یو بل باندے لوئی مهٔ کوئ او د یو بل حقوق ادا کړئ۔ او ښځه او خاوند یو بل لره په خان باندے نعمت وګنړئ۔

الله فرمائی: الله هغه ذات دے چه اووه آسمانونه، اووهٔ زمکے او ددے ترمینځه تمام مخلوقات ئے پیدا کړل، دینی احکام او شریعتونه ئے نازل کړل، او د پوره کائناتو چلولو دپاره ئے ضابطے او قوانین جوړ کړل،

او ددے ټولو مقصد دا دے چه د هغهٔ بندګان هغه وپیژنی، او په دے خبره یقین وکړی

چه د هغهٔ علم او د هغهٔ عظیم قدرت د تمامو څیزونو نه راتاؤ دے۔ او ددے علم او یقین نتیجه به دا وی چه تمام انسانان صرف د هغهٔ بندګی وکړی، صرف هغهٔ سره محبت وکړی او د هغهٔ د حقونو په اداء کولو کښې هرګز کوتاهی ونکړی۔

وَمِنَ الْاَرْضِ مِثْلَهُنَّ: دے کښې چا غلط تفسیر کړیدے چه ددے نه اُوه برّ اعظم مراد دی۔ حال دا چه دا اُوه واړه بر اعظم یوه زمکه ده۔

بعض وائی : ددے نه اُوه کواکب سیاره مراد دی۔ لکه عطارد، مریخ، زهره، شمس، قمر، مشتری، زحل۔ دا خبره هم صحیح نهٔ ده۔

صحیح دا ده چه ددے نه مراد اُوه زمکے دی، او دا اُوه زمکے حقیقةً دی لکه د بخاری په روایت کښې هم راغلی دی:

[مَنْ اَخَذَ شِبْرًا طُوِّقَهٗ مِنْ سَبْعِ اَرْضِيْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ]

(بخاری : ٢٤٥٢)

چا چه پردئ زمکه یو لویشت قبضه کړه د قیامت په ورځ به دهٔ ته اُوه زمکے په غاړه کښې واچولے شی۔ ددے نه هم معلومیږی چه زمکے اُوه دی۔

بیا دا خبرے اسرائیلی دی چه په هره زمکه کښې مخلوق دے، او د هغوی دپاره ددے زمکے په شان انبیاء علیهم السلام دی، لکه دا خبره په بعض روایاتو کښې راغلی دی،

حافظ ابن کثیرؒ فرمائی : ددے خبرو هیڅ ثبوت د رسول الله ﷺ نه په صحیح سند نشته، نو دا به په خپل قائل باندے مردود وی۔

او په البدایه والنهایه کښې لیکی چه دا خبره چه ابن عباسؓ ته منسوب ده نو کیدے شی چه هغه د اسرائیلیاتو نه اخستی وی۔ لکه دا خبره علامه سخاویؒ په «المقاصد الحسنة» کښې هم ذکر کړیده۔

او ابو حیانؒ په البحر المحیط کښې لیکی چه دا بیشکه موضوع روایت دے، او د واقدیؒ کذاب نه نقل دے۔

او ددے په مقابله کښې د حاکمؒ (صاحب مستدرك) تصحیح له هیڅ اعتبار نشته، او امام نوویؒ وئیلی دی چه دا روایت ثابت نهٔ دے۔

بیا ددے زمکو ترمینځ کوم مخلوق دے؟ نو دے باره کښې صحیح خبره دا ده چه مونږ دپاره صرف دا عقیده ساتل کافی دی چه آسمانونه هم اُوه دی او زمکے هم اُوه دی، او

باقي علم الله ته سپارلے شويدے،

او الله تعالیٰ ددے په معلومولو مونږ نهٔ یو مکلف کړی، او نهٔ ئے په معلومات کښې څه فائده شته. الله به په زمکو کښې بخارات، معدنيات، او پاره او وسپنې او اُوبهٔ او چينې پيدا کړي وي.

يَتَنَزَّلُ الْأَمْرُ بَيْنَهُنَّ: يعني د دوی ترمينځ د الله تعالیٰ امر چليږي، د آسمان نه بارانونه راځي، زلزلے او طوفانونه راځي، او ددے ترمينځ د هغهٔ قوانين چليږي. دلته د امر نه مراد قدري امرونه دي. وبالله التوفيق.

## امتيازات د سورت

۱– د عدت او د طلاقو مسئلے.
۲– په تقوىٰ باندے امرونه او د هغے فوائد.
۳– د اُوه زمکو تذکره.

ختم شو تفسير د سورة الطلاق په فضل د عليم او قدير په ۲ رمضان ۱٤۳۷ هـ

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ط

| آیاتها (۱۲) | (٦٦) سورة التحريم مدنية (١٠٧) | رکوعاتها (۲) |
|---|---|---|

سورة التحریم مدني دے، په دے کښ دولس آیتونه او دوه رکوع دي

## تفسیر سورة التحریم

**نوم :** ددے سورت ډیر نومونه دي (۱) سورة التحریم، (۲) سورة الْمُتَحَرِّم (۳) سُوْرَةُ لِمَ تُحَرِّم (٤) سُوْرَةُ النَّبِيّ (٥) او سُوْرَةُ النِّسَاء۔

**د نازلیدو زمانه :** قرطبيؒ وائي چه د ټولو په نیز دا سورت مدني دے۔ نحاسؒ او ابن مردویهؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړي دي چه سورة التحریم په مدینه کښ نازل شوے۔

## د سورت موضوع او مقصود

حُقُوْقُ الزَّوْجَيْنِ وَتَرْبِيَةُ الْاَوْلَادِ ۔ د ښځے او د خاوند د یو بل حقوق اَدا کول، او د اولادو تربیت کول۔ او دا خبره چه په زواج سره نجات د عذاب نه نهٔ راځي۔

په مثال کښ رسول الله ﷺ او د هغهٔ بیبیانے ذکر دي، د مشر د کور احوال د اُمت د تربیت دپاره ذکر دي۔

## مناسبت

۱- طلاق ولے واقع کیږي؟ نو وجه دا ده چه ښځه او خاوند د یو بل حقوق نهٔ ادا کوي۔ دلته هم راځي ﴿عَسٰى رَبُّهٗۤ اِنْ طَلَّقَكُنَّ﴾ یعني اے بیبیانو د نبي ! ددے نبي حقوق ادا کړئ نو طلاق به نهٔ درکوي۔

۲- مخکښ سورت کښ احکام د جدائي د ښځے او د خاوند ذکر شو، نو اُوس پدے سورت کښ هغه احکام راوړي چه په هغے سره د ښځے او د خاوند ترمینځ جوړخ راځي۔

۳- په مخکښې سورت کښې عظمتِ شان د رسول الله ﷺ ذکر شو نو دلته عتاب ذکر کوی هغه چا ته چه د هغهٔ د خفګان کار کوی۔
ټول سورت د یو خاص واقعے سره متعلق دے، لیکن د قرآن طریقه دا ده چه د جزئی واقعے نه کلی قانون جوړوی۔

## شان نزول

ددے سورت په شانِ نزول کښې دوه قِسمه حدیثونه راغلی۔

❁ یو حدیث د انس بن مالك رضي الله عنه نه نقل دے چه نبی کریم ﷺ د حفصے رضی الله عنها د نمبر په ورځ د هغے په کور کښې د خپلے وینځے ماریه قبطیه سره کور والے اوکړو۔ دغه وخت حفصه خپل پلار کره تلے وه۔ واپس راتلو نه پس کله چه هغے ته ددے اندازه اُوشوه نو هغے نبی کریم ﷺ ته ووئیل چه یا رسول الله ! تا زما د نمبر په ورځ زما په کور کښې هغه کار کړے دے چه هغه بلے کومے ښځے سره تا هیځ کله نهٔ دے کړے۔
نو هغهٔ ووئیل : آیا تهٔ دا نهٔ خوښوے چه زهٔ به هیڅ کله هم د هغے خواله نهٔ ورځم۔ (د وینځے په کور والی کښې حق نهٔ وی نو ځکه داسے قسم کوی)
حفصے ووئیل: هاؤ ! نو نبی ﷺ ماریه په ځان حرامه کړه، او وے وئیل چه دا خبره هیچا ته مهٔ ښایه، (دے دپاره چه ماریه خفه نشی) لیکن حفصے رضی الله عنها عائشے رضی الله عنها ته حال ووئیلو، نو الله تعالیٰ نبی ﷺ ته ددے خبر ورکړو، او دا آیت نازل شو۔ حفصے رضی الله عنها تپوس وکړو اے د الله رسوله ! تاسو ته چا حال ووئیلو ؟ وے فرمایل : ما ته الله خبر راکړو۔

(قرطبی، وابن جریر، والمعجم الاوسط (۱۳/۳) وفی اسناده ضعف، وقال فی مجمع الزوائد : اسماعیل بن عمرو البجلی ضعیف والضحاك بن مزاحم لم یسمع من ابن عباس وبقیة رجاله ثقات) ولکن رواه النسائی (۳۹۵۹) باسناد صحیح کما قال الحافظ فی فتح الباری (۲۸۸/۹)
(اَنَّ النَّبِیَّ ﷺ کَانَتْ لَهٗ اَمَةٌ یَطَؤُهَا فَلَمْ تَزَلْ بِهٖ حَفْصَةُ وَعَائِشَةُ حَتّٰی حَرَّمَهَا فَاَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰی هٰذِهِ الْاٰیَةَ یَا اَیُّهَا النَّبِیُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ) وصححه الصنعانی فی سبل السلام والشوکانی فی الدراری المضیة (۲۲۵)

❁ دویمه واقعه د شاتو ښنکلو ده۔
بخاریؒ او مسلمؒ د عائشے رضی الله عنها نه یو حدیث راوړیدے چه د هغے خلاصه دا ده

چه د رسول الله ﷺ عادت مبارکه دا وو چه شپے به ئے په نمبر وار د بيبيانو سره تيره ولے مګر ماز يګر وخت به ئے د ټولو بيبيانو ملاقات کولو ځکه چه د بيبيانو ضرورت وی، د کور حال احوال معلوم کړی، نو رسول الله ﷺ به د زينب بنت جحش رضی الله عنها خواته ډيره پورے پاتے کيدو، پدے وجه چه هغے به ورله د شاتو شربت جوړولو، او په هغے به وخت لګيدو.

دے وجے نه عائشے او حفصے رضی الله عنهما خپلو کښې دا فيصله وکړه چه په مونږ دواړو کښې چه د چا خواته رسول الله ﷺ راځی، هغه ته دِے اووائی چه ستا د خُلے نه د (مغافير) بُوئے راځی، آيا تا مغافير خوړلی دی.

(مغافير يو خوږ کند دے چه هغه د (عُرفط) نومے وُنے نه راخاځی، او بدبويه وی).

چنانچه دغسے اُوشوه، کله چه هغه په دغه دواړو کښې د يوے خواته لاړ نو هغے دغسے اُووئيل۔ نو نبی ﷺ اووئيل چه نهٔ، ما د زينب بنت جحش خواته شات څښلی دی۔ کيدے شی چه د شاتو مچئ دغه بوټے خوړلے وی، اوس به هيڅ کله زهٔ هغه اونهٔ څکم، ما قسَم خوړلے دے۔

(او دا ځکه چه رسول الله ﷺ به بد بوئی ډيره بده ګنړله، او ددے نه دا هم معلومه شوه چه خپلے ښځے ته ځان ښائسته کول او بد بوئی زائل کول هم ضروری دی)

بيا ئے هغوی ته ووئيل چه تاسو هيچاته دا خبره مهٔ کوئ۔ (ځکه چه که زينب ددے نه خبره شی نو هغه به خفه شی)

ليکن کله چه عائشه رضی الله عنها د حفصے رضی الله عنها سره بيا ملاؤ شوه، نو هغے يو بل ته حال ووئيلو چه رسول الله ﷺ خو په ځان باندے شات حرام کړل، نو پدے موقعه کښې دا آيتونه نازل شو، او خپل نبی ته ئے وفرمايل :

چه په ځان باندے حلال څيزونه ولے حراموے؟، په ځان باندے ولے سختی راولے؟، او بيبيانو ته ئے ادب بيان کړو چه د رسول الله ﷺ راز ښکاره کول مناسب نهٔ وو، نو پدے وجه ئے هغوی ته ئے بار بار د توبے دعوت ورکړو۔

او هغوی ته ئے زورنه ورکړه که تاسو ددے نبی سره ښه ژوند نهٔ تيروئ نو دے به تاسو له طلاق درکړی، او الله تعالیٰ به ورته نورے بيبيانے ورکړی، ددے رسول تاسو ته حاجت نشته بلکه ستاسو ضرورت دهٔ ته دے۔ د قيامت په ورځ به ددهٔ سره ملګری شئ۔ ﴿ يَوْمَ

لَا يُخْزِي اللّٰهُ النَّبِيَّ وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا مَعَهٗ ﴾ (مَعَهٗ) لفظ راوړو کښې همدے ته اشاره ده چه ددهٔ ملګرتیا غوره کړئ چه د قیامت د شرمونو نه محفوظ شئ۔

بیا ئے د آسیه او د لوط او نوح علیهما السلام د ښځو واقعات راوړیدی، پدے کښې د امت د ښځو تربیت دے۔ لکه روستو راځی۔

| يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ |
| --- |
| اے نبی! ولے حراموے هغه څهٔ چه حلال کړیدی الله تا لره، لټوے تهٔ رضا |
| أَزْوَاجِكَ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١﴾ قَدْ فَرَضَ اللّٰهُ لَكُمْ |
| د بیبیانو خپلو او الله بخونکے رحم کونکے دے۔ یقیناً مقرر کړیدی الله تعالیٰ تاسو لره |
| تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ وَاللّٰهُ مَوْلَاكُمْ وَهُوَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿٢﴾ |
| کولاوول د قسمونو ستاسو او الله دوست ستاسو دے او هغه پوهه حکمتونو والا دے |

**تفسیر** :يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ: علامه قاسمیؒ لیکی چه دا خطاب د تلطف او شفقت دے، چه ولے د بیبیانو د وجه نه ځان په تکلیف کښې اچوے۔

او شربینیؒ وئیلی دی چه دا تنبیه ده چه ستا د شان سره دا کار مناسب نهٔ دے،

تُحَرِّمُ: دلته د تحریم نه مراد په قَسم سره په ځان باندے بندول دی۔

مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ: مطلب دا دے چه الله تعالیٰ یو شے جائز کړیدے نو بنده په ځان باندے ولے هغه بند کړی، الله تعالیٰ دا څیزونه ددے دپاره حلال کړیدی چه بندګان ئے استعمال کړی، ددے وجه نه رسول الله ﷺ ته چه به کوم جائز څیزونه مخے ته راتلل، نو هغه به ئے خوړل، غوښه، شهد وغیره، او دا خو دا د صوفیاؤ طریقه ده چه وائی غوښه مهٔ خورئ، شات مهٔ خورئ، او ښهٔ شے مهٔ خورئ ځکه چه دا د بزرګئ خلاف دی۔ دا د رسول الله ﷺ د سنت خلاف دی۔

بلـه دا چه پدے سره د بیبیانو د رضا دپاره نورو ته تکلیف رسیږی، لکه په دغه واقعه کښې زینب رضی الله عنها او ماریه رضی الله عنها ته۔

تَبْتَغِيْ مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ : پدے کښې اشاره ده چه د خپلو بیبیانو رضا کولو کوشش

ښه کار دے لیکن داسے حد پورے د هغې رضا کولو کوشش کول چه د هغې په وجه جائز شے حرام کړے شي مناسب نهٔ دي.
نو په آیتِ کریمه کښې نبي کریم ﷺ او مسلمانانو له تعلیم ورکړے شوے چه الله تعالیٰ کوم شے حلال کړے دے، هیچاته دا حق نشته چه هغه د چا د خوښې له خاطره په خپل ځان باندے حرام کړي.
په آیت کښې ددے خبرے هم په ډاګه بیان شوے دے چه الله تعالیٰ د خپل رسول ددے لغزش نه درګذر (معافي) وکړه، په هغهٔ ئې رحم وکړو. او مسلمانانو دپاره ئې یو شرعي حکم نازل کړو چه که یو کس په یوه خبره باندے قسم اوخوري نو ددے کفاره څهٔ ده. چه ددے تفصیل د سورة المائده په (۸۹) آیت کښې راغلے دے:
﴿ فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ ذَٰلِكَ كَفَّارَةُ أَيْمَانِكُمْ إِذَا حَلَفْتُمْ ﴾
(ددے کفاره لسو محتاجانو باندے خوراك خورول دي د درمیانه درجے چه کوم تاسو خپل کور والو باندے خوروئ، یا هغوئ له جامے ورکول، یو غلام یا یوه وینزه آزادول دي، او د چا وس چه نهٔ کیږي هغه دِ درے ورځے روژے اونیسي، دا ستاسو د قسمونو کفاره ده، کله چه تاسو قسم اوخورئ).
دے وجے نه کوم کس چه هم یو حلال شے په خپل ځان حرام کړي، برابره خبره ده که هغه د خوراك څښاك شے وي، یا کومه وینزه وي، یا د کوم کار د کولو یا نهٔ کولو قسم اُوخوري، بیا قسم ماتول غواړي، په دهٔ به مذکوره کفاره واجبه وي.
فَرَضَ اللَّهُ: یعني الله مقرر کړیده.
تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ : پرانستل د قسمونو ستاسو په کفاره ورکولو سره.
وَاللَّهُ مَوْلَاكُمْ : یعني الله تعالیٰ ستاسو مولیٰ دے، په دیني او دنیوي کارونو کښې ستاسو عُمده تربیت کول غواړي، او تاسو د خرابو خبرو نه لرے ساتل غواړي، دے وجے نه هغهٔ د قسم کفاره اداء کول واجب کړیدي. دے دپاره چه ستاسو ذمه واري ددے نه فارغه شي. او الله ډیر زیات پوهه او ډیر لوئے حکمتونو والا دے. دے وجے نه هغهٔ داسے احکام واجب کړي دي چه هغه ستاسو د حالاتو مناسب، او تاسو له فائده مند دي.

| وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا |
|---|
| او کله چه پټه اُوکړه نبی (ﷺ) بعض بیبیانو خپلو ته (حفصے ته) یوه خبره |
| فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ |
| نو هرکله چه خبر ورکړو هغې (عائشے ته) په هغې سره، او خبر ورکړو الله نبی لره |
| عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ |
| په هغې باندے نو (نبی) اُوخودله بعض د هغه خبرے او مخ ئے واړولو د بعضے نه |
| فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ |
| نو هرکله چه نبی خبر ورکړے هغې ته په خبره اُووئیل هغے چا خبر درکړیدے تا ته |
| هَٰذَا قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ ﴿٣﴾ |
| ددے، اُووئیل هغهٔ، خبر راکړیدے ما ته پوهه خبردار ذات۔ |

**تفسیر** : اُوس هغه مخکنۍ واقعے ته اشاره ورکوی۔

بَعْضِ أَزْوَاجِهِ: د ډیرو مفسرینو خیال دے چه دلته د بعضِ زوجاتو نه مراد حفصه رضی الله عنها ده۔ او د [حَدِيثًا] نه مراد ماریه قبطیه رضی الله عنها ده۔

یا د بعض ازواجو نه عائشه رضی الله عنها مراد ده، او حدیث نه شات په خپل ځان باندے حرامول مراد دی۔ نبی کریم ﷺ حفصے رضی الله عنها ته وئیلی وو چه د ماریه د حرامولو (یا د شاتو د حرامولو) کومه خبره چه ما تاته کړے ده، هغه بل چاته مهٔ کوه، لیکن هغې دا خبره عائشے رضی الله عنها ته وکړه، او الله تعالیٰ خپل نبی ته خبر ورکړو چه ستا راز، راز پاتے نشو، حفصے عائشے (رضی الله عنها) ته وئیلے دے۔

نو رسول الله ﷺ حفصے رضی الله عنها ته څهٔ خبره ښکاره کړه، او څهٔ ئے د هغے د خیال ساتلو سره ونهٔ ښودله۔

وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ: یعنی الله خبر کړو خپل نبی لره په دغه خبره۔

عَرَّفَ بَعْضَهُ: ددے نه معلومیږی چه د اوچتو اخلاقو تقاضا دا ده چه بنده په هره خبره

پوره نکته چینی ونکړی. په هره خبره باندې ښځې ته ګوریدلو سره د هغې ژوند تنګیږي.
په بعض خبرو باندې به درګذر کوي، او بعضو باندې به غلې کیږي.
او ددې نه دا هم معلومه شوه چه ښځې یا دوست له جائز نهٔ دي چه د خاوند او دوست رازونه خوارهٔ کړي.
مَنۡ اَنۡۢبَاَكَ هٰذَا: حفصې د نبي ﷺ نه تپوس وکړو چه تاله چا خبر درکړې دې چه ما عائشې ته خبره ښودلې ده؟ نو نبي ﷺ وفرمایل: ماله هغه علیم او خبیر ذات خبر راکړې چه د هغهٔ نه هیڅ خبره پټه نهٔ پاتې کیږي. دا دلیل دې چه د صحابه کرامؓ او د ازواج مطهراتو دا عقیده وه چه نبي کریم ﷺ حاضر او ناظر او غیب دان نهٔ دې.
او نَبَّاَنِیَ نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ په علم راوستو کښې د الله تعالیٰ وحی ته محتاج وو.
الۡعَلِیۡمُ: ظاهري خبرو باندې هم علم لري، او الخبیر: په باطني خبرو هم خبردار دې.
نَبَّاَنِیَ الۡعَلِیۡمُ الۡخَبِیۡرُ: پدې آیت کښې بله فائده د الله د علم او د قدرت بیان دې، چه رب هغه ذات دې چه د هغهٔ نه هیڅ یوه خبره نهٔ پټیږي، دوه زنانه پټې خبرې کوي نو الله هغه هم آوریدلې دي، او خپل نبي ته ئې خبر ورکړیدې.
رسول الله ﷺ د خپلې یوې بي بي سره پټه خبره کړیده هغه هم الله آوریدلې ده. نو د الله په باره کښې دا عقیده ولرئ.
نو دا د ښځې او خاوند دپاره فائده منه خبره ده چه ښځه دا عقیده وساتي چه که زما خاوند زما په کور کښې نشته هم الله تعالیٰ ماویني، غټ مالك مې موجود دې. زهٔ به ورانې نکوم، دغه شان سړې دې هم دا خیال وکړي.

| اِنۡ تَتُوۡبَاۤ اِلَی اللّٰہِ فَقَدۡ صَغَتۡ قُلُوۡبُکُمَا |
|---|
| که چرته توبه اُوباسئ تاسو دواړه نو یقیناً مائله شویدي زړونه ستاسو |
| وَاِنۡ تَظٰہَرَا عَلَیۡہِ فَاِنَّ اللّٰہَ ہُوَ مَوۡلٰىہُ |
| او که چرته تاسو یو بل سره مدد کوئ په خلاف دهٔ نو یقیناً الله مددګار دهٔ دې |

| وَجِبْرِيلُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمَلَائِكَةُ بَعْدَ ذَٰلِكَ ظَهِيرٌ ﴿٤﴾ عَسَىٰ |
| --- |
| او جبریل (ﷺ) او نیکان مؤمنان او ملائك روستو ددې نه مددګار دی. امید دې |
| رَبُّهُ إِنْ طَلَّقَكُنَّ أَنْ يُبْدِلَهُ |
| د رب د نبي (ﷺ) نه که چرته تاسو (دې) طلاقې کړی نو بدل کښې به ورکړی ده ته |
| أَزْوَاجًا خَيْرًا مِّنكُنَّ مُسْلِمَاتٍ مُّؤْمِنَاتٍ قَانِتَاتٍ |
| بیبیانې غوره ستاسو نه مسلمانانې، ایمان لرونکې، تابعداری کونکې، |
| تَائِبَاتٍ عَابِدَاتٍ سَائِحَاتٍ ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا ﴿٥﴾ |
| توبه ویستونکې، بندګی کونکې، روژې نیونکې، کونډې او جینکۍ. |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ دواړو ته خطاب کوی، فرمائی چه تاسو دواړو د رسول الله ﷺ هغه ادب او احترام ونهٔ کړو کوم چه د هغهٔ حق دې، تاسو له ددې ګناه نه توبه کول پکار دی دې دپاره چه الله تعالیٰ ستاسو توبه قبوله کړی، اوکه چرې تاسو دواړه په یوه داسې خبره باندې اتفاق کوئ کومه چه د نبی کریم ﷺ د تکلیف باعث وی، نو پوهه شئ! چه د نبی مولیٰ الله دې، او جبریل دې، او نیکان ایماندار دی، او ددې ټولو نه پس ملائك د هغهٔ د مدد دپاره هر وخت تیار دی.

دې وجې نه هیڅوك د هغهٔ یو وېښتهٔ هم خرابولې نشی. تاسو دواړه خو ښځې یئ، د الله، جبریل او ملائکو په مقابله کښې ستاسو څهٔ حیثیت کیدې شی؟.

مفسرین لیکی چه په دې آیت کښې د نبی کریم ﷺ د عظیم ترین شرافت او عزت بیان، او د هغوئ د مذکوره دواړو ښځو دپاره تنبیه او دهمکی ده.

فَقَدْ صَغَتْ قُلُوبُكُمَا : دا د صَوُغ نه دې، مائل کیدو او جوړیدلو ته وئیلې کیږی، که په ښه طریقه وی او که په بدې طریقې سره وی، او زیغ همیشه په بده طریقه کښې استعمالیږی.

بیا ددې دوه مطلبه دی، یو دا چه ستاسو زړونه مائل شویدی توبې ته. او دلته به جزاء پټه وی، اَیْ اِنْ تَتُوْبَا اِلَی اللّٰهِ فَتَوْبَتُكُمَا مَقْبُوْلَةٌ لِاَنَّهٗ قَدْ صَغَتْ قُلُوْبُكُمَا اِلَی التَّوْبَةِ وَاِلَی اللّٰهِ.

کـه تـاسـو الله تـه توبه وباسئ نو ستاسو توبه مقبوله ده ځکه چه ستاسو د دواړو زړونه تـوبې او الله تـعـالئ ته مائل شویدي. او توبې دپاره جوړ شویدي. نو پدې کښې هغوی ته ترغیب دې چه په جلتئ سره توبه وباسي.

دویم مطلب دا دې چه ستاسو زړونه کاږه شوي او اوړیدلي دي د خالص محبت د رسول الله ﷺ نـه ځـکـه چـه هغـه کـوم شـې بد ګڼړي (راز ښکاره کول) هغه تاسو تـه خوښ شویدي. نو ستاسو دپاره د توبې سبب موجود دې.

## د عربیت قانون

قُلُوْبُكُمَا : د عـربیـت یـو قانون دا دې چه کله تثنیه بلې تثنیې ته مضاف کولو کښې ثقل ګڼړي، نو د اول تثنیه نه جمع جوړه کړي نو دا افصح کلام دې، او اِفراد هم جائز او فصیح دې. او تثنیه راوړل صرف جائز دي. او ددې مثال : ﴿ فَاقْطَعُوْا اَيْدِيَهُمَا ﴾ دې. (مائده: ۳۸)

وَاِنْ تَظَاهَرَا عَلَيْهِ : تـظاهر د یـو بـل ملا تړل او ملا تینګول او مدد کول دي، او عَلٰی کلمه د ضرر دپاره ده، یعنې د هغهٔ په خلاف او د هغهٔ د ایذاء (ضرر) ورکولو دپاره.

د بیبیانو هیڅکله اراده د ضرر نهٔ وه پدې وجه ئې دا په اِنْ (فرضي طریقې) سره ذکر کړو.

وَجِبْرِيْلُ : غوره دا ده چه دا مبتداء ده، او روستو پرې عطف دې، او ظهیر ددې خبر دې، او هغه جنس دې په معنیٰ د جمع سره. او مفرد ئې پدې وجه ذکر کړو چه د دوئ په مینځ کښې پوره اتحاد او اتفاق دې ګویا که یو دي.

وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِيْنَ: ددې نه مراد تول صحابه کرامؓ دي.

بعض وائي : هغه څوك چه د نفاق نه بري وي. او صالح المؤمنین په اصل کښې صَالِحُوْا الْمُؤْمِنِيْن دې، په خط کښې واو حذف شویدې او اصل کښې مراد دې.

یا صالح اسم جنس دې ټول مؤمنان سابقین او روستني ټول پکښې داخل دي. چه هغوی اکرام د رسول الله ﷺ کوي، او په هغهٔ باندې درود وائي او د هغهٔ د سنت تابعداري کوي.

او په صالح المؤمنین کښې پټه اشاره ده چه زما ددې نبي دوستان به هغه څوك وي چه هغوی کښې صلاحیت وي، او کـه چا کښې صلاحیت او نیکي نهٔ وي نو هغه د نبي دوست نشي کیدې، هسې په دعوه باندې کار نهٔ کیږي.

(جبریل) نے مخکښې ذکر کړو ځکه چه هغه به هر وخت دے نبی کریم ﷺ ته وحی راوړله په اذن د الله تعالیٰ سره، او وریسے مؤمنین ذکر کړل چه هغوی دغه وحی لولی او اتباع (تابعدار) د رسول الله ﷺ دی، او نور ملائک ئے روستو ذکر کړل ځکه چه د هغوی د نبی کریم ﷺ د جبریل علیه السلام او د صالح المؤمنین نه تعلق کم دے۔

**ظَهِيرٌ**: مددګار۔ واحدیؒ وائی : دا هغه واحد لفظ دے چه په معنیٰ د جمع سره دے، لکه ﴿وَحَسُنَ أُولَئِكَ رَفِيقًا﴾۔

ابوعلی الفارسیؒ لیکی چه فعیل وزن د کثرت دپاره هم استعمالیږی۔ لکه ﴿وَلَا يَسْأَلُ حَمِيمٌ حَمِيمًا﴾۔ (المعارج : ۱۰)

**سوال** دا دے چه یواځے د الله تعالیٰ مدد کافی دے، نو جبریل علیه السلام او ملائک او نیکان مؤمنان ئے ولے ورسره ملګری کړل؟

**جواب** دا دے چه پدے کښې د مؤمنانو د زړونو خوشحالول مقصد دے۔

دویم پدے کښې د نبی کریم ﷺ توقیر او عزت کول دی، او دریم پدے کښې د رسول الله ﷺ معجزات ښکاره کول دی۔ چه د هغهٔ مدد له به دا ټول خلق راپورته کوی لکه په بدر او حنین کښې ئے ملائک رالیږلی وو۔ (فتح البیان)

**عَسٰى رَبُّهٗ** : په دے آیتِ کریمه کښې حفصے، عائشے او نورو امهات المؤمنین ته نوره دهمکی ورکړے شوے ده، او هغوئ ویرولے شوی دی چه که تاسو زما نبی له تکلیف ورکوئ نو ممکنه ده چه هغه تاسو ټولو له طلاق درکړی، او د هغهٔ رب ستاسو په بدله کښې هغهٔ له ستاسو نه ښے ښځے ورکړی،

لیکن الله تعالیٰ په هغوئ باندے مهربانی وکړه، او ددے آیت د نازلیدو نه پس تمامو امهات المؤمنین نبی کریم ﷺ راضی کړو، د هغهٔ انتهائی درجه ادب او احترام ئے اوکړو، او بهترینے مسلمانے ښځے جوړے شوے، دے وجے نه رسول الله ﷺ هغوئ له طلاق ورنهٔ کړو، بلکه هغه چه ترڅو پورے په دنیا کښې وو، هغه ټولے د هغهٔ ښځے پاتے شوے، او په آخرت کښې به هم د هغوئ بیبیانے وی۔

علامه قرطبیؒ لیکی چه الله تعالیٰ پوهیدو چه رسول الله ﷺ دوی ته طلاق نهٔ ورکوی لیکن د خپل قدرت نه ئے خبرے کړے چه که بالفرض دے تاسو لره طلاق درکړی نو ستاسو نه به ورته غوره ورکړی۔

هر كله چه هغه طلاقے نكړے معلوميږي چه د هغوى نه په دنيا كښې غوره بيبيانے نورے نهٔ وے خكه ئے خپل نبي ﷺ ته ورنكړے

مُسْلِمَاتٍ: پدے صفاتو ذكر كولو كښې تولو بيبيانو د نبي كريم ﷺ او د تول امت زنانو ته ترغيب دے چه تاسو خان كښې دا صفات پيدا كړئ.

دا د قرآن د دعوت طريقه ده چه په اشاره كښې دعوت كوى.

او دا شپږ صفتونه د كمال عبديت دى په انسان كښې، نارينه وى او كه زنانه.

او روستنے (ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا) صفت د عبديت سره تعلق نهٔ لرى، اشاره ده چه هغه صفت خان له سبب د كمال او د افضليت نهٔ دے، خكه چه بعض ثيبه زنانه د نيك عمل او عقيدے په سبب د جاهلے باكرے (خوانے) نه ښه وى.

مُسْلِمَاتٍ: يعنى د الله تعالىٰ د حكمونو تابعدارے به وى. اسلام نه مراد په اخلاص سره پوره انقياد (تابعدارى) كول دى.

او د تصديق دپاره پوره اخلاص شرط دے، پدے وجه ئے اسلام د ايمان نه مخكښې راوړو.

مُّؤْمِنَاتٍ: په الله تعالىٰ او په ملائكو او كتابونو او رسولانو باندے او تقدير د خير او شر باندے به تصديق كونكى وى.

قَانِتَاتٍ: ددے نه مراد طاعت د الله تعالىٰ او د رسول دے په پوره اطاعت سره. يا د خاوند پوره تابعدارے به وى. يا قنوت په معنىٰ د خشوع او عاجزئ سره دے. يعنى الله تعالىٰ ته به عاجزى كونكى وى.

بعض وائى: قنوت نه مراد مُصَلِّيَاتٍ بِاللَّيْلِ دى. يعنى د شپے الله تعالىٰ ته ودريدونكے مونځ كونكے. كومے زنانه كښې چه قنوت وى نو د هغے د خاوند سره ورانے نهٔ راځى، عاجزى په زنانه كښې ډير ښكلے صفت دے.

تَائِبَاتٍ: يعنى الله تعالىٰ ته به ډيرے توبے وباسى، برابره ده چه گناه ئے كړى وى او كه نهٔ.

يا: رَاجِعَاتٍ إِلَى اللّٰهِ وَإِلَى أَمْرِ رَسُوْلِهٖ ﷺ عَنِ الْهَفَوَاتِ وَالزَّلَّاتِ.

يعنى راواپس كيدونكى به وى الله تعالىٰ ته، او د هغهٔ د رسول امر ته د بيهوده خبرو او لغزشونو نه.

او پدے سورت كښې ترغيب توبے ته زيات دے نو خكه ئے دا لفظ راوړو.

غابِدَاتٍ : (يعني ډير عبادتونه كونكى به وى). پدے كښې اشاره ده چه مخكنى صفتونه د خپل طبيعت په وجه سره، يا د رياء په وجه يا د نفاق په طريقه سره نهٔ كوى بلكه د الله تعالىٰ د عبديت په سبب سره ئے كوى.

كومه زنانه كښې چه عبادت نهٔ وى نو هغے كښې ورانے زيات وى، د كبر نه ډكه وى. عبادت انسان كښې نرمى پيدا كوى.

سَائِحَاتٍ : سياحت په اصل كښې په زمكه كښې گرزيدل دى، دلته ددے درے معانى دى، روژه نيونكے، هجرت كونكے، د طاعت دپاره گرزيدونكے.

علامه قاسمیؒ ليكى چه د سير فى الارض كوم حكم چه د سرو په حق كښې ذكر دے لكه په سورة حج (٤٦) او سورة غافر (٢١) او سورة روم (٩) آيت كښې دغه د زنانو دپاره هم مشروع دے.

ثَيِّبَاتٍ وَأَبْكَارًا : ثيبات جمع د ثَيِّبَةٌ ده، كونډے ته وائى، د ثُوب نه دے رجوع ته وئيلے شى، او دا هم د خاوند د مرگ يا طلاق نه پس خپل مور او پلار كره واپس شى.

او نبى كريم ﷺ له الله تعالىٰ دواړه قسمه بيبيانے وركړے وے.

وجه دا ده چه ثيبات كښې عقل او تجربه زياته وى او حمل زر اخلى. او باكره مزيداره او زړه خوشحالونكے او ډيرے لوبے او مستى كونكى وى غالباً.

| |
|---|
| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا قُوا أَنْفُسَكُمْ وَأَهْلِيكُمْ نَارًا وَقُودُهَا النَّاسُ |
| اے ايمان والو! بچ كړئ خانونه خپل او اهل خپل د اُور نه، خشاك د هغے به خلق وى |
| وَالْحِجَارَةُ عَلَيْهَا مَلَائِكَةٌ غِلَاظٌ شِدَادٌ |
| او كانړى، په هغے باندے ملائك دى سخت طبيعت والا، طاقتور، |
| لَا يَعْصُونَ اللَّهَ مَا أَمَرَهُمْ وَيَفْعَلُونَ مَا |
| نافرمانى نهٔ كوى د الله نه د هغے چه امر ئے كړے وى دوى ته، او كوى دوى هغه څه |
| يُؤْمَرُونَ ﴿٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَعْتَذِرُوا الْيَوْمَ إِنَّمَا |
| چه دوى ته حكم وركيدے شى. اے كافرانو! بهانے مهٔ كوئ نن ورځ يقيناً |

| تُجۡزَوۡنَ مَا كُنۡتُمۡ تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۷﴾ |
| --- |
| بدله درکولے شي تاسو ته د هغې عملونو چه تاسو ئے کوئ. |

**تفسیر**: اُوس عام قانون بیانوی چه اے ایمان والو ! د خپلو ښځو او اولاد تربیت وکړئ، دوی ته ادب ورکړئ، دوی ته اخلاق وښایئ، دا د زنانو په تاسو باندے حق دے. او پدے کښ هغه چا ته یره او تخویف ورکول چه د رسول الله ﷺ خلاف کوی.

ربط

نو مخکښ د خاوندانو حقوق وو چه زنانه به خان کښ ښکلے صفات پیدا کوی نو اُوس د ښځو حقوق په سړو باندے ذکر کیږی.

یعنی خپل ځانونه او خپل خاندان والا د هغه عظیم او خطرناك اُور نه بچ کړئ چه د هغې خشاك به انسانان او د کانړو هغه بتان وی چه په دنیا کښ بُت پرستانو د هغې عبادت کړے وو.

او ددے نه د بچ کیدو صورت دادے چه دوئ د هغه گناهونو نه توبه کړی کوم چه د الله تعالیٰ د ناراضگئ او د آخرت د عذاب سبب جوړیږی، او د هغهٔ اوامر په ځائے کړی، او د منع شوو څیزونو نه بچ شی.

او اهل او عیال د جهنم دَاُور نه په دے طریقه بچ کیدلے شی چه هغوئ له د اسلام تعلیم ورکړی او په دے باندے په عمل کولو هغوئ مجبوره کړی.

د انسان دپاره ددے خطرناك اور نه د بچاؤ صورت همدا دے چه هغه خپل د اسلام او شریعت پابند جوړ شی، او د خپل لاس لاندے خلق هم په دے باندے په عمل کولو مجبوره کړی.

قُوۡٓا اَنۡفُسَكُمۡ: علی بن ابی طالب رضی الله عنه فرمائی : عَلِّمُوۡا اَنۡفُسَكُمۡ وَاَهۡلِيۡكُمُ الۡخَيۡرَ.

یعنی خپلو ځانونو او خپلو ښځو او بچو ته د خیر تعلیم ورکړئ.

د خیر تعلیم دا دے چه هغوی ته دین وښائی، اخلاق او آداب وښائی.

ددے آیت نه ثابته شوه چه په خاوند او د کور په مشر باندے دا فرض دی چه کور والو ته به د دین تعلیم ورکوی، او د هغوی تربیت به کوی.

لیکن افسوس ! چه زموږ کورونه د دین د خیر نه خالی وران پراتهٔ دی، او د دنیا د

خواهش پوره کولو سامانونو هیڅ کمے نشته، ټی، وی، کیبل او کمپیوټر او فیس بوك خو زمونږ ژوند جوړ شویدے. داسے کورونه به څنګه جوړ شی؟!!.
وَقُودُهَا النَّاسُ : د اُور دا صفت بیان کړے شو چه ددے خشاك به انسان او کاڼړی وی، نو ددے نه مقصد د همکی ورکول او ویرول دی، دے دپاره چه بنده ددے د هیبتناکئ تصور وکړی او د خپل رب طاعت او بندګئ طرفته مائله شی، او د جرمونو او ګناهونو نه پرهیز وکړی.
عَلَيْهَا مَلٰئِكَةٌ غِلَاظٌ : الله تعالیٰ وفرمایل چه کوم ملائك د جهنم داروغه ګان او پهره دار دی هغه انتهائی درجه تریو تندی او سخت نیوونکی دی، د هغوئ آوازونه به کریهه وی، او د هغوئ شکلونه به انتهائی بدشکله وی، هغوئ به د خپل قوت او زور په ذریعه جهنمیان ذلیله او رسوا کوی، او د دوئ په باره کښ به د الله تعالیٰ د اوامرو په نافذ کولو کښ د ذرے هومره نرمی او روسته والے نهٔ کوی.
هغه ملائك به د خپل رب انتهائی درجه فرمانبردار او خبره منونکے وی، او هغوئ ته چه کوم حکم کیږی د هغے په کولو کښ به هیڅ کله تاخیر نهٔ کوی.
غِلَاظٌ شِدَادٌ: ۱ -غِلَاظٌ عَلٰی اَهْلِ النَّارِ شِدَادٌ عَلَيْهِمْ لَايَرْحَمُوْنَهُمْ.
په اُور والو باندے به سختی کونکی وی او هغوی لره به سخت رانیونکی وی چه هیڅ رحم به پرے نهٔ کوی. ځکه چه دوی الله تعالیٰ د خپل غضب نه پیدا کړیدی، او دوی ته ئے د مخلوق عذاب ورکول خوښ کړیدی.
۲ - غِلَاظُ الْاَقْوَالِ شِدَادُ الْاَفْعَالِ. سختو خبرو والا به وی او سختو کارونو والا به وی.
۳ - غِلَاظُ الْاَجْسَامِ وَالشِّدَادُ الْاَقْوِيَاءُ.
بدنونه ئے غټ او پیړ او سخت دی، او قوی دی چه د چا وس پرے نهٔ کیږی چه ځانونه ترے خلاص کړی.
٤ - غِلَاظُ الْقُلُوْبِ شِدَادُ الْاَبْدَانِ. سخت زړی او سخت بدنی دی.
يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا : اُوس کافرانو ته د هغوی په کفر او نافرمانئ باندے تخویف (یره) ورکوی.
دا جواب د یو وَهم دے، که څوك ووائی چه د ملائکو نه خو نشی بچ کیدے، لیکن کیدے شی چه الله تعالیٰ ته عذرونه پیش کړی، او هغه ورله عذرونه قبول کړی، نو پدے

آیت کښې ئې جواب وکړو۔

مناسبت:

د قیامت په ورځ د کافر عذر نشته او نهٔ قبلیږي، نو دغه شان اے مؤمنه! که تا د کافر په شان نافرمانی شروع کړه، نو بیا به ستا عذر هم نهٔ وي، ځکه چه تهٔ پوهه کړے شوے ئې، نو په کافر باندے رد کوي د مؤمن د یرولو دپاره۔

د قیامت په ورځ به اُور والو ته رټنه ورکړے کیږي او هغوئ ته به وئیلے کیږي چه اے کافرانو! اُوس به ستاسو هیڅ عذر د قبلیدو وړ نهٔ وي، د عذر کولو وخت په دنیا کښې وو چه هغه تیر شو، او اُوس به هیڅ کله واپس رانشي۔

دا خو د قیامت ساعت دے چرته چه بندګانو ته د دوئ د عملونو بدله ورکولے کیږي۔ او تاسو په دنیا کښې د الله نه انکار وکړو، د هغهٔ آیتونه مو دروغژن وګڼړل، او د هغهٔ د رسولانو اومومنانو خلاف مو جنګ وکړو، دے وجے نه ستاسو انجام معلوم دے۔

| يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا تُوبُوا إِلَى اللَّهِ تَوْبَةً نَّصُوحًا عَسَىٰ |
|---|
| اے ایمان والو! توبه اُوباسئ الله ته توبه د اخلاص والا (د خیر خواهئ والا) امید دے |
| رَبُّكُمْ أَنْ يُكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ |
| چه رب ستاسو وُبه ورژوي ستاسو نه ګناهونه ستاسو او داخل به کړي تاسو لره |
| جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ يَوْمَ لَا يُخْزِي اللَّهُ |
| جنتونو ته چه بهیږي به لاندے د هغے نه نهرونه په هغه ورځ چه نهٔ به شرموي الله |
| النَّبِيَّ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ نُورُهُمْ يَسْعَىٰ |
| نبي (خپل) لره او هغه کسان چه ایمان ئې راوړیدے د هغهٔ سره، رڼړا د دوي به منډے |
| بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَبِأَيْمَانِهِمْ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَتْمِمْ |
| وهي مخے د دوي ته او ښي طرفونو د دوي ته، وائي به دوي اے ربه زمونږ! پوره کړه |

لَنَا نُوْرَنَا وَاغْفِرْ لَنَا اِنَّكَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۸﴾

مونږ لره رڼرا زمونږ او بخنه وکړه مونږ ته یقیناً ته په هر شی قدرت لرونکے ئے۔

**تفسیر**: اُوس بیا ترغیب دے توبے ته، ځکه چه ګناه د هر مؤمن نه کیدے شی۔ الله تعالیٰ ایمان والو ته فرمائی: د خپلو تمامو ګناهونو نه په رشتینے زړهٔ سره داسے توبه وباسئ چه په هغے کښې د رب العالمین سره دا لوظ او وعده وی چه مونږ به هیڅ کله هم دغه ګناهونه نهٔ کوو۔

تَوْبَةً نَّصُوْحًا: یعنی د خیر خواهئ والا توبه۔ اَیْ تَوْبَةً تَنْصَحُوْنَ بِهَا اَنْفُسَكُمْ۔ داسے توبه چه په هغے سره تاسو د خپلو ځانونو خیر خواهی وکړئ۔

توبه دوه قسمه ده (۱) غیر نصوحا توبه، چه هسے د خولے توبه وباسی او بد عمل نهٔ پریدی، نهٔ بد اخلاقی او نهٔ بے ادبی او نهٔ ګناه پریدی، بلکه همغه شان خاوند سره بد اخلاقی کوی، هغه ترے په عذاب دے۔

(۲) دویم توبه نصوحا ده چه بنده پکښې د ځان خیر خواهی وکړی۔

توبه نصوحا دے ته وائی: ۱– اَلنَّدَمُ عَلٰى مَا فَعَلَ۔ په مخکنو ګناهونو خپیمانه کیدل۔

۲– وَالْاِقْلَاعُ عَنِ الذَّنْبِ۔ فی الحال ګناه پریخودل۔

۳– وَالْعَزْمُ عَلٰى اَنْ لَّا یَعُوْدَ۔ او دا کلك عزم کول چه بیا به ورته نهٔ راواپس کیږی،

او دارنګه که د بنده حق ئے برباد کړے وی نو د بنده نه معافی غوختل (لکه ښځه د خاوند نه معافی وغواړی)

۵– وَاَنْ یَّكُوْنَ ذٰلِكَ لِلّٰهِ۔ او دا توبه به د الله دپاره وی، داسے نهٔ چه مصیبت پرے راشی او د هغے نه د یرے په وجه زر توبه وباسی،

۶– او بل شرط دا دے (مُفَارَقَةُ سَیِّئِ الْخُلَّانِ) چه د غلطو ملګرو او د بد اخلاقه ښځو نه جدا کیدل ځکه چه هغه درته بیا وسوسے اچوی۔

عَسٰى رَبُّكُمْ: په داسے توبه باندے الله تعالیٰ دا وعده وکړه چه هغه به د دوئ ګناهونه معاف کړی، او دوئ به په هغه ورځ خپلو جنتونو ته ننباسی کله به چه الله په خپل فضل او کرم سره خپل نبی (ﷺ) او مومنان ونهٔ شرموی، په هغه ورځ به د مومنانو رڼرا د دوئ د لاربنودنے دپاره د دوئ مخے ته او د دوئ ښی اړخ ته منډے وهی۔

او کله چه دوئ د منافقانو رنړا مړه کیدونکے ووینی، نو د خپل رب نه به دعاء کوی او وائی به چه اے زمونږه ربه ! زمونږه رنړا باقی اوساته او هغه نوره زیاته کړه.

نو الله تعالیٰ به د دوئ دعاء قبوله کړی، او دوئ به د دوئ د رنړا په رهنمایئ کښې په خپل کاوند کښې جنتِ نعیم ته اورسوی.

عسی کښې معنیٰ دا ده چه د الله نه اُمید وساتئ.

لَا یُخۡزِیۡ : دے نه معلومه شوه چه په آخرت کښې به هر نبی او د هغه د تابعدارو مؤمنانو نه سوئ به ټول خلق شرمیدلی ولاړ وی.

وَالَّذِیۡنَ آمَنُوۡا مَعَهٗ : مَعَهٗ کښې فائده دا ده چه بنده څومره د نبی سره نزدے وی، نو د شرم نه وړاندے وی، او چه څومره د نبی د ملګرتیا او د هغه ـ سنتو نه وړاندے کیږی، نو شرمونو ته به نزدے کیږی. نو مَعَهٗ کښې اول ټول صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین داخل شول چه دا ډیر بختور خلق وو چه د رسول الله ﷺ معیت او ملګرتیا ورته په نصیب شوه.

بیا په اتفاق د علماؤ سره (کُلُّ مَنِ اتَّبَعَ الرَّسُوۡلَ ﷺ وَاَحَبَّهٗ) پکښې داخل دے، یعنی هر هغه څوک چه د رسول الله ﷺ صحیح تابعداری وکړی او د هغهٔ سره مینه ولری، نو هغه به د رسول الله ﷺ په قیامت کښې ملګرے وی.

نُوۡرُهُمۡ: دلته نُور په درے اسبابو کښې دے، اتباع، ایمان او توبه.

یَقُوۡلُوۡنَ: دا به په هغه وخت کښې وائی چه الله تعالیٰ د منافقانو رنړا مړه کړی.

| یَا اَیُّهَا النَّبِیُّ جَاهِدِ الۡکُفَّارَ وَالۡمُنَافِقِیۡنَ وَاغۡلُظۡ عَلَیۡهِمۡ |
| --- |
| اے نبی ! جهاد کوه د کافرانو او منافقانو سره او سختی کوه په دوی باندے |
| وَمَاۡوٰهُمۡ جَهَنَّمُ وَبِئۡسَ الۡمَصِیۡرُ ﴿۹﴾ |
| او ځائے د اُوسیدو د دوی جهنم دے او بد ځائے د ورګرځیدو دے. |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ د کافرانو او د منافقانو په خلاف د جهاد کولو او په هغوئ باندے د سختی کولو حکم کړیدے.

## ربط

**سوال** دا دے چه مخکښې خبره د عائشے او حفصے رضی الله عنهما شروع ده او سمدست الله تعالیٰ د منافقانو او کافرانو سره د جهاد حکم کوی، نو ددے څه مناسبت دے؟ - **جواب** دا دے چه پدے کښې ډیرے فائدے دی:

(۱) یو دا چه کله د رسول الله ﷺ په کورنئ کښې دا معمولی شان حالات رامخے ته شول نو منافقان خبر شول، نو پدے خوشحاله شول چه ښه دے چه د نبی په کورنئ کښې اختلافات پیدا شول، نو الله فرمائی چه دے کافرانو او منافقانو له سزا ورکول پکار دی.

(۲) پدے کښې د حفصه او عائشه رضی الله عنهما تربیت دے، د هغوی دا گمان وو چه نبی کریم ﷺ نرم انسان دے، مونږ ته څه نهٔ وائی که څه وکړو، که ددهٔ راز هم افشاء کړو نو دومره نقصان به نهٔ وی،

نو الله تعالیٰ دوی ته تنبیه ورکوی چه دا پیغمبر اگرکه نرم هم دے خو ما هغه ته د غِلظت (سختی کولو) حکم هم کړیدے، نو چرته تاسو ددهٔ د نرمئ نه بده فائده وانخلئ.

(۳) پدے کښې په منافقانو باندے هم رد دے چه رسول الله ﷺ ئے اُذُن (د هرے خبرے آوریدونکے) یعنی نرم گڼړلو چه مونږ سره به سختی نهٔ کوی، نو الله تعالیٰ هغوی ته اشاره ورکوی چه دا نبی اگرکه نرم دے لیکن ما ورته د سختئ حکم هم کړیدے نو داسے سختی به درسره وکړی چه بیا به خپیمانه یئ.

جَاهِدِ الْكُفَّارَ : د جهاد دا حکم د ژبے، د قلم او د تورے او نیزے د تولو په ذریعه جهاد کولو ته شامل دے. د جهاد اولنئ مرتبه په حکمت او پوهے او نرمے طریقے سره د الله تعالیٰ خبره د خلقو مخامخ پیش کول دی، دوئ د دلائلو په ذریعه قائل کول دی.

او که چرے دا طریقه کار ورنهٔ کړی، او دشمنان د اسلامی دین خلاف جنگ ته تیار شی، نو وسله اُوچتول واجب کیږی، او د جنگ په میدان کښې به هغوئ له ماتے ورکول او اسلام غالب کول ضروری وی.

وَاغْلُظْ عَلَيْهِمْ: ددے سختئ ترتیب په سورة توبه کښې ذکر شویدے. یعنی د منافقانو بد صفات ذکر کول، دوئ ته زورنه ورکول او په دوئ باندے شرعی حدود قائمول دی.

| ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوا امْرَاَتَ نُوْحٍ وَّامْرَاَتَ |
|---|
| بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال دپاره د کافرانو د ښځې د نوح (علیه السلام) او د ښځې |
| لُوْطٍ كَانَتَا تَحْتَ عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا |
| د لوط (علیه السلام)، وے دواړه لاندے (یعنی په نکاح کښې) د دوه بندګانو د بندګانو زمونږ |
| صَالِحَيْنِ فَخَانَتٰهُمَا فَلَمْ يُغْنِيَا |
| نه چه نیکان وو نو دواړو خیانت اوکړو د هغوی سره نو هغوی دواړو دفع نکړو |
| عَنْهُمَا مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا وَّقِيْلَ ادْخُلَا النَّارَ |
| د دوی دواړو نه د عذاب د الله نه هیڅ شے او اُووئیلے شو داخل شئ دواړه اُور ته |
| مَعَ الدَّاخِلِيْنَ ﴿۱۰﴾ وَضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا لِّلَّذِيْنَ |
| سره د داخلیدونکو نه. او بیان کړیدے الله تعالیٰ مثال دپاره د هغه کسانو |
| اٰمَنُوا امْرَاَتَ فِرْعَوْنَ اِذْ قَالَتْ رَبِّ ابْنِ |
| چه ایمان ئے راوړیدے د ښځې د فرعون کله چه اُووئیل دے اے ربه زما! جوړ کړه |
| لِيْ عِنْدَكَ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَنَجِّنِيْ مِنْ فِرْعَوْنَ |
| ما لره ستا په خوا کښې کور په جنت کښې او بچ اُوساته ما لره د فرعون نه |
| وَعَمَلِهٖ وَنَجِّنِيْ مِنَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۱﴾ |
| او د عمل د هغهٔ نه او بچ اُوساته ما لره د قوم ظالمانو نه. |

**تفسیر**: دوه مثالونه راوړی اول مثال د کافرانو دے، او دویم د مؤمنانو، او دواړه مثالونه اول د حفصے او د عائشے رضی الله عنهما سره هم لګی.

پدے دواړو مثالونو کښې الله تعالیٰ دے دواړو بیبیانو ته تنبیه ورکړیده چه د محمد رسول الله ﷺ په نکاح کښې راتللو سره تاسو کامیابیدے نشئ کله چه په تاسو کښې ایمان

او تقویٰ نهٔ وی، مثال ئے د نوح او لوط علیهما السلام ښځے دی چه خاوندان ئے اُوچت پیغمبران دی لیکن دوی جهنمیانے دی، ځکه چه ئے ایمانه خیانتګرے وے نو الله هلاکے کړے. نو د نبی کریم ﷺ نبوت تاسو له فائده نهٔ درکوی کله چه تاسو کښ ایمان نهٔ وی.
ددے برعکس لکه یو خاوند ډیر ناکاره وی او ښځه ئے اُوچته مسلمانه ده، نو د خاوند ناکاره والے ښځے له ضرر نهٔ ورکوی.
دغه شان یوه ښځه ده چه پیغله ده، هیڅ خاوند ئے نهٔ دے کړے نو هغے له پیغلتوب ضرر نهٔ ورکوی کله چه هغے کښ ایمان او تقویٰ موجوده وی.
اُوس دواړه مثالونه د ټولو مؤمنانو سره او ښځو سره هم لګی، مُخَالَطَةُ الْكَافِرِيْنَ لَا يَضُرُّ الْمُؤْمِنِيْنَ وَلَا يَنْفَعُ الْكَافِرِيْنَ) اول مثال د کافرانو دے چه مخالطت (شریك وسیدل) د کافرانو د مسلمانانو سره دوی ته فائده نهٔ ورکوی. نو کافر له د مسلمان ایمان فائده نهٔ ورکوی، دا مهٔ وایه چه زما پلار یا خوی مسلمان دے، زهٔ به د هغه په وجه بچ شم، او جنت ته به داخل شم، نهٔ بلکه خپل ایمان به راوړے او نیك عمل به کوے.
د ایمان نه مخکښ پلار او بچی یو بل ته فائده نشی ورکولے لکه بعض خلقو به دا ونیل چه زمونږ خپل خپلوان ښهٔ خلق دی، مونږ به د هغوی په وجه جنت ته لاړ شو.
**(دویم)** : بعض زنانه د کافرانو په نکاح کښ وے لکه زینب رضی الله عنها د ابو العاص بن ربیع په نکاح کښ وه چه دے لا په اسلام مشرف شوے نهٔ وو، او داسے نورے زنانه، نو الله تعالیٰ ورته فرمائی چه که تاسو د کافرانو په نکاح کښ یئ هم تاسو ته د هغهٔ کفر ضرر نهٔ درکوی، لکه فرعون او د هغهٔ بی بی آسیه (رضی الله عنها) واخله چه د فرعون کفر د آسیه ایمان ته هیڅ ضرر ورنکړو.
دغه شان یوه ښځه ده چه هغے بیخی خاوند نهٔ دے کړے او ایمان پکښ موجود دے، نو ایمان دومره اُوچت دولت دے چه هغے له ایمان فائده ورکوی لکه مریم رضی الله عنها ته وګوره.
**امْرَأَةَ نُوحٍ وَامْرَأَةَ لُوطٍ** : دلته ئے (زَوْجَه) لفظ ذکر نکړو ځکه د دوئ د خاوندانو سره په عقیده کښ موافقت نهٔ وو، صرف نکاح وه، او زوجه غالباً په هغه مقام کښ ذکر کیږیٔ چه د ښځے او د خاوند موافقت وی.
**تَحْتَ** : دے لفظ کښ اشاره ده چه زنانه به د خاوند نه ځان خکته ګنړی.

او پدے لفظ کښې دے ته هم اشاره ده چه ددے دواړو زنانو د خپلو خاوندانو سره ډیر جوخت تعلق وو، همیشه به ئے د هغوی عبادتونه او نیکیانے لیدلے لیکن بد بختنه وے، د هغوی نه ئے هیڅ عبرت او نصیحت وانخستو۔

عَبْدَيْنِ مِنْ عِبَادِنَا صَالِحَيْنِ : په عبدین او صالحین لفظ کښې اشاره ده چه د انبیاء علیهم السلام کمال هم دا دے چه په هغوی کښې د الله تعالیٰ پوره عبدیت او پوره صلاحیت او د الله تعالیٰ اطاعت موجود وی۔

او دلته ئے ضمیر راجع نکړو بلکه ددے دواړو پیغمبرانو دا دوه صفتونه ئے ذکر کړل، پدے کښې یو ددے پیغمبرانو شرافت او فضیلت ذکر کول دی۔

او دویم پدے کښې مقصد مثال ته اشاره ده چه انسان ته عادةً صرف د خپل ځان عبادت او صلاحیت (نیکی) فائده ورکوی، نهٔ د بل چا نیکی او صلاحیت، اګرکه دغه بل څوك په اعلیٰ مراتبو د صلاح او نیکئ کښې وی او الله ته ډیر قریب وی۔ (فتح البیان)

فَخَانَتَاهُمَا : یعنی دے دواړو د هغه دواړو سره خیانت وکړو اَیْ بِالْكُفْرِ وَالْعِصْيَانِ۔ په کفر کولو سره، او د هغو په مخالفت کولو سره۔

(أَوْ فَخَانَتَاهُمَا اَیْ فِي الْإِيْمَانِ، لَمْ تُوَافِقَاهُمَا عَلَى الْإِيْمَانِ وَلَا صَدَّقَتَاهُمَا فِي الرِّسَالَةِ)

یعنی هغوی سره ئے په ایمان کښې خیانت وکړو چه دواړو د هغوی سره په ایمان کښې موافقت ونکړو او نهٔ ئے په رسالت کښې د هغوی تصدیق وکړو۔

او د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه (مَا بَغَتِ امْرَأَةُ نَبِيٍّ قَطُّ) د هیڅ نبی ښځے زنا نهٔ ده کړے۔ (ابن ابی حاتم، ابن المنذر، ابو الشیخ، ابن عساکر) واحکام القرآن لابن العربی)

او د ابن عباسؓ نه دا هم روایت دے چه (د نوح علیه السلام د ښځے خیانت دا وو چه خلقو ته به ئے وئیل چه دے لیونے دے، او د لوط علیه السلام د ښځے خیانت دا وو چه قوم ته به ئے د لوط علیه السلام میلمانهٔ خودل (دے دپاره چه هغوی ئے بیعزتی وکړی) دغه د دواړو خیانت وو)۔

بعض وائی : د دواړو خیانت په نفاق سره وو، او بعض وائی په چغلی کولو سره وو۔

بعض وائی چه کله به لوط علیه السلام کره میلمانهٔ راغلل نو د هغه ښځے به لوګے رابښکاره کړو دے دپاره چه قوم ته پته ولګی چه لوط علیه السلام کره میلمانهٔ راغلی دی۔

(فتح البیان والقرطبی وتفسیر عبد الرزاق الصنعانی: ۱۲۳۴)

فَلَمْ يُغْنِيَا عَنْهُمَا مِنَ اللهِ شَيْئًا: يعنى د الله تعالىٰ د عذاب نه ئې هيڅ شے دفع نکړو۔
علامه قرطبيؒ ليکى : (فِيهِ تَنْبِيهٌ عَلَى اَنَّ الْعَذَابَ يُدْفَعُ بِالطَّاعَةِ لَا بِالْوَسِيلَةِ)
پدے کښې دا تنبيه ده چه د الله تعالىٰ عذاب په طاعت سره دفع کيږى، په وسيلو نيولو سره نهٔ دفع کيږى، او رد دے په مشرکانو باندے چه هغوى به ويل چه نبى کريم ﷺ زمونږ رشته دار او قومى دے، هغه به زمونږ دپاره سفارش کوى۔
الله وفرمايل چه د محمد ﷺ شفاعت د مکے کافرانو ته فائده نهٔ ورکوى اگرکه ددهٔ خپلوان دى۔
وَقِيلَ ادْخُلَا النَّارَ مَعَ الدَّاخِلِينَ: دا قول د الله تعالىٰ او د ملائکو د طرف نه دے، ددے وجه نه فاعل ذکر کولو ته ضرورت نشته۔
مَعَ الدَّاخِلِينَ: يعنى لکه څنگه چه پردى نور مشرکان اُور ته داخليږى، او د انبياء عليهم السلام سفارش ورته فائده نهٔ ورکوى، نو دغسے ددے دواړو ښځو حال هم دغه شان شو چه د دوئ انبياؤ عليهم السلام ته نسبت او قرب دوى ته فائده ورنکړه۔
او پدے کښې په يهوديانو باندے هم رد دے چه هغوى به په خپلو پلارانو نيکونو فخر کولو، او دا به ئې وئيل چه زمونږ پلاران نيکو نه انبياء (عليهم السلام) تير شويدى هغوى به مونږ د اُور نه بچ کوى۔
وَضَرَبَ اللهُ: دا دويم مثال دے چه الله تعالىٰ ئې د مؤمنانو د پوهے دپاره ذکر کوى چه اے مؤمنه ! (نارينه وى او که زنانه) کله چه تا کښې ايمان موجود وى نو د مشرك سره خپلولى او نکاح وغيره تا ته هيڅ ضرر نهٔ درکوى۔
اُوس هم ډيرے زنانه شته چه خاوند ئې چرسى پوډرى وى، مونځ نکوى، نکاح ئې ورسره ماته ده، ليکن هغه غريبه ترے نشى تللے نو مجبوره ده نو کله چه دا نيك عمله وى نو د خاوند بد عملى ورته ضرر نهٔ ورکوى۔
(او مشرك ته خور لور ورکول صحيح نهٔ دى ليکن که په جاهليت کښې ورکړے شوى وى او زنانه موحده وى، مجبوره وى نو د مشرك خاوند شرك ورته ضرر نهٔ ورکوى)۔
امْرَأَةَ فِرْعَوْنَ: ددے نوم آسيه بنت مزاحم وو۔ بعض وائى : دا اسرائيليه وه، او د موسىٰ ﷺ د پلار خور (ترور) وه۔
او بعض وائى : د فرعون د ترهٔ لور وه۔ او دا د عمالقه ؤ نه وه، او د ډير رشتينى فراست

مالکه وه، په موسیٰ ﷺ بانديې ئې ایمان راوړے وو نو فرعون په هغې بانديې ظلمونه شروع کړل.
(همیشه دپاره د غټو کافرانو د طرف نه په کمزورو مظلومانو ډیر زیات ظلم شویدے).

قصه :

هر کله چه الله تعالیٰ موسیٰ ﷺ ته نبوت ورکړو نو د فرعون لور وه او د هغې یوه ماشطه (سر کمنزونکے خدمتګاره) وه، د هغې دوه درے بچي وو، نو هغې په موسیٰ ﷺ بانديې پټ ایمان راوړو (او همیشه په انبیاؤ علیهم السلام بانديې کمزورو خلقو ایمان راوړیدے لکه په مکه کښې زِنّیرے، او ام عمارے رضی الله عنهما ایمان راوړے وو)
نو یوه ورځ د سر کمنزولو په وخت د هغې د سر نه کمنز پریوته نو هغه ئې راواخسته او بسم الله ئې ووئیله نو جینۍ ورته په تعجب سره وکتل چه بسم الله ډِیے څنګه ووئیله او ورته ئې ووئیل : (آلكِ رَبٌّ غَيْرُ وَالِدِيْ؟) آیا ستا دپاره زما د پلار نه علاوه بل رب شته؟) نو هغې ووئیل : آؤ، زما رب او ستا د پلار رب او د ټول عالَم رب یو الله دے.
هغې ووئیل : دا خبره زۀ پلار ته وکړم؟ هغې ووئیل : وکړه، لور ئې فرعون ته ددے د ایمان خبر ورکړو چه په موسیٰ ﷺ ئې ایمان راوړیدے. هغه راطلب کړه، ورته ئې ووئیل : آیا تا ایمان راوړیدے؟ هغې ووئیل : آؤ، ما په الله او په رسول ایمان راوړیدے، فرعون ورته دهمکي ورکړه او ردے بدے ئې ورته ووئیلے چه ایمان پریده، ورته ئې ووئیل : زۀ به ډِیے مړه کړم او بچے به ډِیے هم مړۀ کړم، هغې ووئیل :
دا هر څه ډِیے وشي خو زۀ ایمان نۀ پریدم (الله مضبوطه کړه) نو پدے وخت کښې فرعون د وسپنے یو کړائي راوړو او هغه ئې انتهائي ګرم کړو، او دے ته ئې ووئیل چه اُوس ایمان پریده ګنے دے کړائي ته ډِیے اول بچي بیا تا غورزوم؟
نو هغې ورته ووئیل چه زما یو سوال ومنه. هغه دا چه کله ډِیے مونږ مړۀ کړو نو ما او زما بچي به په یو ځای ښخوے، نو نمبر په نمبر ئې د هغې بچي وغورزول کله چه آخري بچے پاتے شو چه هغه تے رودلو نو دا د هغۀ د وجه نه لږ شان روستو شوه، نو هغه ورته آواز وکړو :

(يَا أُمَّهْ، اِقْتَحِمِيْ فَإِنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الآخِرَةِ فَاقْتَحَمَتْ)

اے مورے ! رانوزۀ خکه چه د دنیا عذاب د آخرت د عذاب نه ډیر آسان دے، نو آخرئے هغه هم وغورزوله، بیائے هغه جنے راواخستے او په یو ځای ئے خښے کړے.
حدیث کښ دی : رسول الله ﷺ چه کله معراج ته لاړو نو په جنت کښ گرزیدو نو یوه ناشنا خوشبوئی پرے راغله، تپوس ئے وکړو اے جبریله ! دا څنګه ناشنا خوشبوئی ده؟ وے وئیل : دا خو د ماشطے د قبر خوشبوئی ده، هغه تپوس وکړو چه ماشطه څوک ده؟ نو جبریل علیه السلام ورته په دغه شپه کښ دا قصه بیان کړه.
(اخرجه احمد ۱/۳۱۰) وابن حبان (۳۷/۳٦) والطبرانی (۱۲۲۷۹) قال السیوطی فی الخصائص (۳۹۹/۱) سنده صحیح، وقال ابن کثیر : اسناده لا بأس به، وقال الذهبی فی العلو (۸٤) هذا حدیث حسن الاسناد، وصحح اسناده العلامة احمد شاکر فی تعلیقه علی المسند (٤/۲۹۵) وقال الارنووط فی تخریج المسند (۳۰/۵/۳۱، رقم :۲۸۲۱) اسناده حسن، وقال الالبانی فی اسناده ضعف، لاختلاط عطاء بن السائب وما قیل من سماع حماد منه قبل اختلاطه فقد قیل ایضا : انه سمع منه بعد الاختلاط کما هو مبین فی (التهذیب) انتهیٰ. ولکن قال ابن کیال الشافعی : استثنی الجمهور روایة حماد بن سلمة عنه ایضا قاله ابن معین وابو داود والطحاوی وحمزة الکنانی کما ذکر ابن عدی فی الکامل عن ابن معین وقال الطحاوی : وانما حدیث عطاء الذی کان منه قبل تغیره یؤخذ من اربعة لا من سواهم وهم شعبة وسفیان الثوری وحماد بن سلمة وحماد بن زید وقال حمزة بن محمد الکنانی فی امالیه : حماد بن سلمة قدیم السماع من عطاء، وقال عبد الحق فی الاحکام ان حماد بن سلمة سمع منه بعد الاختلاط کما قاله العقیلی، قال الابناسی وقد تعقب الحافظ ابو عبد الله محمد بن ابی بکر بن المواق کلام عبد الحق یعنی الذی ذکرناه وقال لا نعلم من قاله غیر العقیلی)، راجع (الکواکب النیرات فی معرفة المختلطین من الرواة الثقات ۱/۳۲۵/۳۲٦) لابن کیال.
دا خبرے او حالات چه کله د فرعون ښځے (آسیه بنت مزاحم) ولیدلے نو هغے هم ایمان راوړو، نو فرعون ورته ووئیل چه ایمان پریږده، هغے انکار وکړو نو دۀ ورله سزاګانے شروع کړے، ابو هریره رضی الله عنه فرمائی : چه فرعون د هغے په لاسونو او خپو باندے څلور میخونه تک وهل، (او لوی لوی کمرے به ئے ورله په خیټه کیخودے او په نمر کښ به ئے اچوله).
او چه کله به ئے دا په نمر کښ واچوله او خلق به ترے جدا شول نو ملائکو به په خپلو وزرو سره پډے باندے سورے کولو. او دے به د الله نه دا دعاء وکړه :

(رَبِّ ابْنِ لِیْ عِنْدَكَ بَیْتًا فِی الْجَنَّةِ الخ) چه زما ربه ! ته زما دپاره په جنت کښې یو کور جوړ کړه، او ما د فرعون، د هغه د بدو اعمالو او د هر ظالم د فتنې اوآزمائش نه محفوظه اوساته۔ [ فَکُشِفَ لَهَا عَنْ بَیْتِهَا فِی الْجَنَّةِ] نو الله تعالیٰ د هغې دعاء قبوله کړه۔ نو الله تعالیٰ هغې ته د جنت کور راښکاره کړو۔

(اخرجه ابو یعلی فی مسنده (٤/١٥٢١/١٥٢٢) واسناده صحیح (حسین سلیم اسد) والبیهقی فی شعب الایمان (٢/٢٤٤/١٦٣٧) والسلسلة الصحیحة (٦/٣٥/) (٢٥٠٨)

(دا د هغې کرامت وو چه په داسې سخت وخت کښې الله تعالیٰ ناشنا مددونه رالیږی لکه د خبیب ﷺ په لاس کښې به د جنت انګور ښکاره کیدل کله چه هغه قید کړے شوے وو۔ او پدې تکلیفونو تکلیفونو کښې د هغې روح الله تعالیٰ ته ورسیدو، او الله تعالیٰ د فرعون د فتنو نه محفوظه وساتله او د ایمان سره جنت ته ورسیده۔

او د داسې لونی کافرانو نه لوی لوی ظلمونه راښکاره کیږی لکه فرعون د آسیه او ماشطې سره ظلمونه وکړل، او ابوجهل سمیه رضی الله عنها او یاسر ﷺ شهیدان کړل، او دا ددې دپاره چه په آخرت کښې ئے الله تعالیٰ لوی عذاب ته بوځی چه د چا پرې رحم رانشی۔

عِنْدَكَ بَیْتًا فِی الْجَنَّةِ: علماء فرمائی : (اِخْتَارَتِ الْجَارَ قَبْلَ الدَّارِ) آسیه رضی الله عنها د ځان دپاره د کور نه مخکښې ګاونډی غوره کړو. ځکه ئے عِنْدَكَ مخکښې راوړو۔

او داسې دعاء د ډیر محبت د وجه نه کیږی چه اے الله ! ستا په خوا کښې ما ته په جنت کښې کور راکړه، چه ستا تعلق پکښې وی۔

وَنَجِّنِیْ مِنْ فِرْعَوْنَ: یعنی د فرعون د مجلس او د نکاح نه۔

وَعَمَلِهٖ: یعنی د فرعون د کفر او شرك /او ظلم او سزا نه مے خلاصه کړه۔

د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی چه د عمل نه مراد ددهٔ ډله او جماعت دے۔ (چه هغوی به هم د فرعون په حکم دے ته سزا ورکوله)۔

مفسرین لیکی : پدے آیت کښې دا خبره ثابته شوه چه د الله تعالیٰ پورے پناه طلب کول او هغهٔ ته التجاء او زاری کول، او د فتنو او امتحاناتو او مصیبتونو نه د خلاصی سوال کول، د نیکانو خلقو طریقه ده، او کوم خلق چه په آخرت ایمان لری د هغوی عادت دے۔

| وَمَرْيَمَ ابْنَتَ عِمْرَانَ الَّتِي أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا |
|---|
| او (مثال د) مریم لور د عمران (علیه السلام) هغه زنانه چه ساتلے ئے وو عورت خپل |
| فَنَفَخْنَا فِيهِ مِنْ رُوحِنَا وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ |
| نو پوکے وکړو مونږ په هغے کښې د روح زمونږ نه او تصدیق کړے وو هغے د کلمو |
| رَبِّهَا وَكُتُبِهِ وَكَانَتْ مِنَ الْقَانِتِينَ ﴿١٢﴾ |
| د رب خپل او د کتابونو د هغهٔ او وه دا د تابعداری کونکونه۔ |

**تفسیر** : دا عطف دے په (امْرَأَتَ فِرْعَوْنَ) باندے، یعنی الله د ایمان والو دپاره د مریم لور د عمران مثال هم بیان کړے دے، چه هغے د زنا او بدکاریٔ نه خپله شرمگاه ساتلے وه، او د عفت او پاکدامنیٔ اعلیٰ ترین مثال جوړېدو سره په دنیا کښې اوسیدله۔

پدے کښې یو مقصد مخکښې بیان شو چه که یوه زنانه بے خاونده وی خو چه کله هغه په دین باندے عمل کونکی وی نو هغے ته هیڅ ضرر نشته۔

نو پدے کښې د دریم قسم زنانو ذکر دے، او مخکښې مثالونو کښې دوه قسمه زنانه ذکر شوے۔ لکه دا خبره حافظ ابن قیم رحمه الله په اعلام الموقعین کښې تفصیلاً ذکر کړیده۔

او دویم دا چه یهودیانو په مریم علیها السلام باندے طعنونه لګول، لیکن هرکله چه هغه پاکدامنه وه، او په کلماتو د الله تعالیٰ یقین کونکے وه، نو د دشمنانو طعنونو هغے ته هیڅ ضرر ورنکړو، د الله په نیز د هغے په درجه کښې هیڅ نقصان رانغے۔

دارنګه مؤمن صالح داعی الی الله باندے که د دین دشمنان طعنونه او بهتانونه لګوی خو چه د هغه لمن پاکه وی، او په کتاب د الله باندے کلك وی نو هغه ته هیڅ ضرر او نقصان نشی رسولے۔

**أَحْصَنَتْ فَرْجَهَا**: یعنی محفوظ ئے ساتلے وو عورت خپل د بے حیائی او د سرو نه۔

**فَنَفَخْنَا فِيهِ**: دا ضمیر فرج ته راجع دے، او په فرج کښې د روح پو کلو مطلب دا نهٔ دے چه د هغے سره بے حیائی وشی بلکه د هغه روح پوکلو طریقه دا وه چه جبریل (علیه السلام) د

هغې په ګريوان کښې پوک کړو، نو هغه خکته لاړو او د عورت په لاره دننه رحم ته ورسيدو نو د هغې اثر د هغې په بدن کښې دننه سرايت وکړو، چه ددې په اثر سره عيسٰى عليه السلام پيدا شو.

فنفخنا کښې الله تعالىٰ ځان ته نسبت وکړو ځکه چه جبريل عليه السلام د الله په امر سره هغه پو کلې وو.

رُّوحِنَا: کښې اضافت د تشريف دپاره دې، يعنې هغه روح چه مونږ پيدا کړې وو.

وَصَدَّقَتْ بِكَلِمَاتِ رَبِّهَا: صَدَّقَتْ کښې يقين ته اشاره ده، او قَانِتِيْنَ کښې عمل ته. يعنې مريم رضي الله عنها د خپل رب له اړخه د نازل شوو صحيفو او کتابونو تصديق وکړو، د هغې علم ئې حاصل کړو، او د هغې مطابق ئې عمل وکړو، دې وجې نه الله تعالىٰ د هغې ددې صفتونو په ذکر کولو سره د هغې صفت اوکړو.

دارنګه وې فرمايل چه هغه د الله ډيره نيکه بندئ وه، هر وخت به د خپل رب په بندګئ کښې مشغوله وه، او هر دم کښې به د خپل رب لپاره په هغې باندې د خشوع او خضوع کيفيت راتلو.

## د کلمات او کتب ترمينځ فرق

کلمات تقدير ته وائي، يعنې د الله په قدري وعدو باندې، او کتب نه مراد د الله شريعتونه دي. يعنې د الله په وعدو او قدري فيصلو باندې هم يقين کونکې وه، او د هغې منلو ته تياره وه، او دغه شان د هغهٔ شريعت ئې هم منلې وو، او دا د انسان کمال دې، چه د الله دواړه قسمه فيصلې ومنې، او د الله په تقدير باندې راضي شي.

يا کلماتو کښې د الله تعالىٰ په وعدو باندې يقين مراد دې او په کتبه کښې اشاره ده چه هغه عمل کونکې وه د الله تعالىٰ په شريعت باندې، او دا د انسان کمال دې چه يقين ئې هم مضبوط وي او ورسره عملونه هم کوي.

مِنَ الْقَانِتِيْنَ: (مِنَ الْقَانِتَاتِ) ئې ونهٔ وئيل، پدې کښې تغليب شويدې، يعنې سړو له ئې په ښځو غلبه ورکړه، پدې کښې اشاره ده چه د مريم رضي الله عنها قنوت (عبادتونه) د سړو په شان کامل وو.

يا دلته قوم لفظ پټ دې، يعنې دا د هغه قوم نه وه چه هغوى به الله ته عاجزي کوله، او د الله په بندګئ کښې به مصروف وو ځکه چه دا د هارون عليه السلام د اولاد نه وه چه په بنې

اسرائیلو کښې په تقویٰ او قنوت سره مشهور وو.
نو په مریم علیها السلام کښې قوتِ علمي، قوت ایماني او قوت عملي درې واړه کامل وو.
مِنَ الْقَانِتِيْنَ: یعنی الله ته عاجزی کونکې وه/ او د طاعت کونکو نه وه د خپل رب.
په صحیحینو کښې د ابو موسیٰ اشعري رضی الله عنه نه نقل دی، نبی کریم ﷺ وفرمایل:
[كَمُلَ مِنَ الرِّجَالِ كَثِيْرٌ وَلَمْ يَكْمُلْ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا آسِيَةُ امْرَأَةُ فِرْعَوْنَ وَمَرْيَمُ بِنْتُ عِمْرَانَ وَخَدِيْجَةُ بِنْتُ خُوَيْلِدٍ، وَإِنَّ فَضْلَ عَائِشَةَ عَلَى النِّسَاءِ كَفَضْلِ الثَّرِيْدِ عَلَى سَائِرِ الطَّعَامِ]
(بخاری فی الانبیاء باب ۳۲، وفضائل اصحاب النبی ﷺ باب ۳۰، والاطعمة باب ۲۵ ومسلم فی فضائل الصحابة حدیث: (۷۰)
چه په سړو کښې ډیر خلق کمال ته رسیدلی دی، لیکن په ښځو کښې صرف درې ښځې کمال ته رسیدلی: د فرعون ښځه آسیه، مریم بنت عمران او خدیجه بنت خویلد، (رَضِيَ اللهُ عَنْهُنَّ) او د عائشې فضیلت په ښځو باندې داسې دې لکه د ثرید (ماتې کړې روټۍ) فضیلت د خوراکونو په تمامو قسمونو باندې. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة التحریم

۱– پدې سورت کښې خصوصي واقعات د حفصې او عائشې رضی الله عنهما ذکر شوه.
۲– ترغیب توبې ته ورکړې شو.
۳– واقعه د ښځې د نوح او لوط علیهما السلام او د آسیه او مریم په کښې ذکر شول.

ختم شو تفسیر د سورة التحریم په رحمت د ارحم الراحمین رمضان (۳) ۱٤۳۷هـ موافق (۲۰۱۶/۶/جون/۸ د چارشنبې (بدھ) ورځ. بجه: ۲۰:۱۰)
اسریت کالام.

❁❁❁

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آیاتها (۳۰) | (۶۷) سورة الملك مكية | رکوعاتها (۲) |
|---|---|---|

سورة الملك مكي دے، په دے کښې ديرش آيتونه او دوه رکوع دی

# تفسير سورة الملك

**نوم :** ددے سورت هم دير نومونه دی :

(۱) سُوْرَةُ الْمُلْك

(۲) سورة تَبَارَك،

(۳) الواقعه،

(٤) اَلْمُنْجِيَه (د عذاب قبر نه نجات ورکونکے سورت)

(٥) اَلْمَانِعَه۔

(٦) اَلْمَنَّاعَة (يعنى هغه سورت چه منع کونکے دے عذابونو د الله تعالىٰ لره ددے لوستونکو نه)

(۷) اَلْمُجَادِلَةُ۔ (جګړه او بحث کونکے سورت)

**فضائل :**

حافظ ابن کثيرؒ او امام شوکانیؒ او نورو ددے سورت د فضيلت په حقله ګڼړ روايتونه نقل کړی دی۔ يو حديث امام احمدؒ، ابوداودؒ، ترمذیؒ، نسائیؒ او ابن ماجهؒ او نورو د ابو هريره ﷺ نه روايت کړے دے : [اِنَّ سُوْرَةً مِنَ الْقُرْآنِ ثَلَاثُوْنَ آيَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ حَتّٰى غُفِرَ لَهٗ وَهِیَ سُوْرَةُ تَبَارَكَ الَّذِیْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ]

چه د الله په کتاب کښې يو سورت دے چه په هغے کښې ديرش آيتونه دی، دے يو سړی

لپاره سفارش وکړو، تردے چه هغه اوبخښلے شو۔ (ترمذی: ۲۸۹۱) واسناده حسن)

یو بل حدیث ترمذیؒ د جابر رضی الله عنه نه روایت کړے چه

[اِنَّ النَّبِیَّ ﷺ کَانَ لَا یَنَامُ حَتّٰی یَقْرَأَ الٓمٓ تَنْزِیْلَ وَتَبَارَكَ الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ]

نبی کریم ﷺ به د شپے تر څو پورے [الٓمٓ تَنْزِیْل] او [تَبَارَكَ الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ] نهٔ وو لوستلے، نهٔ به اُودهٔ کیدهٔ۔ (ترمذی: ۳٤۰۵ واسناده صحیح)

نور روایات هم شته لیکن په هغے کښې کلام دے۔ د قبر د عذاب نه د بچ کیدو ډیر ذرائع دی چه یو په هغے کښې تبارك الذی هره شپه لوستل دی۔

مناسبت :

۱- مخکښې د رسول الله ﷺ اتباع ذکر شوه چه د هغهٔ مخالفت مهٔ کویٔ، نو دلته د الله عظمتِ شان بیانیږی۔ او قرآن کریم عمومی طور سره د الله تعالیٰ او د رسول شان او عظمت بیانوی۔ ګویا که مخکښې سورت کښې رسالت وو او دلته توحید دے۔

۲- دارنګه مخکښې سورت کښې د انسانو په یو بل باندے حقوق ذکر شول، نو پدے سورت کښې د الله تعالیٰ حقوق ذکر کوی چه هغه توحید فی البرکات والاسماء والصفات دے، او ایمان په رسول او په قرآن او په بعث بعد الموت باندے۔

۳- مخکښې سورت کښې د جهنم د اُور هیبت بیان شو په یوه طریقه سره نو دلته بیا هیبت ذکر کوی په بله طریقه سره۔

## موضوع د سورت

۱- زمونږ شیخ محترم رستمیؒ فرمائی چه دعویٰ د سورت اثبات د توحید فی البرکات دے په عقلی دلیلونو سره، او په ذکر د اسماء او صفاتِ الهیه ؤ سره چه دولس دلیلونه دی، او لس اسماء دی۔ (یعنی الله د خپلو برکاتو تذکره کړیده چه ما دا دا کارونه کړیدی نو ما سره پدے کښې هیڅوك شریك نشته)۔

۲- ظاهر دا ده چه پدے سورت کښې بَیَانُ مَعْرِفَةِ اللهِ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی دے۔ یعنی الله تعالیٰ بندګانو ته خپل تعارف کړیدے په صورت د مُنعم او مُبَارك کښې۔ ددے تعارف په نتیجه کښې دوه خبرے ملګرے کړے شویدی، او بیا د هغے سره دوه نورے۔

اوله خبره : بعض انسانان (کافران) او شیطانان دی چه دومره لوی الله تعالیٰ موجود دے

او دوی نے نهٔ پیژنی۔ نو د دوی نتیجه به اُور د جهنم وی۔ چا چه الله نهٔ دے پیژندلے د هغوی صفات به راوړی، او اُور به ورله نتیجه ذکر کړی، د دوی یو صفت دے اَلْکُفْرُ بِاللهِ۔ په الله کافر دی، دویم صفت: تَکْذِیْبُ الرُّسُلِ۔ د الله پیغمبران دروغجن ګنړل۔
دریم صفت: اَلْغَفْلَةُ وَعَدَمُ الْاِصْغَاءِ اِلٰی کِتَابِ اللّٰهِ۔ ځان غافل کول او د الله کتاب ته غوږ نهٔ نیول، په هغے هیڅ پرواه نهٔ کول۔ (وَقَالُوْا لَوْ کُنَّا نَسْمَعُ اَوْ نَعْقِلُ) کښې ذکر دے۔
څلورم مرض: اَلْعُتُوُّ وَالنُّفْرَةُ عَنِ اللّٰهِ تَعَالٰی۔ د الله د حدودو نه تجاوز او د الله تعالیٰ نه نفرت کول۔ پنځم: عدم شکر۔ (د الله شکر نکول)۔
شپږم: اَلْاِسْتِعْجَالُ بِالْعَذَابِ۔ د الله عذابونه په جلتئ غوختل۔ دا صفتونه په انسان کښې ولے پیدا کیږی؟ نو دا د الله د نهٔ پیژندلو د وجه نه۔ ددے برعکس د هغه کسانو حال بیان شوے چه چا الله پیژندلے دے پدے دولسو دلیلونو سره نو د هغوی مدح او صفت به کوی، او الله تعالیٰ د هغوی عملونه بیانوی، یعنی چه چا الله وپیژندلو نو څه به وشی؟ نو هغه دا چه په دوی کښې به ښکلے صفات پیدا شی:
(۱) احسن عمل به پکښې راشی۔ د الله دپاره به ښکلے ښکلے عملونه کوی، لوی لوی قربانیانے به ورکوی۔
(۲) اَلْیَقْظَةُ۔ دا بندګان به ویښ وی، د هغهٔ دلائلو ته به ګوری او د هغے نه به فائده اخلی۔
(۳) دریم: اَلْخَشْیَةُ: دا هغه خلق دے چه د خپل رب نه یریږی، (د الله د پیژندلو سره د الله نه یره پیدا کیږی)۔
(٤) اَلشُّکْرُ۔ د دغه الله شکر به کوی۔
(٥) الایمان۔ په الله باندے به ایمان راوړی۔
(٦) په آخره کښې به فرمائی: (التوکل) بیا به په الله باندے ځان سپاری، توکل بغیر د معرفت نه نهٔ کیږی۔
نو دے سورت کښې د الله تعالیٰ معرفت ذکر دے سره د عظمت د هغهٔ نه، او د بندګانو نه دا مطالبه کوی چه دومره لوی الله ستاسو په سرونو موجود دے، نو دا کارونه وکړئ او ددے بل جانب نه ځانونه وساتئ۔
که دا نیك اعمال مو وکړل الله تعالیٰ به جنتونه درکړی، او که کفر مو وکړو نو اُور مو

خای دے۔

گویا که پدے سورت کښې الله تعالیٰ خپل ځان بندګانو ته راښکاره کړیدے، او دا سورت د انسان زړه خپل لوی الله طرفته بوځی۔

او چا چه الله تعالیٰ ته توجه کړیده نو د هغوی صفتونه او نیکه بدله ذکر کوی، او چا چه د دغه الله نه مخ اړولے دے، نو د هغوی بدی او سزا بیانیږی۔

یعنی د الله د تعارف سره بعض خلق متوجه کیږی او بعض خلق مخ اړوی۔ سورت به پداسے طرز روان وی۔

| تَبَارَكَ الَّذِىْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ وَهُوَ عَلٰى |
|---|
| برکت ورکونکے دے هغه ذات چه په لاس د هغهٔ کښې بادشاهی ده، او هغه په |
| كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱﴾ الَّذِىْ خَلَقَ الْمَوْتَ |
| هر شی باندے پوره قدرت لرونکے دے۔ هغه ذات دے چه پیدا کړے ئے دے مرګ |
| وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ |
| او ژوند، دے دپاره چه امتحان اُوکړی په تاسو چه کوم یو ستاسو نه ښائسته |
| عَمَلًا وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ ﴿۲﴾ |
| عمل والا دے، او هغه زورور دے، بخونکے دے۔ |

**تفسیر**: په دے آیتِ کریمه الله تعالیٰ خپل عظمت او کبریائی بیان کړے، او خپل ذات ئے د ملك او بادشاهئ، قدرت او علم اوحکمت غونته صفتونو سره متصف کړے دے۔

الله وفرمایل چه هغه الله عظمت او لویئ والا دے، د هغهٔ خیر او برکت عام او د هغهٔ احسان تمامو مخلوقاتو ته شامل دے۔

تَبَارَكَ: د برکت یوه معنیٰ ده تَعَالیٰ وَتَعَاظَمَ ۔ الله تعالیٰ اُوچت او لوی دے۔ یا الله د خیر والا دے۔ یا د هر خیر او نفع پیدا کونکے او ورکونکے دے۔

دارنګه برکت زیادت او نمو ته وائی۔ یعنی الله په څیزونو کښې زیاتوالے او ترقی اچوی، چه لږ شے وی هغے کښې ډیر خیر واچوی، لږ وخت وی په هغے کښې ډیر کار وکړے شی۔

لړ عمر ډیر عمل، لړ مال ډیر برکت. او د باب تفاعل صیغه د مبالغې دپاره ده.

او دا دلیل دے چه په خیزونو کښې خیرونه اچونکے صرف الله دے، او ددے کلمے استعمال د الله نه سوئ بل چا دپاره شرعاً منع دے، نو پدے کښې رد دے په هغه چا چه مالك د نفع او د ضرر او خیر ورکونکے او اولاد او مالونو کښې برکت اچونکے د الله تعالیٰ نه سوئ انبیاء علیهم السلام، اولیاء وغیره گنړی نو دا خلق مشرکان دی.

**الَّذِیْ بِیَدِهِ الْمُلْكُ**: د هغهٔ د لوئی والی یو دلیل دادے چه هم هغه د ښکته او پورته عالَم شهنشاه دے، هم هغه دا ټول پیدا کړی، او هم هغه یواځے په دوئ کښې واك چلوی.

**بِیَدِهٖ**: ید د الله تعالیٰ حقیقی صفت دے چه په غیر د تمثیل او تشبیه نه او بغیر د تاویل نه په قدرت او نعمت سره به منلے شی. او څوك چه: لله ید حقیقی نهٔ منی او ددے تاویل په قدرت، یا قبضه یا نعمت سره کوی، نو دا په حقیقت کښې د الله ددے ښکلے صفت نه انکار کوی، او دا د سلفو صالحینو د عقیدے خلاف عقیده ده.

**وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ**: کله یو تن بادشاه وی لیکن قادر نهٔ وی، ځان سره شریکان نیسی، وُزراء او خادمان، دے دپاره چه ملك په شریکه وچلوی، یواځے ئے نشی چلولے نو الله فرمائی چه زما په لاس کښې داسے بادشاهی ده چه زما وزراء او مشیرانو او اسنبلیانو ته ضرورت نشته. او دا دویم دلیل دے.

**الَّذِیْ خَلَقَ الْمَوْتَ**: د هغهٔ د لوئے والی دریم دلیل دادے چه هغهٔ مرگ او ژوند پیدا کړے، هم هغه چه چاله غواړی ژوند ورکوی او چه چاله غواړی وژنی ئے، هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك په دے قادر نهٔ دے. هغهٔ انسانانو له ژوند ورکړے او دنیا ته ئے رالیږلی دی، او دوئ له ئے خبر ورکړے چه دوئ به مړهٔ کیږی، او ددے فانی کور نه به کوچ کوی، او د آخرت کور به آبادوی. نو څوك چه په دے فناء کیدونکی کور کښې د الله امرونه په ځائے کوی، او د منع کړو څیزونو نه ځان ساتی، هغهٔ له به الله تعالیٰ په دواړو جهانو کښې ښه بدله ورکوی، او څوك چه دلته د خپلو خواهشاتو غلام جوړیدو سره ژوندے پاتے کیږی او د الله امرونه شاته گذاروی، هغهٔ ته به بدترینه بدله ملاویږی.

**الْمَوْتَ**: موت ئے مقدم کړو ځکه چه دا قهر ته زیات نزدے دے، یعنی پدے کښې په انسان باندے زور زیات دے. بله دا چه مرگ (یعنی نشتوالے) د انسان مقدم دے.

بله دا چه موت په دنیا کښې مراد دے، او حیاة په آخرت کښې. ظاهر دا ده چه دواړه په

دنیا کښې مراد دی ځکه چه په آخرت کښې په ژوند باندې امتحان نشته. بلکه مرګ او ژوند ئې په دنیا کښې پیدا کړیدی چه اې انسانه! ته به مرې، لږه زندګی مې درکړیده پدې کښې ځانله د آخرت دپاره ګټه وکړه.

او د خلق الموت نه معلومه شوه چه مرګ وجودی شې دې. ځکه چه خلق ورپورې متعلق شویدې، پدې وجه د قیامت په ورځ به مرګ د ګډ په شکل راوستې شی، او د جنتیانو او د جهنمیانو ترمینځ به ذبح کړې شی.

او حیاة به د آس په شکل راځی، دنیا به د اِمْرَاَةٌ شَوْهَاء (بدرنګې ښځې) په شان، او قرآن به (كَالرَّجُلِ الشَّاحِبِ) لکه د خوار سړی په شان، او عمل صالح به (كَالرَّجُلِ حَسَنِ الْوَجْهِ) لکه د ښائسته مخی سړی په شان، او سورة البقره او آل عمران به د مارغانو د سیل په شان راځی.

لِيَبْلُوَكُمْ: داسې په سورة هود (۷) آیت او سورة کهف (۷) آیت کښې ذکر شویدی.

**سوال** دا دې چه الله خو په هر شی پوهه دې او ابتلاء او امتحان خو ددې دپاره اخستې کیږی چه د اَفرادو فرق معلوم شی؟

(۱) **جواب** دا دې چه ابتلاء د بلاء نه دې، حقیقت معلومولو ته وئیلې شی، نو معنیٰ دا ده چه ویه ښائی تاسو ته حقیقت د عملونو ستاسو لکه چه په سورة یونس (۳۰) آیت ذکر دی. ﴿هُنَالِكَ تَبْلُوْا كُلُّ نَفْسٍ مَا اَسْلَفَتْ﴾ او په دنیا کښې هر انسان ګمان کوی چه زما عمل ښائسته دې، لیکن دا حقیقت به د آخرت په ورځ ښکاره شی.

(۲) **جواب** عامو مفسرینو ذکر کړیدې چه د ابتلاء نه مراد داسې معامله ده چه مشابه ده د ابتلاء سره، او په دنیا کښې ژوند او ویره د مرګ ئې پدې وجه پیدا کړه چه ستاسو سره معامله د امتحان وکړی چه تاسو کښې کوم یو ښائسته عمل کوئ.

اَحْسَنُ عَمَلاً: دا د الله د معرفت نتیجه ده چه څوك خپل رب لره وپیژنی نو هغه دپاره به ضرور ښائسته عمل کوی، ښکلې سجدې به ورته لګوی، مال به د هغهٔ دپاره لګوی، مجاهده به د هغهٔ دپاره کوی، د هغهٔ کتاب به په شوق سره لولی.

فضیل بن عیاض رحمه الله فرمائی: اَحْسَنُ عَمَلًا نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ مونږ ته داسې نهٔ دی وئیلی (اَكْثَرُ عَمَلًا) چه یواځې ډیر عملونه وکړئ، بلکه د ښائسته عمل کولو مطالبه ئې کړیده ځکه چه دا د رب د عظمت تقاضا ده، نو د الله د اُلوهیت تقاضا دا

ده چه ژمونږ د بدن نه همیشه ډیاره ښائسته عمل راووځي.
د ښائسته عمل تشريح په سورة هود (۷) آیت کښې ذکر شویده، چه اخلاص پکښې وی او د پیغمبر په طریقه وی. که یو عمل کښې اخلاص نهٔ وی بلکه شرك جلی یا خفی (ریاء) وی، یا مخالفت د سنت وی په طریقه د بدعت او په رواج سره وی یا فسق او فجور سره وی نو هغه عمل به برباد وی.
وَهُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفُوْرُ : پدے دوه صفتونو کښې تخویف او بشارت دواړه دی، که انسان احسن عمل والا وی، او د هغهٔ نه څه نا څه ګناهونه کیږی او الله ته رجوع کوی، د ګناهونو نه توبه وباسی نو الله تعالیٰ به ورته بخنه کوی، او که ناکاره عمل والا وی نو الله تعالیٰ ډیر زیات زوره ور دے، ددهٔ په سزا ورکولو قادر دے او هڅوك منع کونکے نشته.

| الَّذِىْ خَلَقَ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا مَّا تَرٰى |
|---|
| هغه ذات دے چه پیدا کړی ئے دی اُووه آسمانونه لاندے باندے (قت په قت) نهٔ وینے |
| فِىْ خَلْقِ الرَّحْمٰنِ مِنْ تَفٰوُتٍ فَارْجِعِ الْبَصَرَ هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ ﴿۳﴾ |
| تهٔ په پیدائش د رحمٰن کښې هیڅ فرق، نو اُوګرځوه سترګے آیا تهٔ وینے څه چاودونه. |
| ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ كَرَّتَيْنِ يَنْقَلِبْ إِلَيْكَ الْبَصَرُ خَاسِئًا وَّهُوَ حَسِيْرٌ ﴿۴﴾ |
| بیا اُوګرځوه سترګے دوه ځله (بار بار) راواپس به شی تا ته نظر ذلیله او هغه به ستړے وی. |

**تفسیر** : دا بل دلیل دے چه پدے کښې الله تعالیٰ جَمَالُ الْخَلَائِق (د مخلوقاتو ښائست) بیانوی چه دا د رب العالمین په جمال باندے دلیل دے. د آسمان څلور حالات ئے ذکر کړیدی : ۱- اُوه دی، ۲- طباق دی. ۳- تفاوت پکښې نشته. ۴- فطور پکښې نشته.
سَبْعَ سَمٰوٰتٍ: اُوه آسمانونه ئے پیدا کړل د خپل حکمة د تقاضے مطابق.
بعض وائی : اول آسمان ئے د فلانی څیز نه او دویم د فلانی نه او دریم د فلانی نه پیدا کړے، نو دے باندے هیڅ دلیل د کتاب او سنت مطهره نه نشته. (فتح البیان)
طِبَاقًا : طبقے طبقے،/ لاندے باندے،/ یعنی په مینځ کښې ئے کولاو والے ورکړو، او په هغے کښې ئے مخلوق اُوه وسول لکه دے ته سبع طرائق هم وائی. یعنی اُوه لارے.
هر آسمان د بل ډیاره د قُبے په شکل دے، او د دنیا آسمان په زمکه باندے د قبے په شکل

دے۔ بناء پدے باندے طباق جمعه د طبق یا طبقة ده.
یا طباق مصدر د باب مفاعلے دے۔ یعنی یو بل سره موافق۔ او حمل مبالغةً دے۔ ائ ذَاتُ طِبَاقٍ۔ موافقت والا۔
علامه بقاعیؒ وائی : اُوه آسمانو نه د یو بل سره داسے مطابق (موافق) دی چه د پورته آسمان هر جزء مطابق دے د هر جزء د لاندینی آسمان سره او هیڅ جزء د پورتنی د لاندینی نه بهر نهٔ دے۔ (فتح البیان)
مَا تَرٰی : اُوس د آسمانونو جمال بیانوی۔ ❁ یعنی تهٔ د الله پیدائش کښ آسمانونو لره هیڅ عیب او نقصان نهٔ وینے۔
❁ یا هر پیدائش د الله مراد دے۔ نو تولو مخلوقاتو کښ هیڅ نقصان نشته۔
مِنْ تَفَاوُتٍ: تفاوت دلته عیب او نقصان او چودونو او کوږ والی او تناقض ته وائی۔ او مِنْ د تاکید د نفی دپاره دے۔ یعنی آسمانونه نیغ برابر جوړ دی چه د خپل خالق په وجود باندے دلالت کوی۔
او د تفاوت مطلب دا نهٔ دے چه د الله تعالیٰ په مخلوق کښ فرق نشته، تول یو شان دی، بلکه مطلب دا دے چه هر مخلوق ته چه کوم شکل او صورت او صفت ورکړے شویدے نو پدے اعتبار سره په هغے کښ هیڅ عیب نشته۔ لکه د انسان شکل وګوره که دا څوك بدلوی نو بدرنګیږی به، غر ته چه الله کوم شکل ورکړیدے که دا څوك بدلوی نو بدرنګیږی به، لکه د غر نه څوك ډیره کیٔ جوړوی، یا ترے د دیوال شکل جوړوی نو خوند به نهٔ کوی۔ بیا به پکښ هغه فائدے نهٔ وی کوم چه پکښ الله تعالیٰ اُوس ایخودی دی۔
دغه شان د آسمان رنګ واخله، دغه شان مار لړم، غوا، میخه، خر، سپے واخله۔
فَارْجِعِ الْبَصَرَ : پدے کښ الله تعالیٰ د آسمان عظمت بیانوی ځکه چه دا د الله تعالیٰ په عظمت باندے واضح دلیل دے۔
یعنی اے مخاطبه ! خپل نظر دِے تاؤ راتاؤ کړه او آسمان ته وګوره چه آیا تا ته پدے کښ کوم چاودونه او کوم مات ځای ښکاری۔
فُطُوْرٍ : چودونه او کمزورے کیدل، او څیری کیدل۔ فطور جمع د فَطْرٌ ده، (قاموس محیط)

مجاهدؒ او ضحاكؒ وائي : اَلصُّدُوْعُ وَالشُّقُوْقُ۔ چاودونه او ځيرې كيدل۔
قتادهؒ وائي : (مِنْ خَلَلٍ) څه نقصان۔ ابن عباس رضي الله عنه وائي : (اَلْوَهْيُ) كمزورے كيدل۔
د مخلوق د ډير كمال او قوت د وجه نه د بعض فلاسفه ؤ دا عقيده جوړه شوه چه عالم به هميشه وي، او هيڅكله به نۀ ماتيږي، نو د قيامت نه منكر شول۔ دا د كفر عقيده ده ځكه چه اُوس پكښې چاودونه او نقصان او خلل نشته ليكن الله چه كله اراده وكړه چه هغه ئې پيدا كونكے دے نو هغه به ئې مات رامات كړي۔
ثُمَّ ارْجِعِ الْبَصَرَ: دا د ما قبل تاكيد دے۔
كَرَّتَيْنِ: دا تثنيه د كثرت دپاره ده، او داسے مطلب نۀ دے چه دوه ځله ئې واړه وه، يعنى كه هر څو مره ځله بيا بيا نظر وكړے نو فطور (چودونه) نشے معلومولے۔
بعض وائي : چه دوباره ئې په نظر كولو باندے حكم وكړو ځكه چه كله نا كله انسان په يو ځل كتلو سره يو شے پوره په نظر رالاندے نكړي او د هغے عيب ئې په نظر رانشي نو الله ورته فرمائي : چه بيا بيا وګوره خو عيب نشے پيدا كولے۔
بعض وائي : اول ځل نظر ددے دپاره دے چه د آسمانونو حسن (ښائست) او د هغے استواء (برابر والے) وينې، او دويم نظر ددے دپاره دے چه د هغے ستورى په سير او انتهاء كښې وينې۔ نو په هيڅ يو شي كښې به ورته عيب ښكاره نشي۔
خَاسِئًا : د خَسْءٌ نه دے، سپى شړل او ګورے كولو ته وئيلے شي چه مقصد ئې حاصل نشي۔ يعنى ستا نظر به د سپي په شان واپس شي خو مقصد ته به ونۀ رسى چه هغه عيب معلومول دي۔ او خاسِءٌ ذليل او عاجز ته هم وائي۔
وَهُوَ حَسِيْرٌ: يعنى نظر به ډے ستړے ستومانه وي۔
مقصد د آيت دا دے چه د الله مخلوق ډير كمال والا دے، نو دغه ذات پيدا كونكے به څومره كمال والا وي، تۀ خپل كمال ته وګوره، ستا نفس الله تعالىٰ څومره ښكلے پيدا كړيدے نو رب به ډے څومره ښكلے وي، ستا خبرے څومره خوږے دي، نو ستا د رب خبرے به څومره خوږے وي، ستا رنګ څومره ښائسته دے، نو د الله مخ به څومره ښائسته وي، مخلوق كښې چه كوم كمال او جمال دے نو په خالق كښې به ئې خامخا په اعلىٰ درجه سره موجود وي۔
په مخلوق كښې چه كوم كمال او جمال وي، او د الله سره هغه لائق وي نو په الله كښې به

په اعـلـیٰ درجه هغه کمال او جمال وی لکه خبرے د انسان کمال دے، نو په الله کښ به په طریق اولیٰ کمال وی. انسان ډیر غصے والا وی، او د الله تعالیٰ ډیر نهٔ وی. انسان ډیر رحمت حقیقی لری او الله تعالیٰ ډیر ئے نهٔ لری، داسے نشی کیدے.

| وَلَقَدْ زَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ وَجَعَلْنَاهَا |
|---|
| او یقیناً ښائسته کړیدے مونږ آسمان نزدے په ډیوو (چراغونو) سره او ګرځولی دی |
| رُجُوْمًا لِّلشَّيَاطِيْنِ وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ ﴿٥﴾ |
| مونږ هغه ویشتونکی د شیطانانو او تیار کړیدے مونږ دوی دپاره عذاب د اُور بل کړے شوی. |

**تفسیر** : دا د الله تعالیٰ د تعارف بل عقلی دلیل دے چه په سماوی برکاتو باندے مشتمل دے. او هغه دا دی چه الله آسمان په ستورو سره ښائسته کړیدے. او پدے سره شیطانان ویشتلے کیږی دے دپاره چه وحی د تلبیس د کاهنانو نه محفوظ شی، نو دا دینی او ظاهری او باطنی برکات دی. مخکښ ئے ووئیل چه آسمان کښ هیڅ عیب نشته نو اُوس وائی چه پدے کښ کمالات دی.

بِمَصَابِيْحَ : جمع د مِصْبَاحْ ده، چراغ (ډیوے) ته وائی. ددے ستورو نه رنړا راخیژی، دے وجے نه دیته [مَصَابِيْح] (ډیوے) وئیلے کیږی، یعنی لکه څنګه چه د چراغ نه رنړا ملاویږی، دغه شان دا ستوری هم رنړا ورکوی.

شوکانیؒ لیکی چه بعضِ ستوری د دنیا د آسمان نه پورته آسمان کښ وی، لیکن هغه داسے په نظر راځی لکه چه هغه د دنیا په آسمان کښ وی، ځکه چه اجرامِ سماویه (آسمانی جسمونه) دومره صاف او شفاف دی چه په پورتنو آسمانونو کښ د موجود ستورو رنړا د هغے نه لاندے پورے را اوځی.

وَجَعَلْنَاهَا رُجُوماً: او د بعضِ ستورو په ذریعه هغه شیطانان ویشتلے کیږی چه هغوئ په پټه باندے د ملائکو د کلام آوریدو په کوشش د دنیا آسمان ته نزدے کیدل غواړی.

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه شیطانان د هغه ستورو په ذریعه نهٔ ویشتلے کیږی کوم چه

په آسمانونو کښې ثابت دي، بلکه د هغې نه شغلې راخېژي چه هغه شیطانانو پسې ورځي۔ (لکه ﴿ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴾ (صافات: ۱۰) کښې ورته اشاره ده)

نو دا منافات ددې سره نۀ لري چه دا زینت هم دې او شیطانانو پسې ویشتلې کیږي هم، ځکه چه کله ویشتلې شي نو ختم شي نو بیائې زینت والې ختم شو۔ لکه دا خبره ابوعلي الفارسيؒ یو سائل ته په جواب کښې کړې وه چه ددې نه یوه حصه راجدا کولې شي او نور ستورې په خپل مدار کښې باقي وي۔ (قرطبیؒ)

قتادۀ وائي چه الله تعالیٰ د ستورو د پیدائش درې فائدې ښودلې دي: دا آسمانونو ته ډول وربخښي، ددې په ذریعه شیطانان ویشتلې کیږي، او هغه په اوچه او سمندر کښې د سفر کونکو لپاره د لارې د ښو کار ورکوي۔ نو چا چه ددې نه نور مطلبونه واخستل (دا ئې معبود جوړ کړل) نو دۀ تکلف وکړو په هغه کار کښې چه علم ئې ورسره نشته، او زیاتې او ظلم ئې وکړو۔ انتهیٰ۔ (ابن کثیرؒ)

الله تعالیٰ د سورتِ صافات د (٦) آیت نه تر (۱۰) آیته پورې فرمایلي دي: ﴿ إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَانٍ مَّارِدٍ لَّا يَسَّمَّعُونَ إِلَى الْمَلَإِ الْأَعْلَىٰ وَيُقْذَفُونَ مِن كُلِّ جَانِبٍ دُحُورًا وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ إِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴾ (بیشکه مونږ د دنیا آسمان د ستورو په ذریعه ښائسته کړې دې، او دا مو د هر شریر شیطان نه (د دنیا د آسمان) د حفاظت ذریعه جوړه کړې ده، دا شیطانان د عالَم بالا خبرو آوریدو ته غوږ هم نشي کیښودلې، او د هر طرف نه دوئ د (اُور په شغلو سره) ویشتلې کیږي، لرې شړلو دپاره، او (د قیامت په ورځ به) دوئ له همیشه عذاب وي مګر هغه شیطان چه هغه کوم خبر اوتښتوي نو یوه بلیدونکې شغله هغۀ پسې روستو لګیږي)۔

## فوائد او علوم:

۱- پدې کښې اشاره دۀ چه بره عالَم داسې دې چه په هغې کښې شري مخلوق نشته، او نۀ شري مخلوق د هغې خواته ورتللې شي۔

۲- دویم دا چه د الله تعالیٰ نور مخلوق دې چه هغې ته شیطانان وائي هغوي خپل رب لره نۀ پیژني، په دغه لوی الله باندې کفر کوي، او د هغۀ نه بغاوت کوي، پکار خو دا وه چه د خپل رب طاعت ئې کولې۔ او په انسانانو کښې دوه قسمه دي، منونکي او نۀ

منونکی۔
۳- پدے کښې بله اشاره دا ده چه رسول الله ﷺ حق نبی دے، وحی ورته ملائکو راوړیده چه هلته شیطانان نشی ختلے۔
٤- بل د کافرانو دپاره مقتدیٰ بیانوی چه کافرانو پدے لوی الله کفر وکړو نو د شیطان ملګری شول، هغه شیطانان چه الله تعالیٰ ئے بره نهٔ پریدی، کمزوری، د شر نه ډك مخلوق دے۔
څکه اُوس روستو (وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا) سره خبره د معرفت نه، نقمت (سزا ورکولو) ته راکاږی۔
رُجُوماً: جمع د رَجْم ده او رجم مصدر دے مضاف ئے محذوف دے، اَیْ ذَاتُ رُجُوْمٍ یعنی د ویشتلو والا۔ او مصدر ئے جمع راوړے ده اشاره ده چه ویشتل په ډیر قسمه دی۔ یا مصدر په معنیٰ د مفعول دے اَیْ مَرْجُوْمًا بِهَا۔ یعنی چه ویشتل کیدے شی پدے سره۔
لِّلشَّيَاطِيْنِ: ددے نه مراد هغه شیطانان دی د حناتو نه چه کاهنانو ته د ملائکو خبرے راوړی او دروغ ورسره یو ځای کوی لکه په حدیث کښې راغلی دی۔
وَأَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابَ السَّعِيْرِ: یعنی په دنیا کښې خو په شغلو ویشتلے کیږی او په آخرت کښې د دوی دپاره لمبه د اُور او سخت سوزونکے اُور تیار شویدے۔

| وَلِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ |
| --- |
| او دپاره د هغه کسانو چه کفر ئے کړیدے په رب خپل عذاب د جهنم دے او بد دے |
| الْمَصِيْرُ ﴿٦﴾ إِذَا أُلْقُوْا فِيْهَا سَمِعُوْا لَهَا |
| ځائے د ورګرځیدو۔ کله چه ګوزار کړے شی دوی په هغے کښې وابه وری هغے لره |
| شَهِيْقًا وَّهِيَ تَفُوْرُ ﴿٧﴾ تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ كُلَّمَا |
| هینړار او هغه به جوش وهی۔ نزدے ده چه اُچوی د وجے د غصے نه، هر کله چه |
| أُلْقِيَ فِيْهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا |
| وغورزولے شی پدے کښې یوه ډله تپوس به کوی د دوی نه خزانچیان د جهنم |

| |
|---|
| اَلَمۡ یَاۡتِکُمۡ نَذِیۡرٌ ﴿۸﴾ قَالُوۡا بَلٰی قَدۡ جَآءَ نَا |
| آیا نهٔ وو راغلے تاسو ته یره درکونکے. وُبه وائی دوی، آؤ ولے نهٔ، یقیناً راغلے وو مونږ |
| نَذِیۡرٌ فَکَذَّبۡنَا وَقُلۡنَا مَا نَزَّلَ |
| ته یره ورکونکے نو دروغژن اُوګڼړلو مونږ (هغه) او مونږ ووئیل نهٔ دے نازل کړے |
| اللّٰهُ مِنۡ شَیۡءٍ اِنۡ اَنۡتُمۡ اِلَّا فِیۡ ضَلٰلٍ کَبِیۡرٍ ﴿۹﴾ |
| الله تعالیٰ هیڅ شے، نهٔ یئ تاسو مګر په ګمراهئ لویه کښې. |

**تفسیر** : اُوس وائي چه کوم کافران چه په دنیا کښې د دوئ پیروی کوی، هغوئ لپاره هم الله د جهنم عذاب تیار کړے، او جهنم ډیر زیات خرابه استوګنه ده چه په دے کښې به جهنمیان انتهائی درجه ذلت او رسوایئ سره مخامخ شي.

**اِذَا اُلْقُوا**: جهنمیان (چه احسن عمل والا نهٔ دی) چه کله جهنم کښې اُوغورزولے شي، نو د هغے به ډیر زیات خطرناك آواز واوری د خرهٔ د آواز په شان، او د هغے اُور به د جهنمیانو جسمونو سره داسے جوشیږی لکه په کتوئ کښې چه غوختیدونکے اُوبهٔ خوټ کیږی.

**شَهِیْقًا**: دا اَقۡبَحُ صَوۡتِ الۡحِمَارِ ته وئیلے شي. یعنی دا د خر ډیر ناکاره آواز دے. او ددے نه د اُور والو رمباړے مراد نهٔ دی، وجه دا ده چه دوی خو لا اُور ته نهٔ دی غورزیدلی. او جهنم ته الله تعالیٰ احساس ورکړیدے چه رمباړے هم وهی او غصه هم کوی. او دا رمباړے به ډیرے هیبتناکے وی، یا د جهنم دا رمباړے به د هغوی د طلب کولو دپاره وی.

**وَهِیَ تَفُوۡرُ**: دا د فَارَتِ الۡقِدۡرُ نه دے یعنی داسے به خوټ کیږی لکه د کتوئ په شان. یا د سخت ګرموالی د وجه نه یا د سختے غصے د وجه نه.

**تَکَادُ تَمَیَّزُ**: اَیۡ تَتَقَطَّعُ. نزدے ده چه وچوی. یعنی د جهنم حالت به د کافرانو خِلاف د سخت غیظ اوغضب نه داسے وی لکه چه دا ماتیدو را ماتیدو سره ټکړے ټکړے کیږی نو بیا د هغه کافرانو به څهٔ حال وی چه هغوئ ددے غصه ناك جهنم په ګرفت کښې وی.

او دا د جهنم غیرت دے چه د الله تعالیٰ دپاره ئے کوی چه ولے د الله بندګان دی او د هغه نه ئے سرکشی کړیده او د هغه بندګی ئے پریخے ده.

كُلَّمَا اُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ : هر کله چه یوه ډله په جهنم کښې واچولې شي نو د جهنم داروغه ګان به د دوئ نه د زجر او رټنې په توګه تپوس وکړي :

آیا تاسو ته څوك ویرونکي نهٔ وو راغلي چه نن تاسو په دې جهنم کښې اوغورزولې شوئ ؟ نو هغوئ به جواب ورکړي، هاؤ، مونږ ته ویرونکي خامخا راغلي وو، لیکن مونږ د الله رسولان دروغژن وګنړل، او د هغوئ دعوت مو رد کړو او ومو وئیل چه الله د خپل اړخه هیڅ یو شے د انسانانو د هدایت لپاره نهٔ دے نازل کړے، او تاسو په ډیره لویه ګمراهئ کښې اخته یئ.

مفسرین لیکي چه دوئ د خپلې زمانې نبي دروغژن وګنړلو او مخکښني تمام انبیاء علیهم السلام او کتابونه ئې هم دروغژن وګنړل، او په دې باندې ئې اکتفاء ونهٔ کړه، بلکه ټول رسولان ئې په لویه ګمراهئ باندې تورن کړل.

نَذِيرٌ : یره ورکونکي نه مراد رسولان علیهم السلام او د هغوی نائبان دی، او دا دلیل دے چه الله تعالیٰ بغیر د رسول رالیږلو او د نائب د هغهٔ نه عذاب نهٔ ورکوی. او دلیل دے چه کافران بنه پوهه شوی وو چه جنت او جهنم حق دے لیکن بیا ئې هم ایمان نهٔ راوړو.

وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ : دا په تکذیب کښې ډیره مبالغه ده. او دا د ډیر ضد او عناد د وجه نه کیږي چه د حقائقو نه انکار وکړي. لکه داسې خبره د کافرانو په سورة انعام (۹۱) او سورة یس (۱۵) آیت کښې ذکر شویده.

إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ : دا هم قول د کافرانو دے د زیات تکذیب دپاره یعنی مونږ رسولانو ته وئیلي وو چه تاسو ګمراه یئ.

یا دا قول د ملائکو دے جهنم والو ته چه تاسو چه د انبیاؤ او کتابونو نه انکار کولو نو تاسو خو ډیر لوی ګمراهان وئ.

| وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ |
| --- |
| او وبه وائي دوی کچرته مونږ آوریدلے (خبرې د قرآن او حدیث) یا مونږ سوچ کولے |
| مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴿۱۰﴾ فَاعْتَرَفُوا بِذَنبِهِمْ فَسُحْقًا |
| نهٔ به وې مونږ په اُور والو کښې. نو دوی اقرار اُوکړو په ګناه خپله پس هلاکت دے |

| لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ ﴿١١﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُم |
| --- |
| وی دپاره د اُور والو۔ یقیناً هغه کسان چه یریږی د رب خپل نه |
| بِالْغَيْبِ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿١٢﴾ |
| په حال د نهٔ لیدو کښ، دوی لره بخنه ده او اجر لوئی دے۔ |

**تفسیر**: اُوس د هغوی خپیمانتیا او افسوس بېکاره کوی په داسے وخت کښ چه فائده به نهٔ ورکوی۔ جهنمیان به اقرار اوکړی چه مونږ د رُشد او هدایت تولے لارے خپله په خپل ځان باندے بندے کړے وے، نهٔ مونږ د الله نازل کړی آیتونه په غور سره واوریدل، او نهٔ مو خپل عقل په کار واچولو او د هغے د پیژندلو کوشش مو وکړو، او په دنیا کښ داسے بےغمه ګرځیدو، او ګناهونه به مو کول لکه چه مونږ له مرګ نهٔ راځیۀ او مونږ به د الله مخے ته حاضریږو نهٔ، ارمان چه مونږ داسے نهٔ وے کړی۔

لیکن ددے اقرار او ارمان به هغوئ ته هیڅ فائده اونهٔ رسی، او اعلان به وکړے شی چه جهنمیان د الله د رحمت نه لرے کړے شو، اُوس دوئ لپاره هیڅ خیر نشته۔

لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ: پدے کښ د اُور نه د بچ کیدو دوه سببونه ذکر دی:

(۱) سَمَاعُ كِتَابِ اللهِ وَسُنَّةِ رَسُولِهِ۔ قرآن او حدیث آوریدل۔

(۲) اَلتَّعَقُّلُ فِيهِمَا ۔ بیا پدے خبرو کښ سوچ او فکر کول چه دا خو حقے دی، عقل او آوریدونکی خلق الله تعالیٰ اُور ته نهٔ بوځی، ﴿وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ﴾ عقلمند سړے الله پیژنی، پیغمبران او کتابونه پیژنی او په آخرت باندے ئے نظر لګی۔

نَسْمَعُ: اَیْ كَلَامَ الرُّسُلِ وَكِتَابَ اللهِ ۔ که مونږ آوریدلے خبرے د رسولانو او کتاب د الله تعالیٰ۔ (شربینیؒ وغیره)

أَوْ نَعْقِلُ: یا مونږ سوچ کولے په هغه خبرو کښ۔ (أَوْ) د شك دپاره نهٔ دے بلکه د تنویع دپاره دے، یعنی عقل او سمع د یو بل سره لازم ملزوم دی، ځکه چه څوك خبره آوری او عقل پکښ نهٔ وی، نو څه فائده به ورکړی، او چه عقل وی او د الله خبرے آوری نهٔ نو یو اځے په عقل کامیابی نهٔ ملاویږی۔ نو دواړه خبرے ضروری دی، نو (أَوْ) د مانعة الخلو دپاره دے، جمع ئے جائز ده۔

بیا ئے (اَو) څکه راوړیدے چه انسانان دوه قسمه دی (۱) چا باندے سماع غالبه وی، چه خبره واوری نو هله پرے پوهیږی، خپل سوچ دومره نشی کولے۔
(۲) او بعضو باندے سوچ او فکر غالب وی او آوریدل ئے کم وی۔ خپل سوچ ئے زیات وی۔
نو ددے وجه نه کوم انسانان چه په دنیا کښ د قرآن او حدیث خبرے نهٔ آوری او نهٔ دے له وخت ورکوی، او نهٔ ئے خپل سوچ شته چه په قرآن یا د الله تعالیٰ په دلائلو کښ سوچ وکړی، نهٔ په خپل پیدائش کښ او نهٔ د آسمان او د زمکے په پیدائش کښ، بلکه د خپل مقصد نه خبر نهٔ وی چه مونږ څه له پیدا یو، صرف خوراك څکاك او شهوات د هغوی مقصد وی نو دغه خلق اُور ته روان دی۔
**تنبیه** : ددے (نَسۡمَعُ) نه چه چا د تقلید د اثبات خبره کړیده چه که مونږ د مجتهدینو خبره آوریدلے، (اَوۡ نَعۡقِلُ) یا خپله مجتهدین وے، مطلب ئے دا دے چه مقلدین او مجتهدین به جنت ته ځی او څوك چه د قرآن او حدیث پسے روان دی او تقلید نهٔ کوی نو هغه تول جهنمیان دی، دا د دوی دعوت دے، نو دا د الله تعالیٰ د کتاب یقینی تحریف دے، حال دا چه پدے آیت کښ خو په تقلید باندے رد دے،
هغه دا چه دوی د خپل پلار نیکه د روند تقلید په وجه جهنم ته لاړل، او د قرآن او حدیث آوریدل او په هغے کښ سوچ کول ئے پریخی وو۔ لکه همدا ددے آیت د ظاهر نه معلومیږی۔ سوچ پکښ وکړه۔
نو دلته د نَسۡمَعُ نه مراد کلام د رسولانو او مَا اَنۡزَلَ الله آوریدل دی۔ دلیل پرے مخکښ ﴿وَقُلۡنَا مَا نَزَّلَ اللهُ﴾ او ﴿قَدۡ جَآءَنَا نَذِیۡرٌ﴾ دے۔
د آیت تفسیر به د سیاق سباق مطابق کولے شی۔
او بله دا چه په سلفو صالحینو کښ هیچا دغه استدلال او تفسیر نهٔ دے کړے، او دا قانون دے چه هر هغه تفسیر چه د سلفو صالحینو خلاف وی نو هغه تحریف وی۔
فَسُحۡقًا: دا بنیرے دی، یعنی هلاکت دِے وی جهنمیانو لره۔ الله ورته بنیرے کړیدی۔
سحق په اصل کښ سولول د یو شی دی تردے چه ختم شی، بیا استعمالیږی په معنیٰ د لرے کیدو د رحمت د الله تعالیٰ نه۔ او په معنیٰ د لعنت سره۔
اِنَّ الَّذِیۡنَ یَخۡشَوۡنَ رَبَّهُمۡ: د مخکنو خلقو برعکس هغه بندګان ذکر کوی چه هغوی

الله پیژندلے دے، د هغهٔ عظمت ئے په زړه کښې راغلے دے. بیا د هغه نه یریدلی دی، او نیك عمل ئے کړیدے۔ خشیت هغه خوف دے چه د تعظیم سره وی۔ او په خشیت کښې علم هم وی لکه ﴿ إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰؤُا ﴾ پرے دلیل دے۔

**بِالْغَيْبِ**: یعنی چه الله ئے نهٔ دے لیدلے او بیا هم د هغهٔ نه یریږی۔
یا په داسے حال کښې چه دوی غائب وی د خلقو نه۔

| |
|---|
| وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ ۖ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ |
| او (که) پټوئ تاسو خبره خپله یا ښکاره کوئ هغه، یقیناً هغه پو هه دے په هغه |
| الصُّدُورِ ﴿١٣﴾ أَلَا يَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ |
| خبرو چه په سینو کښې دی۔ آیا نهٔ پو هیږی هغه ذات چه پیدائش ئے کړیدے |
| وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿١٤﴾ هُوَ الَّذِي جَعَلَ |
| او هغه باریك څیزونه وینی، خبردار دے۔ خاص هغه داسے ذات دے چه کړځولے ئے ده |
| لَكُمُ الْأَرْضَ ذَلُولًا فَامْشُوا فِي مَنَاكِبِهَا وَكُلُوا |
| تاسو لره زمکه تابع (دپاره د فائدو) نو ګرځئ په لارو د هغے کښې او خورئ |
| مِنْ رِزْقِهِ وَإِلَيْهِ النُّشُورُ ﴿١٥﴾ |
| د رزق د الله تعالیٰ نه، او خاص هغه ته ورپاڅیدل دی۔ |

**تفسیر** : وَأَسِرُّوا قَوْلَكُمْ أَوِ اجْهَرُوا بِهِ : پدے آیت کښې الله تعالیٰ د خپل علم بیان کوی ځکه چه پدے سره خشیت په بنده کښې پیدا کیږی۔

نو فرمائی چه هغه په زړونو کښې پټے خبرے پیژنی، هیڅ یو شے د هغهٔ نه پټ نهٔ دے، دے وجے نه هغهٔ ته پټ او ښکاره یو شان دی، هغه خو هغه نیتونه او ارادے هم پیژنی کوم چه په سینو کښې پټے وی نو بیا به هغه اقوال او افعال څنګه نهٔ پیژنی چه هغه آوریدلے کیدے او لیدلے کیدے شی۔

نو هرکله چه الله په هر حال د بنده باندے خبردار او پو هه دے، نو بیا د دغه لوی ذات نه یره پکار ده۔ او هغه به د نیك عمل بدله ورکوی، د هغهٔ د علم نه د هیچا نیك عمل نهٔ

غائیبږی۔
وَاَسِرُّوا: دا جمله انشائیه ده په معنیٰ د خبریه سره، دلیل پرے (اَوْ) کلمه ده چه دا دلالت په اختیار او په برابر والی باندے کوی۔
قَوْلَكُمْ: دا عام دے د خیر قول وی او که د شر، مخاطبین مؤمنان وی او که کافران۔ نو پدے کښ تخویف او تسلی دواړه ده لکه مخکښ ورته اشاره وشوه۔
اَلَا یَعْلَمُ مَنْ خَلَقَ: پدے آیت کښ د الله تعالیٰ د معرفت بل دلیل دے۔
۱- مَنْ خَلَقَ فاعل د یَعْلَمُ دے۔ یعنی آیا هغه ذات به نهٔ پو هیږی چه هغه پیدائش کړیدے؟۔ آیا هغه به په خپل مخلوق نهٔ پو هیږی؟ ولے نهٔ۔
۲- یا یَعْلَمُ کښ ضمیر الله ته راجع دے، او مَنْ خَلَقَ ئے مفعول دے۔ یعنی آیا الله نهٔ پو هیږی په هغه مخلوق چه الله پیدا کړیدے۔
اول ترکیب غوره دے، ځکه چه په هغے سره دا خبره ثابتیږی چه الله تعالیٰ د افعالو د عبادو هم خالق دے۔ نو الله د بندګانو په ذواتو هم پو هیږی او د هغوی په افعالو هم۔ او دا ټول د الله تعالیٰ مخلوق دے۔
او دویم ترکیب سره نفی د خلق د افعالو راځی د الله تعالیٰ نه۔
اللَّطِیْفُ الْخَبِیْرُ: یعنی هغه خو د خپلو بندګانو په زړونو کښ پټے خبرے هم پیژنی، او د دویٔ د تمامو اعمالو پوره خبر لری۔
هُوَ الَّذِیْ: پدے آیت کښ دا احسان بیانوی چه الله تعالیٰ تاسو ته په زمکه کښ دوه څیزونه درکړیدی، یو ژوند او بل خوراك، خو ددے په نتیجه کښ به قیامت راځی، نو پدے که پټ دعوت دے چه الله تعالیٰ تاسو په دنیا کښ هسے چکرو له نهٔ ئے پیدا کړی او نه ئے خوراك له بلکه تاسو ئے د احسن عمل دپاره پیدا کړے یئ، نو خوراك کویٔ او په دنیا کښ ګرځئ او نیك عمل کویٔ ځکه چه الله تعالیٰ ته ستا ورتلل دی، او دا د الله تعالیٰ تعارف هم دے۔ او احسن عمل ته ترغیب هم دے۔
فرمائی چه الله تعالیٰ تاسو لره زمکه نرمه جوړه کړے، او په دے کښ ئے آسانے لارے جوړے کړی دی، دے دپاره چه انسان په آسانیٔ سره خپل ضرورتونه پوره کړی، دے وجے نه انسان په زمکه کښ بوټی کړی، کورونه جوړوی، پټی کړی، او په لاره باندے ځی، او لرے او اُوږدو علاقو، ښارونو او ملکونو ته رسیږی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمایل چه

اے خلقو! تاسو د رزق تالاش کولو او د نورو ضرورتونو پوره کولو دپاره په زمکه باندے جوړو شوو لارو باندے ځئ، او په دے کښې چه کومه روزی هغهٔ تاسو له پیدا کړے ده، هغه حاصله کړئ، او د هغے نه فائده پورته کړئ۔

ذَلُوْلًا: ذلول هغه څیز ته وئیلے شی چه د فائدے اخستو دپاره آسان او تابع وی، هیڅ انکار پکښې نهٔ وی، نو زمکه هم داسے ده، د فصلونو، او کروندو او چینو، نهرونو او کوهیانو کنستو دپاره صالحه ده، نهٔ ډیره سخته ده او نهٔ ډیره نرمه، او تینګه کړے شویده په غرونو سره۔

مَنَاكِبِهَا: دا جمع د مَنْكِب ده، اوګے او اړخ ته وائی، نو زمکه ئے د یوے اوښے سره مشابه کړه چه د هغے دپاره اوګے وی، او مراد ترینه سُبُلَهَا وَجِبَالَهَا وَاَطْرَافَهَا دی، یعنی ددے لارے او غرونه او اطراف۔

او پدے کښې اشاره ده سفر کولو ته په زمکه کښې دپاره د تجارت او د طلب د علم او دپاره د دعوت۔ او دارنګه کرزیدل دپاره د دلیل نیولو په وحدانیت د الله تعالیٰ او د هغهٔ په وجود او عظیم قدرت باندے۔ لکه د ﴿ قُلْ سِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ ﴾ په شان۔

وَكُلُوا مِنْ رِزْقِهِ: شهابٌ وئیلی دی چه ددے نه مراد د رزق د حصول کوشش کول او د هغے دپاره اسباب لټول دی، او رزق خوراك، څكاك او لباس ټولو ته شامل دے، لیکن لویه فائده خوراك دے ددے وجه نه ئے د خوراك تخصیص وکړو۔

وَاِلَيْهِ النُّشُوْرُ : پدے کښې د غفلت نه بیدارول او نیك عمل ته دعوت دے چه په رزق طلب کولو کښې د دوباره ژوند (آخرت) نه غافل نشئ۔ خاص ستاسو هغه ته واپس ورتله کیدل دی، نو هغه به تاسو سره ستاسو په عملونو حساب کوی، او تاسو نه به د هغه د نعمتونو د شکر تپوس کیږی۔ نو د الله د نعمتونو په شکر کښې مبالغه وکړه۔

| ءَاَمِنْتُمْ مَّنْ فِى السَّمَآءِ اَنْ يَّخْسِفَ بِكُمُ |
|---|
| آیا تاسو په امن یئ د هغه الله نه چه په بره طرف کښې دے چه خښ به کړی تاسو لره |
| الْاَرْضَ فَاِذَا هِىَ تَمُوْرُ ﴿١٦﴾ اَمْ اَمِنْتُمْ مَّنْ |
| په زمکه کښې نو ناڅاپه به هغه خوزیږی۔ آیا په امن یئ (نهٔ یریږئ) د هغه ذات نه |

| فِي السَّمَآءِ أَنْ يُّرْسِلَ عَلَيْكُمْ حَاصِبًا فَسَتَعْلَمُوْنَ |
|---|
| چه په بره په طرف کښې دے چه رابه ولیږی په تاسو باندے باران د کانړو نو زردے چه پته |
| كَيْفَ نَذِيْرِ ﴿١٧﴾ وَلَقَدْ كَذَّبَ |
| به اُولګی تاسو ته چه څرنګ دی یرول زما. او یقیناً دروغژن ګنړلی دے (حق لره) |
| الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيْرِ ﴿١٨﴾ |
| هغه کسانو چه مخکښې وو د دوی نه نو څرنګ وو عذاب زما (دوی لره). |

**تفسیر** : راتلونکی درے آیتونو کښې دنیوی تخویف دے کافرانو او ټولو مجرمانو ته ځوك چه د الله نه بغاوت کوی په کفر او شرك او ګناهونو سره، نو الله داسے مجرمانو ته درے دهمکیانے ورکړیدی، دوه فی الحال او یو د مخکښے زمانے.

اوله دهمکی د زمکے په عذاب سره ده، او دویمه په آسمانی عذاب سره، او دریمه هغه نمونے د عذاب چه په تیر شوی مکذبینو راغلی وو.

اَاَمِنتم: اوله دهمکی دا ده چه آیا تاسو ددے نه په امن کښې یئ او هیڅ خطره مو نشته چه الله تعالیٰ تاسو ستاسو د کفر وجه نه هلاك او برباد کړی او ټول به مو په زمکه کښې ننباسی.

مَّن فِي السَّمَاءِ : السماء نه مراد جهت د عُلو دے. یعنی هغه ذات چه په بره طرف کښې دے چه هغه عرش دے.

او قرطبیؒ ونیلی دی چه فِیْ په معنیٰ د فَوْق او عَلیٰ هم صحیح دے. لکه (فَسِيْحُوْا فِي الْاَرْضِ) معنیٰ دا نهٔ ده چه په زمکه دننه ننوزئ وګرځئ بلکه معنیٰ دا ده چه د زمکے دپاسه وګرځئ. او ﴿وَلَاُصَلِّبَنَّكُمْ فِيْ جُذُوْعِ النَّخْلِ﴾ ددے معنیٰ ده (عَلٰى جُذُوْعِ النَّخْلِ) ښکه چه په سولئ باندے خیژول په ونه کښې دننه نهٔ وی، بلکه د هغے دپاسه وی. نو دا تاویل نهٔ دے، او دا او نور ډیر نصوص دلالت کوی په علو او اُوچتوالی د الله تعالیٰ باندے، ددے نه انکار نهٔ کوی مګر ملحد یا جاهل مُعَانِد (عنادګر/ ضدی) آه.

نو پدے کښې دے تاویلونو ته هیڅ ضرورت نشته چه (مَنْ هُوَ خَالِقٌ فِي السَّمَاءِ) (هغه ځوك چه هغه پیدا کونکے دے په آسمان کښې) یا (مَنْ تَصَرُّفُهٗ فِي السَّمَاءِ) (هغه ځوك چه

د هغه تصرف په آسمان کښې دے) یا (مَنْ قُدْرَتُهٗ فِي السَّمَاءِ) (چه د هغهٔ قدرت په آسمان کښې دے) پدے کښې د الله د استواء علی العرش صفت نه انکار راځی۔

او پدے کښې اشاره ده چه هغه ډیر اُوچت ذات دے نو د خکته خلقو په عذاب باندے ضرور قدرت لری په داسے طریقه چه په زمکه کښې ئے ورننباسی په شان د قارون۔

**فَإِذَا هِيَ تَمُورُ** : اَیْ تَضْطَرِبُ وَتَتَحَرَّكُ بِكُمْ عَلٰی خِلَافِ مَا كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ السُّكُوْنِ وَالْاِطْمِئْنَانِ) یعنی ناګهانه هغه به خوزیږی او حرکت به کوی، خپل سکون او اطمینان به ئے ختم شی۔ یعنی کله چه انسانان په زمکه ننباسی نو زمکه به پرے خوزیږی خوزیږی تردے چه هغه به پرے پورته شی او دوی به ترے خکته اسفل السافلین ته راخکلے شی۔ او کله چه زمکه نهٔ خوزیږی، نو بیا پکښې ځای په ځای ولاړ وی۔ او تمور : د مَوْر نه دے چورلیدو ته هم وائی۔

او داسے خسفونه الله تعالیٰ ډیر کړیدی، لکه قارون ئے په زمکه ننویستو، او یهودیان ئے داخل کړیدی او زمونږ په زمانه کښې هم ډیر انسانان په زمکه ننویستے شویدی د الله د بغاوت د وجه نه، زمکے او کورونه او بلډنګونه زمکے راخکلی دی۔

**أَمْ أَمِنتُم**: اُوس په آسمانی عذاب سره د همکی ذکر کوی۔

**حَاصِبًا**: کانړی ویشتونکی ته وائی یعنی داسے سیلئ یا باران یا وریځه یا بل څیز چه کانړی به ولی لکه څنګه ئے چه په قوم د لوط علیه السلام باندے ویشتلی وو، لکه په سورة قمر (۳٤) آیت کښې دی یا په شان د اصحاب الفیل۔

**كَيْفَ نَذِيرِ** : دا په زیر د راء سره دے، او یاء د متکلم د وقف د وجه نه حذف شویده۔ اَیْ نَذِيرِيْ۔ یعنی زما یره ورکول دوی ته۔ دغه شان نکیر لفظ هم دے۔

**نَذِيرِ** : یا مصدر دے یعنی یره ول زما دوی لره۔ یا نذیر نه مراد یره ورکونکے دے چه هغه محمد ﷺ دے۔ یعنی تاسو به وپیژنئ ددهٔ صدق (رشتینوالے او د خپل تکذیب انجام)

او په یاء حذف کولو کښې اشاره ده چه پدے خلقو باندے به داسے عذاب راشی چه د دوی عاقبت به خراب کړی۔

مګر دا خو د الله تعالیٰ لطف او کرم او د هغهٔ رحمت او مهربانی او انتهائی حلم او بردباری ده چه سره د ګناهونو نه د بندګانو نه عذابونه لرے کوی، او دوی له د توبے ویستلو موقعه ورکوی۔ نو اے بندګانو ! ددے موقعے نه فائده واخلئ۔

وَلَقَدْ كَذَّبَ الَّذِيْنَ : دا بله دهمکی ده چه د مخکنو دهمکیانو تاکید دے، یعنی د موجوده دور کافرانو نه مخکښې هم کله چه یو کافر قوم الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول دروغژن گنړلے، نو الله تعالیٰ د هغوئ کفر او تکذیب قبول نهٔ کړو، او هغه ئے هلاك کړو. دے وجے نه اے هغه خلقو ! چه تاسو د خپل رب نافرمانی کوئ، او د کفر په لاره روان یئ تاسو د خپل کفر او سرکشئ نه بند شئ، چرته تاسو د الله عذاب په خپل گرفت کښې وانخلی. دغسے عذابونه الله ډیرو قومونو ته ورکړیدی. دا مهٔ وایئ چه مونږ باندے به عذابونه نهٔ راځی.

كَذَّبَ: یعنی د پیغمبرانو او د الله تعالیٰ او د هغهٔ د کتابونو تکذیب ئے کړیدے.

نَكِيْرِ: یعنی زما عذاب دوی لره. نو الله دغه شان تاسو سره هم کولے شی.

| أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَّيَقْبِضْنَ |
|---|
| آیا نهٔ گوری دوی مارغانو ته دپاسه د دوی نه وزرے خورونکی او بندوی هغه، |
| مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمٰنُ إِنَّهٗ بِكُلِّ شَيْءٍ |
| نهٔ دی ایسار کړی دے لره مگر رحمٰن ذات، یقیناً هغه په هر شی باندے |
| بَصِيْرٌ ﴿۱۹﴾ أَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ |
| لیدونکے دے. بلکه څوك دے هغه چه هغه لښکر (فوج) شی تاسو لره |
| يَنْصُرُكُمْ مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ إِنِ الْكَافِرُوْنَ إِلَّا فِيْ غُرُوْرٍ ﴿۲۰﴾ |
| چه مدد اُوکړی ستاسو سوئ د رحمٰن ذات نه، نهٔ دی کافران مگر په دهوکه کښې. |
| أَمَّنْ هٰذَا الَّذِيْ يَرْزُقُكُمْ إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهٗ |
| بلکه څوك دے هغه ذات چه رزق درکړی تاسو ته که چرے بند کړی هغه رزق خپل |
| بَلْ لَّجُّوْا فِيْ عُتُوٍّ وَّنُفُوْرٍ ﴿۲۱﴾ |
| بلکه دوی ورننوتی دی په سرکشئ (په تجاوز) او په نفرت کښې. |

**تفسیر** : دا د قرآن کریم عادت دے چه کله عذاب ذکر کړی نو بیا دلیل راوړی پدے

کښې اشاره وی (اِظْهَارُ قُدْرَةِ اللّٰهِ) ته، یعنی الله قادر دے په عذاب ستاسو۔
نو پدے آیتونو کښې د الله تعارف هم دے، او اظهار د قدرت د الله تعالیٰ دے په عذاب باندے، او د الله مهربانی هم پکښې ذکر ده، او په هغه مشرکانو باندے رد هم ذکر شویدے چه هغوی به د الله د ((رحمٰن)) صفت نه انکار کولو، په هغویٔ باندے رد شوے دے چه دا مرغیٔ چه د دویٔ په سرونو باندے په فضاء کښې خپلې وزرے خورے کړے ګرځي، او کله هغه راغونډوی هم، په دواړو حالتونو کښې دویٔ په فضاء کښې څوك بند ساتي؟
یقیناً هغه ((رحمٰن)) ذات دے، چه د هغهٔ رحمت هر یو شے پټ کړے دے تردے چه هغه مرغیٔ چه لوی جسمونه لری چه هغه په فضاء کښې لامبو وهی هغویٔ هم د راغورزیدو او ټکړے ټکړے کیدو نه د هغهٔ رحمت بچ ساتلی دی۔
اَوَلَمْ یَرَوْا : یعنی دوی له مارغانو ته کتل پکار دی چه پدے سره د الله تعالیٰ عظیم قدرت او د هغهٔ مهربانی وپیژنی۔
الطَّیْرِ : ددے نه مراد جنس دے چه ګڼرو مارغانو ته شامل دے ددے وجه نه ئے روستو ورته ضمیر د جمع راجع کړیدے۔
صٰٓفّٰتٍ وَّیَقْبِضْنَ : دا دوه حالتونه ذکر دی، یعنی کله وزرے خورونکی وی او کله ئے رابنده وی۔ او صٰٓفّٰتٍ ئے اسم راوړو او یَقْبِضْنَ ئے فعل راوړو او عطف د فعل په اسم باندے په فصیح کلام کښې جائز دے کله چه په فعل کښې معنیٰ د اسم مراد وی، او اول ئے اسم راوړو ځکه چه د مارغانو په هوا کښې د وزرو خورول ډیر وخت وی، او بندول کله کله وی۔
او ددے مارغانو واړه واړه زړونه دی لیکن الله تعالیٰ په هوا کښې رابند کړیدی۔
مَا یُمْسِکُهُنَّ اِلَّا الرَّحْمٰنُ : یعنی صرف او صرف رحمن ذات دے چه دا ئے په هوا کښې رابند کړی، راتینګ کړیدی، هیڅ تیل او مشینری نشته چه هغے سره رابند شوی وی۔ د الله په قدرت باندے رابند دی۔ او پدے حصر کښې ښکاره دلیل دے چه هیڅوك نبی، ولی، ملائك، جنات وغیره ددے وس او اختیار نهٔ لری۔
داسے آیت په سورت نحل (۷۹) آیت کښې هم ذکر دے لیکن هلته صرف تذکیر د نعمت مقصد وو او رد وو په شرك باندے پدے وجه ئے هلته ﴿مَا یُمْسِکُهُنَّ اِلَّا اللّٰهُ﴾ وئیلے وو۔ او پدے سورت کښې تفصیلی حالات د مارغانو ذکر کول مقصد دے ځکه چه داتول

د الله تعالیٰ د طرفنه برکات دي، او د هغهٔ د تعارف دلیلونه دي.

اَمَّنْ هٰذَا الَّذِیْ: مشرکان چه شرك کوي او د قبرونو او باباګانو نه غوښتنې کوي، او د الله نه مخ اړوي نـو د دوي دوه امیـدونه وي، یو دا چه دا باباګان به دوي سره د مصیبت په وخت کښې مدد او نصرت کوي، او دویم د روزئ امید ئې وي چه دوي به د دوي په رزق کښې فراخي راولي.

نو الله دلتـه دواړه خبرې رد کوي چـه دا دواړه د الله تعالیٰ نه سوئ د هیچا په اختیار او قدرت کښې نشته. نو بیا بنده څنګه د هغه الله نه اعراض وکړي. هر ځای کښې بنده مدد تـه محتاج دې، کـه بنده پاڅیږي، کـه اُوده کیږي، په خوراك او څکاك او ګرزیدو او خبرو کښې د الله تـعـالیٰ مدد ته محتاج دې، نو دا مددونه مونږ سره بل څوك کوي؟ نشته، نو پکار ده چه د دغـه الله سره ډیره مینه وشي، که یو انسان تا سره په یوه موقعه کښې مدد وکړو نو ډیر محبت به ډې ورسره پیدا شي، او د هغه احسان به هیڅ کله نهٔ هیروې او الله تا سره هر وخت مدد کوي، او هغه ډې هیر کړیدې.

بل د رزق په مسئله کښې انسان ډیر فکرمند وي، نو الله فرمائي چه تا ته رزق درکونکے خو زهٔ یم او بیا ډې هم ما نـه مخ اړولے دې. نو پدې کښې د الله تعالیٰ تعارف هم دې، او پدې کښې جَلْبُ الْعَمَلِ الصَّالِحِ مِنَ الْعَبْدِ هم دې. یعنی الله تعالیٰ بنده لره خپل ځان ته متوجه کوي او د هغه نه د نیك عمل مطالبه کوي.

اَمَّنْ: دا پـه اصل کښې اَمْ مَنْ دې، استـفهام دپاره د الزام د حجت او دپاره د زجر او توبیخ دې، او مَنْ مبتداء ده او هٰذَا ئې خبر دې.

هذا کښې اشاره ده هغه معبود من دون الله ته چه د مشرك په ذهن کښې هر وخت حاضر وي په شان د محسوس نو ځکه ئې ورته په هذا سره اشاره کړیده.

الَّـذِیْ هُوَ جُنْدٌ لَّكُمْ: دا جـمـلـه بـدل دې د هٰذا نه. یا موصول سره د صلے نه صفت د هٰذا دې.

جُنْدٌ: نـه مـراد لښـکـر او حفاظت کونکے، مدد کونکے، سپاهي، فوجي څوکیدار دې. یعنی چه ستاسو په عقیده کښې هغه ستاسو مددګار جوړ شي.

یَنْصُرُکُم مِّنْ دُوْنِ الرَّحْمٰنِ: یعنی کـه الله پـه تـاسـو بـاندې مصیبتونه راوستل غـواړي نـو آیا دا معبودان ستاسو نه دغه مصیبت لرې کولے شي او څه برکت درکولے

شي؟. دا خو صرف یوازې هغه رحمٰن ذات دے چه هر وخت ستاسو مدد کولے شي.

دلته وقف دے، کافران به غلی شي نو الله فرمائي :

**إِنِ الْكَافِرُونَ**: حقیقت دادے چه شیطان کافران په دهوکه کښې غورزولي دي، هغهٔ د دوئ په نظرونو کښې شرکي اعمال ښائسته کړي، او په دے دهوکه کښې ئے اخته کړي دي چه د مرګ نه پس، نهٔ څهٔ بل ژوند شته او نهٔ حساب کتاب، او که بالفرض بل کوم ژوند وي نو د دوئ معبودان به د الله په حضور کښې د دوئ سفارشي جوړیږي، او دوئ له به نجات ورکوي.

**أَمَّنْ هَٰذَا الَّذِي يَرْزُقُكُمْ**: په دے آیت کښې همدے سرکشانو ته ونیلے کیږي چه که الله تعالیٰ تاسو نه باران بند کړي، او په تاسو باندے د خپلے روزئ دروازے بندے کړي، نو تاسو له به اُویهٔ څوك درکړي، او روزي به څوك درکړي.

د مخلوق حال خو دادے چه هغوئ خپلو خانونو ته د روزئ ورکولو قدرت نهٔ لري نو نوروته به ئے څنګه اورسوي. بلکه که الله تعالیٰ د سړي په مرئ کښې یوه نوړئ اُونخلوي او د تیریدو قوت ترے واخلي نو که توله دنیا راجمع شي هغه به معدے ته کوزه نکړي.

**إِنْ أَمْسَكَ رِزْقَهُ**: ددے جواب پټ دے (اَیْ فَمَنْ يَّرْزُقُكُمْ غَيْرَهُ) یعنی بیا د الله نه سوئ بل څوك دے چه تاسو ته رزق درکړي.

**بَلْ لَّجُّوا** : دلته تقدیر دے، یعنی دے سرکشانو ته ددے آیتونو نه هیڅ فائده نهٔ رسیږي، بلکه د دوئ تکبر نور هم زیاتیږي، او د حق نه نور هم لرے وځي، او په دے عقیده باندے ټینګ ولاړ دي چه د دودئ معبودان به دوئ د مصیبتونو نه بچ کوي، او دوئ له به روزي ورکوي.

**لَجُّوا**: د لَجاج نه دے، په یو شي کښې په زور سره ننوتو ته وائي سره ددے نه چه د هغے نه ډیر موانع (منع کونکي) هم وي، نو مطلب دا شو چه د مشرکانو دپاره ډیر منع کونکي دلیلونه شته، لیکن دوی زور کوي او په سرکشئ کښې ننوزي چه دے ته هټ دهرمي وائي.

دارنګه : لجاج په ضد او عناد کښې اُوړدوالے او په هغے باندے مضبوط کیدل دي.

**عُتُوٌّ**: عناد/ او طغیان دے. (یعني سرکشي چه د حد نه ورتیره شي)

وَنُفُوْرٍ: نفرت او د حق نه تختيدل د وجه د تكبر نه، او حق او اهل حق سپك گنړل دي.
عتو په عمل سره ده چه سركشي كوي، او نفرت په زړه كښ دے.
د رزق په مقابله كښ پكار دا وه چه بنده د الله تعالىٰ د حدودو پابندي كړے وے، چه الله ما له رزق راكوي، نو زهٔ به ئے بندگي ولے نهٔ كوم، او د نفرت په مقابله كښ اِقبال دے، پكار دا ده چه الله ته ئے توجه كړے وے.

| أَفَمَنْ يَمْشِىْ مُكِبًّا عَلٰى وَجْهِهٖٓ |
| --- |
| آيا پس هغه څوك چه روان وي پر مخے (التهه) په مخ خپل باندے |
| أَهْدٰى أَمَّنْ يَمْشِىْ سَوِيًّا عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٢٢﴾ |
| ډير هدايت والا دے يا هغه څوك چه روان وي برابر په لاره نيغه. |

**تفسير**: اُوس دوه ډلے ذكر كيږي، يو هغه دي چه الله پيژني، او بل هغه دے چه الله نهٔ پيژني نو الله تعالىٰ د دواړو ترمينځ فرق بيانوي چه دواړه هيڅكله نشي برابريدے.
يَمْشِىْ مُكِبًّا: او پدے آيت كښ تمثيل دے د سالكينو او د مسلكونو. اول سالك (په لاره تلونكے) هغه دے چه سر او مخ ئے خكته كړيدے، مخامخ نهٔ گوري او روان وي او لاره ئے هم كږه وي، نو د كندے او ازغو او كاڼرو نه نشي بچ كيدے، بلكه په يوه كنده كښ به وغورزيږي، او خپل مقصد ته هرگز نشي رسيدلے، په لاره كښ به ئے ډير خنډونه ووهي.
او دويم سالك (تلونكے) هغه دے چه سر او مخ ئے اُوچت كړے او ملا ئے هم سيده ده، او لاره ئے هم سيده مقصد ته رسيدونكے ده، نو دا شخص خپل مقصد ته په آسانه رسيدونكے دے.
نو اول مثال د مشرك گمراه مقلد دے چه د مشرانو ړوند تقليد كوي او سر ئے خكته كړے وي، يعني دليل ته نهٔ گوري، او نهٔ په دليل والو پسے روان وي، او مسلك ئے هم د حق نه خلاف دے. نو دے به ضرور د هلاكت په كنده كښ غورزيږي ځكه چه ځان ئے په زوره گمراه كړو، الله ته ئے مخ پورته نهٔ كړو.
او دويم مثال د موحد مُتَّبِع د دليل دے چه هغه په تحقيق او په دليل باندے عمل كوي

او مسلك ئې هم په صحیح دلیلونو سره ثابت دې، او خپلو ټولو اقوالو او اعمالو کښې د حق تابعداري کوي، نو دا دواړه يو شان نشي کيدې. اول شخص يقيناً گمراه دې، او دويم شخص يقيناً هدايت والا دې. او همدا حالت د دواړو ډلو به په قيامت کښې هم وي لکه چه حال د کافر په سورة اسراء (۹۷) آيت او سورة فرقان (۳٤) آيت کښې ذکر دې.

بعض وائي : دا دواړه د آخرت سره لګي : (يعني څوك چه اُور طرفته په مخ باندې راپورته کړې شي او د سَوِيًّا نه مراد دا چه په خپلو قدمونو سره جنت طرفته راپورته کړې شي. دا دواړه نشي برابريدې، نو کافر او مشرك د الله مخالف به اُور ته روان وي، او مؤمن نيك عمل والا به سيده جنت ته روان وي. (معالم التنزيل)

قتادة وائي : ددې نه مراد هغه کافر دې چه په دنيا کښې د الله تعالىٰ په معاصيو (مخالفتونو) کښې سرکوزې روان دې، (توبه نهٔ وباسي) نو الله به ئې د قيامت په ورځ حشر په مخ سره وکړي. ظاهر دا ده چه دا دواړه مثالونه دي.

| |
|---|
| قُلْ هُوَ الَّذِيْ اَنْشَاَكُمْ وَجَعَلَ لَكُمُ |
| ووايه ! هغه ذات داسې دې چه پيدا کړي يئ تاسو او کړځولي ئې دي تاسو لره |
| السَّمْعَ وَالْاَبْصَارَ وَالْاَفْئِدَةَ قَلِيْلًا مَّا تَشْكُرُوْنَ ﴿۲۳﴾ قُلْ هُوَ الَّذِيْ |
| غوږونه او سترګې او زړونه، ډير لږ شکر کوئ تاسو. تهٔ اُووايه الله هغه ذات دې |
| ذَرَاَكُمْ فِي الْاَرْضِ وَاِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲٤﴾ |
| چه خوارهٔ کړي يئ تاسو په زمکه کښې او خاص هغهٔ ته به ورجمع کړې شئ. |
| وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۵﴾ قُلْ |
| او وائي دوئ کله به وي دا وعده (د قيامت) که چرته تاسو رشتيني يئ. تهٔ اُووايه |
| اِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ وَاِنَّمَا اَنَا نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ ﴿۲٦﴾ |
| يقيناً علم (ددې) د الله سره دې، او يقيناً زهٔ يره درکونکې ښکاره يم. |

**تفسير** : په دې آيتِ کريمه کښې بيا د الله تعالىٰ د تعارف بيان دې. يعني همدغه الله تعالىٰ يوائې حقيقي معبود دې، دې وجې نه بندګانو له صرف ددهٔ عبادت کول پکار دي

او هم ددهٔ شکر په ځائے راوړل پکار دی۔ الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته حکم ورکړے چه خلقو ته ووایه چه یواځے الله تعالیٰ دوئ پیدا کړی دی، د دوئ په پیدائش کښې هیڅوك د هغهٔ مدد ګار نهٔ وو، او نهٔ هغهٔ ته د چا د مدد ضرورت وو۔ هم هغهٔ د دوئ غوږونه، سترګے او زړونه پیدا کړی چه دا د دوئ د جسمونو اهم ترین اندامونه دی، او دوئ ئے د ټولو نه په ښائسته شکل او صورت کښې پیدا کړی دی۔

ددے نعمتونو غوښتنه دا وه چه خلق د دغه حقیقی انعام کونکی شکر ګذار جوړ شوی وے، لیکن په دوئ کښې ډیر کم خلق د خپل رب شکر ګذار دی۔

قَلِیۡلًا مَّا تَشۡکُرُوۡنَ: اَیْ قَلِیۡلًا شُکۡرُکُمۡ۔ یعنی ستاسو شکر ډیر کم دے۔ یا په تاسو کښې لږ خلق شکر ګذار دی۔

قُلۡ هُوَ الَّذِیۡ : دا بل دلیل دے چه الله تعالیٰ ستاسو نسل زیات کړو او تاسو ئے په زمکه کښې خوارهٔ کړئ او تاسو له ئے قِسما قِسم نعمتونه درکړل چه د هغے نه تاسو په خپل ژوند کښې فائده اخلئ، او کله چه ستاسو د دنیوی ژوند ورځے شپے پوره شی نو هغه تاسو ددے ځی نه پورته کوی، او بیا د قیامت په ورځ به مو ژوندی کړی او خپلے مخے ته به مو اُودروی۔

نو مطلب دا شو چه الله تاسو خوارهٔ کړی یئ د یو مقصد دپاره او بیرته به درنه تپوس کوی۔ او هغه مقصد د الله شکر او د هغه معرفت او اَحۡسن عمل کول دی۔

وَیَقُوۡلُوۡنَ: لیکن د مرګ نه پس د دوباره ژوند نه انکار کونکو، انبیاء علیهم السلام لره دروغژن ګنړونکو به وئیل چه که ستاسو خبره رشتینے ده، نو لږ مونږ ته هم د هغے د راتلو وخت اُوښایئ۔ ګویا که د قیامت راتلو وخت ښودل د کافرانو په نیز د انبیاؤ د رشتین والی دلیل وو۔

صَادِقِیۡنَ : یعنی که تاسو رشتینی یئ پدے خبره کښې چه (وَاِلَیۡهِ تُحۡشَرُوۡنَ)۔ الله ته ورجمع کیدل دی۔

قُلۡ اِنَّمَا الۡعِلۡمُ عِنۡدَ اللّٰهِ : الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته وئیل چه دوئ ته اووایه چه ددے د راتلو وخت خو صرف الله ته معلوم دے۔ او ددے خبرے علم د الله نه سوئ بل هیچا ته نهٔ کیدل ددے خبرے دلیل نهٔ دے چه خبره رشتینے نهٔ ده۔ خبره یقیناً رشتینے ده، او د قیامت په راتلو کښې هیڅ شك او شبهه نشته، او الله تعالیٰ په خپل عزتمند کتاب کښې ددے

ډیرے نښے او دلائل بیان کړی دی، چه په هغے کښ د غور او فکر کونکو په زړونو کښ ددے د رښتین والی په باره کښ هیڅ شك او شبهه باقی نهٔ پاتے کیږی.
**نَذِيْرٌ مُّبِيْنٌ:** یعنی زهٔ خو صرف ددے دپاره راغلے یم چه تاسو د آخرت په ورځ یروم، زما د دنیا بل څه مقصد نشته چه ښځه، کورونه او جائیدادونه راجمع کوم، ما په باره کښ دا گمان مهٔ کوئ، او د قیامت د ورځے متعین کول د الله تعالیٰ کار دے، هغه زما ذمه واری نهٔ ده.

| فَلَمَّا رَاَوْهُ زُلْفَةً سِيْئَتْ وُجُوْهُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا |
|---|
| نو هرکله چه دوی اُووینی دے (ورځے) لره نزدے نو بد به کړے شی مخونه د کافرانو |
| وَقِيْلَ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تَدَّعُوْنَ ﴿٢٧﴾ |
| او ویه وئیلے شی (دوی ته) دا هغه ورځ ده چه تاسو به دا غوختله. |

**تفسیر** : دا جواب دے په طریقه د تخویف سره. د قرآن طریقه همیشه دا وی چه اجمالی طریقے سره جواب کوی او تخویف بیانوی. نو مخکښ اجمالی جواب په تفویض سره وو، او دلته تخویف ورکوی چه دغه ورځ به نزدے راشی، کافران به ئے وینی چه مخونه به ئے پکښ ډیر بد شوی وی.
یعنی د دغه ورځے راتلل خو یقینی دی لیکن کافران ډے د خپل ځان غم وکړی د هغوی حالت به پکښ ډیر بد وی.
**فَلَمَّا رَاَوْهُ:** یعنی کافران او مشرکان په دنیا کښ قیامت او مرگ نه پس ژوندی کیدل دروغژن گنړی، کله چه واقعی قیامت راشی، او دوئ د دوباره ژوندی کیدو نه پس په میدانِ محشر کښ جمع کړے شی. او جهنم خپلو سترگو سره اُووینی، په دے وخت کښ به د دوئ سترگے کړاغے راوخی،
مخونه به ئے د سختے ویرے دو جه نه تور شی، او ملائك به دوئ ته د زجر او رټنے په توگه اُووائی چه همدا هغه جهنم دے چه دا به تاسو دروغژن گنړلو او وئیل به مو چه د قیامت هیڅ حقیقت نشته، اوس تاسو دا خپلو سترگو سره اولیدلو، او تاسو له ددے نه د خلاصون هیڅ صورت باقی نهٔ دے پاتے شوے.

سِيئَتْ: دا د سَاءَ نه دے په معنیٰ د غم سره۔ یعنی غمجن او خفه به شی۔

❁ یا په معنیٰ د بد شکله کیدو سره دے۔

❁ یا په معنیٰ د (اِسْوَدَّتْ) سره دے، یعنی تك تور به شی۔

وَقِيلَ: یعنی د توبیخ او زورنے په طریقه به دوی ته ملائك ووائی۔ یا به ورته بلسان الحال ووئیلے شی۔

تَدَّعُونَ: یعنی چه تاسو به غوښتله چه کله به راځی۔ په طریقه د استهزاء او توقو سره۔ نو تَدَّعُوْنَ باب افتعال دے د دعاء نه دے۔

یا تدعون د اِدِّعاء نه دے، په دروغجن طلب او دعوه کښې استعمالیږی۔ یعنی تاسو به ددے ورځے په باره کښې دروغجنے دعوے کولے او باطلے خبرے به مو کولے۔ (زجاجؒ)

| قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللَّهُ وَمَنْ مَّعِيَ أَوْ رَحِمَنَا |
|---|
| ووايه ! خبر راكړئ كه چرته هلاك كړى ما لره الله او هغه څوك چه ما سره دى يا رحم |
| فَمَنْ يُّجِيرُ الْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ﴿۲۸﴾ |
| وكړى په مونږ باندے، نو څوك دے چه بچ به كړى كافرانو لره د عذاب دردناك نه۔ |

**تفسير**: پدے آیت کښې (۱) یو مقصد دا دے: (اَلْكَافِرُ مُعَذَّبٌ عَلٰى كُلِّ حَالٍ) کافر ته به الله تعالیٰ په هر حال کښې عذاب ورکوی،

نو مطلب دا شو چه تاسو اے کافرانو! قیامت او عذابونه څه له په جلتئ سره غواړئ بلکه د خپل عذاب غم وکړئ، او زمونږ غم مهٔ کوئ چه په مونږ اعتراض کوئ چه تاسو دروغ وایئ او دا خبره مو رشتینی نهٔ ده چه قیامت به راځی، او عمل مو غلط دے، بلکه تاسو د خپل ځان غم وکړئ، کافر له به الله تعالیٰ عذاب ورکوی په سبب د کفر، مونږ سره ئے چه هر څه وکړل۔ مونږ په ځای پریدئ مونږ نه عذابونه مهٔ غواړئ۔

مطلب دا شو: خبر راکړئ که الله تعالیٰ مونږ هلاکوی یا راباندے رحم کوی نو دے سره ستاسو کار نشته، خو (فَمَنْ يُّجِيرُ الْكَافِرِينَ) تاسو باندے د کفر په وجه یقینی عذاب راتلونکے دے، تاسو به د عذاب نه څوك خلاصوی، نو زمونږ په باره کښې فکر مهٔ کوئ چه دوی به دروغ وائی یا به رشتیا وائی۔ بلکه د خپل کفر غم وکړئ۔

او دا په اصل کښې جواب وو ددے قول د منکرینو چه (اَنَّهُ سَبَهْلِكُ قَبْلَنَا) دا نبی او مؤمنان به مړهٔ شی نو مونږ به ترے خلاص شو نو الله فرمائی : که دا پیغمبر مړ کیږی او که نهٔ خو تاسو په هیڅ حال کښې د الله د عذاب نه نشئ خلاصیدے۔
ددے مثال داسے دے چه یو سړے چا ته وائی چه تهٔ ما ته په باطله وائے، نو زهٔ که په باطل یم او که په حق ما پریده، خو ستا عقیده غلطه ده، تهٔ خو به خامخا اُور ته ځے، مشرك ئے، د حق مخالف ئے، که زهٔ په غلطه یم او که په صحیح خو تهٔ اُور ته روان ئے، د خپل ځان غم وکړه۔ او دا د دعوت یوه ښکلے طریقه وی چه مخاطب خپل جرمونو ته متوجه کړے شی۔
(۲) تفسیر : دویم غرض پدے آیت کښې دا هم جوړیږی :
نَحْنُ مَعَ اِیْمَانِنَا خَائِفُوْنَ وَنَرْجُوْ رَحْمَتَهٗ۔
یعنی مونږ سره د ایمان نه د الله د عذابونو نه یریږو او د هغه د رحم اُمیدوار یو (فَمَنْ یُجِیْرُکُمْ مَعَ کُفْرِکُمْ وَعَدَمِ خَوْفِکُمْ) نو تاسو خو کافر یئ نو تاسو به د کفر سره څوك خلاصوی، یعنی مونږ کښې ایمان دے او یریږو او تاسو کښې کفر موجود دے او د الله د عذابونه نهٔ یریږئ نو تاسو به د الله د عذابونو نه څوك بچ کړی۔
أَهْلَكَنِیَ : اهلاك نه مراد یا عذاب دے، یا مرگ دے لکه دواړه خبرے په تفسیر کښې واضح شوے۔
أَوْ رَحِمَنَا : د رحم نه مراد د عذاب نه بچاؤ دے، یا ددے نه مراد مهلت او د مرگ روستو والے دے۔

| قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ آمَنَّا بِهٖ |
|---|
| تهٔ اُووایه ! دغه ذات بے حده مهربان دے، ایمان راوړیدے مونږ په هغهٔ باندے |
| وَعَلَیْهِ تَوَكَّلْنَا فَسَتَعْلَمُوْنَ |
| او خاص هغهٔ ته ځان سپارلے دے مونږ نو زردے چه تاسو ته به پته اُولگی |
| مَنْ هُوَ فِیْ ضَلَالٍ مُّبِیْنٍ ﴿۲۹﴾ قُلْ اَرَاَیْتُمْ اِنْ اَصْبَحَ |
| چه څوك دے په گمراهئ ښکاره کښې۔ تهٔ اُووایه ! خبر راکړئ که چرته اُوگرځی |

| مَاؤُكُمْ غَوْرًا فَمَنْ يَّأْتِيْكُمْ بِمَآءٍ مَّعِيْنٍ ﴿۳۰﴾ |
| --- |
| اُوبه ستاسو اُوچے نو څوك دے چه رابه ولی تاسو ته اُوبه روانے۔ (چینه دارے)۔ |

**تفسير** : اُوس سوال پیدا شو چه آیا په نبی ﷺ او په ابوبکر او عمر رضی الله عنهما او تولو صحابه کرامو رضی الله عنهم باندے دا خطر شته چه په هغوی عذاب راشی دا خو ډیره سخته خبره شوه؟ نو اُوس الله تعالیٰ د هغوی د تسلیٰ دپاره د امید خبره راوړی۔

هُوَ الرَّحْمٰنُ : یعنی دغه الله تعالیٰ بیحده مهربان دے هسے بے جرمه چاته عذابونه نهٔ ورکوی۔

آمَنَّا بِهٖ : او مونږ پرے ایمان راوړے، او دا قانون دے چه څوك په مهربان ذات ایمان راوړی نو هغهٔ ته الله تعالیٰ هیڅ نهٔ وانی، عذابونه نهٔ ورکوی۔

وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا : سوال پیدا شو چه د انجام د خرابیدو خطره خو شته؟ نو فرمائی چه په دغه الله تعالیٰ مونږ خان سپارلے دے (دا توکل فی الخاتمه دے)

او څوك چه الله ته خان وسپاری نو الله ئے نهٔ خرابوی، او نهٔ ورته عذاب ورکوی، او نهٔ ورله خاتمه خرابوی۔ نو مونږ امید لرو چه په مونږ به دغه مهربان ذات رحم کوی، او د عذابونو نه به مو خلاصوی۔ څکه چه کله د الله تعالیٰ مهربانی او د انسان ایمان او توکل جمع شی، نو بیا د الله عذاب نهٔ وی۔

فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ فِيْ ضَلَالٍ : یعنی تاسو ته به په دنیا او په آخرت کښ پته ولګی چه ښکاره ګمراه څوك دے۔ او دا پته د عذاب د راتللو په وخت کښ لګیږی۔

قُلْ اَرَاَيْتُمْ : دا هم دلیل اعترافی سکوتی دے، او په دے کښ تخویف ذکر دے په ذکر د عذاب سره چه هغه اُوبه وچیدل دی۔

د آیت مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د نبی کریم ﷺ په ژبه مشرکانو ته دا خبره ښودلے چه تمام نعمتونه بندګانو له د دغه یواځے ذات له خوا ملاؤ شوی دی، خاصکر اوبهٔ چه د دے په ذریعه الله تعالیٰ تمام ژوندی څیزونه پیدا کړی دی۔

که چرے الله تعالیٰ دا اوبهٔ د زمکے آخری تل ته اُورسوی، نو د هغهٔ نه سوئ څوك دے چه هغه تاسو له صفا او شفافے اوبهٔ درکړی؟ اُوبه ډیر لوی نعمت دے، او د هر شی ورته ډیر ضرورت دے، نو څکه ئے دا ذکر کړے۔

نو جواب معلوم دے چه هیڅوك نشته. او کله چه خبره داسے ده نو بیا تاسو ولے الله پریدئ او د نورو عبادت کوئ، ولے بل څوك د هغهٔ سره شریکان جوړوئ، او د هغهٔ د نعمتونو ناشکری کوئ ؟!. پکار دا ده چه ددے اُوبو په مقابله کښې انسان ډیره بندگی وکړی. نو پدے تپوس کښې مقصد دا دے چه الله تعالیٰ مشرکان په خپلو بعض نعمتونو چه په دوی باندے ئے کړیدی اقراری جوړ کړی او دوی ته ددے نعمتونو سره د دوی د کفر او عناد او کبر قباحت وښائی.

غَوْراً: چه په زمکه کښې داسے ډوبے او اُوچے شی چه په زمکه کنستو سره بیا نهٔ راوځی. او ددے نه د چینو، کوهیانو او نهرونو اُوبهٔ مراد دی.

بِمَاء مَّعِيْنٍ: ۱- معین د عَیْن نه دے، یعنی هغه اُوبهٔ چه په زمکه ښکاره روانے وی چه سترگے ئے وینی.

۲- یا معین د مَعْن نه دے، ډیر والی ته وائی.

۳- قتادةؒ او ضحاكؒ وائی جاری اُوبه.

٤- خوږے اُوبه. (ابن عباسؓ)

دلته مفسرینو لیکلی دی (لکه شربینی، فتح البیان وغیره) چه د بعض متجبرانو (مشرکانو) په خوا کښې دا آیت ولوستلے شو نو هغه گوداله او تبرگے راواخستو او وے وئیل: (تَأْتِيْ بِهِ الْفُؤُوْسُ وَالْمَعَاوِلُ) اُوبه به تبرگی (بیلچے) او کودالے راولی.

نو الله د هغهٔ د سترگو اُوبه ختمے کړے او ړوند شو. نو بیا ورته ووئیل شو چه اُوس به د کوم ځای نه دے ته اُوبه راولے. نعوذ بالله من الجرأة علی الله وعلی آیاته. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورت

۱- پدے سورت کښې د الله تعالیٰ تعارف او د هغے دوه نتیجے بیان شوے.

۲- د الله تعالیٰ گنړ نعمتونه او برکات ذکر شول.

۳- او مثال د مشرك او مؤمن موحد بیان شو.

ختم شو تفسیر د سورة الملك په برکت د رحمن سره په رمضان (٤) موافق ۹ جون.

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

| آیاتها (۵۲) | سُوْرَةُ الْقَلَمِ مَكِّيَّةٌ (٦٨) | رکوعاتها (۲) |
|---|---|---|

سورة القلم مکی دے، په دے کښې دوه پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی

# تفسیر سورة القلم

**نوم** : د اولنی آیت : ﴿ نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا یَسْطُرُوْنَ ﴾ نه اخستے شوے. دے سورت ته [سورة نٓ] او [سورة الْقَلَم] دواړه وئیلے کیږی.

**مناسبت :**

۱- مخکښې د الله تعالیٰ تعارف وو نو دلته د رسول الله ﷺ شان بیانیږی.

۲- مخکښې شکر ته ترغیب وو نو دلته د ناشکرو حال بیانوی.

۳- مخکښې سورت کښې د الله تعالیٰ د توحید اثبات وو په دلیلونو سره، نو په دے سورت کښې ترغیب او تیزی ورکوی په دعوت کولو باندے توحید طرفته.

٤- مخکښې ئے وویل : (فَمَنْ یُّجِیْرُ الْكٰفِرِیْنَ مِنْ عَذَابٍ اَلِیْم) کافران د عذاب نه نشی خلاصیدے (تخویف دنیوی وو) نو دلته د هغے مثال کښې د باغ والو واقعه راوړی.

**موضوع د سورت :**

۱- بَیَانُ شَانِ الرَّسُوْلِ ﷺ وَعَظَمَتِهٖ وَكَمَالِهٖ.

د رسول الله ﷺ د شان او عظمت او کمال بیان دے. هغه پدے طریقه چه (اِنَّهٗ لَعَلٰی خُلُقٍ عَظِیْم) د رسول الله ﷺ اخلاق ډیر اُوچت دی. (وَاِنَّهٗ مُخْلِصٌ فِیْ دَعْوَتِهٖ)

دے په خپل دعوت کښې په اخلاص روان دے. او ددهٔ په مقابل کښې چه ددهٔ کوم دشمنان دی، نو د هغوی ناکاره صفات او بد اخلاقی او دنیا پرستی بیانوی. نو د نبی په

خلاف کښې چه څوك ودریږي، هغه غټ بد اخلاقه او دنیا پرست دے۔ او ناشکره دے۔
ورسره دا خبره بیانوي چه (وَاِنَّهٗ نِعْمَةٌ يَجِبُ شُكْرُهَا) رسول الله ﷺ یو لوی نعمت دے چه ددهٔ شکر واجب دے۔ واقعه د باغ والو به هم ددے مقصد دپاره راوړي چه هغوی ته الله باغ نعمت ورکړے وو نو هغوی ناشکري وکړه، نو دغه شان مکے والو ته الله تعالیٰ رسول الله ﷺ ورکړے وو نو دوی پرے ناشکري وکړه۔
او دا د مشرکانو ددے وینا په رد کښې نازل شوے وو چه هغوی رسول الله ﷺ ته د لیونتوب نسبت کولو څکه چه شپه او ورځ لګیا دے او نه ستړے کیږي۔ نو په اول د سورت کښې هم ورته الله فرمائي : چه ﴿مَا اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ﴾ تهٔ د خپل رب په نعمت باندے لیونے نهٔ یې۔
او په آخر کښې هم وائي ﴿لَيُزْلِقُوْنَكَ بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ لَمَجْنُوْنٌ﴾۔ نو الله د دوی په خلاف د رسول الله ﷺ ښکلے صفات ذکر کړل چه دهٔ باندے خو الله تعالیٰ د ښکلے صفاتو باران کریدے بلکه ددهٔ د دشمنانو ناکاره اخلاق واوریٔ۔ او ددے سره به نور متعلقات هم بیانیږي۔

| نٓ وَالْقَلَمِ وَمَا يَسْطُرُوْنَ ﴿۱﴾ |
| --- |
| الله پوهه دے ددے په مطلب۔ قسم دے په قلم او په هغه څه چه لیکي یې دوی۔ |
| مَا اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ ﴿۲﴾ |
| نهٔ یې تهٔ په نعمت د رب ستا لیونے۔ |

**تفسیر** : قرآن کریم کښې د موجودو نورو حروفو مقطعاتو غونته (نٓ) حرف هم یو حرفِ مُقَطع دے، چه ددے حقیقي معنیٰ او مفهوم صرف الله تعالیٰ ته معلوم دے۔
او تاویلي تفسیرونه پکښې مفسرینو دا کړیدي :
(۱) ضحاكؒ نه نقل دي چه (ن) دوات او تختي ته وائي۔
(۲) بعض وائي چه (ن) یو ماهي دے د زمکو لاندے چه په هغے باندے زمکے ولاړے دي۔ لیکن ددے هیڅ صحیح دلیل نشته۔ او د ابن مردویۃ مرفوع روایت پکښې ضعیف دے۔ (۳) عطاءؒ او ابو العالیۃ وائي : نون د نصر او ناصر نه دے۔

او محمد بن کعب وائی : ن نصرت ته وائی، نو الله قسم کړیدے چه د مؤمنانو سره به خپل نصرت (مدد) کوی۔

(٤) بعض وائی : ددے سورت نوم دے۔

(٥) بعض وائی : د قرآن نوم دے۔

(٦) صحیح دا ده چه ددے نه مقصد عربو خلقو ته چیلنج (د مقابلے دعوت) ورکول دی چه دا قرآن هم د هغه حروفو نه جوړ شوے دے چه د هغے نه ستاسو کلام جوړیږی۔ نو که چرے دا قرآن د کوم انسان کلام دے نو تاسو هم ددے پشان کلام راوړئ۔

**وَالْقَلَمِ:** په دے آیتِ کریمه کښ الله تعالیٰ په هغه قلم باندے قسَم خوړلے چه هغه الله اول پیدا کړو، او هغهٔ ته ئے د لیکلو حکم وکړو نو هغهٔ ووئیل چه څهٔ اولیکم؟ الله تعالیٰ وفرمایل : څهٔ چه قیامته پورے کیدونکی دی هغه ټول اولیکه۔

**وَمَا يَسْطُرُونَ:** دارنګه الله تعالیٰ په هغه ټولو شیانو قسَم خوړلے چه هغه ملائك د لوحِ محفوظ نه نقل کوی او لیکی ئے، او د بندګانو په هغه تمامو اعمالو ئے هم قسَم خوړلے چه هغه د الله عزتمن ملائك یعنی [كِرَامًا كَاتِبِيْن] ئے لیکی۔

دارنګه يَسْطُرُوْنَ کښ ضمیر انسانانو ته هم راجع دے، یعنی د قلم خاوندان چه څه لیکی۔ (وَمَا) ددے نه مراد یا کاتبان دی، یا ددے نه مراد هغه څیزونه دی چه کاتبان ئے لیکی۔

د قلم په باره کښ هم غوره دا ده چه دا جنس دے، ټول قلمونه مراد دی، او قلمونه شل قِسمونه دی لکه تفسیر عزیزی او تفسیر احسن الکلام کښ ذکر دی چه قلم د تقدیر، قلم د اهل النجوم، قلم د اهل التاریخ، قلم د ملاءِ اعلیٰ۔ قلم د کرامًا کاتبین۔ قلم د فقهاؤ، قلم د اطباؤ، قلم د قُضاتو، قلم د مفتیانو، قلم د اهل الفرائضو، قلم د اهل حسابو، قلم د حکماؤ، قلم د اهل الفصاحة والبلاغة، قلم د شاعرانو، قلم د اهل عربیه ؤ، قلم د اُمراؤ، قلم د تاجرانو، قلم د مُعَلمینو وغیره۔

## مناسبت د قلم او د جواب قسم دا دے

چه د رسول الله ﷺ په خبرو کښ او په دهٔ باندے نازل شوی کتاب کښ دومره علمونه دی چه عام قلمونه او قلمونو والا په هغے باندے ستړی شو خو د هغے علمونه نهٔ ختمیږی،

نو که چرته دا لیونے وے نو د لیونی خو دماغ خراب وی، خبرو کښې نے هیڅ کمال نهٔ وی، نو دا ټولو قلمونو والا ګواه دی چه دا نبی رشتینی او پوره عقل والا دے، ددهٔ د خبرو نه ټوله دنیا فائده اخلی، سائنسدانان، قاضیان، مفتیان، اهل تاریخ، مفسرین او محدثین او اصحاب المملکة (بادشاهان) او سیاست والا ترے فائدے اخلی۔

الله تعالیٰ قسم خوری او نبی کریم ﷺ ته وائی چه واقعی تاله ستا رب د نبوت نعمت درکړے، او په تا باندے ئے وحی نازله کړے، چه ددے د اثر په وجه خلق په اسلام کښې داخلیږی۔ کافران او مشرکان خالص د خپل حسد د وجے نه تاته لیونے وائی، تهٔ لیونے نهٔ ئے، بلکه عظیم الشان نبی ئے، او د اسلام دعوت خلقو ته رسولو کښې چه کوم تکلیف اوچتوے، او ددے چه کومه عملی نمونه تهٔ د خپل کردار په ذریعه پیش کوے، ددے اجر او ثواب به همیشه تاته ملاویږی۔

بِنِعْمَةِ رَبِّكَ: ۱- یو مطلب دا دے چه الله په تا باندے احسان وکړو چه تهٔ ئے لیونے جوړ نکړے۔

۲- یا نعمت نه مراد قرآن او د هغے بیانول او نبوت دے۔ یعنی د قرآن او د نبوت په وجه تهٔ لیونے نهٔ ئے، بلکه دا خو په تا باندے د الله نعمتونه دی۔ د کافرانو خبره غلطه ده چه وائی ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ﴾ (الحجر: ٦)۔

اے هغه سړیه چه په هغه باندے قرآن نازل شویدے، یقیناً تهٔ خو خامخا لیونے ئے۔

| وَإِنَّ لَكَ لَأَجْرًا غَيْرَ مَمْنُونٍ ﴿٣﴾ وَإِنَّكَ لَعَلَىٰ خُلُقٍ عَظِيمٍ ﴿٤﴾ |
|---|
| او یقیناً تا لره خامخا اجر دے چه نهٔ به قطع کیږی۔ او یقیناً تهٔ په اخلاقو لوئی ئے۔ |

**تفسیر**: وَإِنَّ لَكَ لَأَجْراً: پدے کښې اشاره ده چه تهٔ داعی ئے، او په داعی باندے به سختیے راځی لیکن الله تعالیٰ ورله ډیر اجر ورکوی۔

غَيْرَ مَمْنُونٍ: أَيْ غَيْرَ مُنْقَطِعٍ۔ نهٔ ختمیدونکے اجر دے۔ د رسول الله ﷺ اجر ولے نهٔ قطع کیږی؟ وجه دا ده چه هغه داعی دے، په امت کښې چه څوك کوم نیك عمل کوی، نو د هغے اجر رسول الله ﷺ ته رسیږی۔ (مَنْ سَنَّ سُنَّةً حَسَنَةً) قانون دے۔

پدے وجه محققینو علماؤ وئیلی دی چه رسول الله ﷺ ته ایصال ثواب صحیح نهٔ دے، ډیر خلق په اختر کښې د هغهٔ دپاره ګډان حلالوی، او څوك دولسمه کوی، دا ټول خلافِ

سنت عملونه دي.

**وَإِنَّكَ لَعَلَى خُلُقٍ عَظِيمٍ** : د رسول الله ﷺ اخلاقو ته چه الله تعالىٰ لوی وائی نو واقعی چه ډیر اُوچت اخلاق پکښ موجود وو، جمال د ظاهر او باطن ورته نصیب شوے وو.

امام مسلمؒ د عائشے رضی الله عنها نه روایت کړیدے چه د هغے نه تپوس وشو چه د رسول الله ﷺ اخلاق څنګه وو؟ نو هغے وفرمایل : د نبی کریم ﷺ اخلاق قرآن وو.

یعنی د هغهٔ اخلاق هغه وو چه د هغے ګواهی قرآن ورکړے ده.

حافظ ابن کثیرؒ وائی : ددے مطلب دا دے چه په قرآن کریم کښ کوم اوامر او نواهی ذکر شویدی، نو په هغے باندے عمل کول د هغه خُلق او عادت وو، نو د مؤمنانو چه کوم ښکلے صفت په قرآن کریم کښ ذکر شویدے هغه په رسول الله ﷺ کښ په درجه اکمل موجود وو، خشوع، حیاء، کرم، توکل، د الله محبت، د مخلوق سره احسان، شجاعت، صفح، حلم او هر ښائسته خوئی.

او د مؤمنانو ټول صفات کوم چه په سورة احزاب (۳۵) او سورة مؤمنون (۱) نه تر (۹) او (۵۷) نه تر (٦١) پورے، او سورة معارج کښ د (۲۲) نه تر (۳٤) پورے ذکر شویدی.

مفسرین لیکی چه نبی کریم ﷺ د انتهائی اوچتو اخلاقو، بلند کردار، پوره فصاحت او کامل عقل مالك وو، هغه د هر عیب نه پاك او په هر خوبئ سره متصف وو، او کوم کس چه دے صفاتو سره متصف وی، هغهٔ ته لیونے او پاګل وئیل خپله د لیونتوب خبره ده.

د رسول الله ﷺ اخلاق ولے اُوچت وو؟ یو خو د الله فضل او مهربانی وه.

او دویم : (لِاَنَّهُ لَيْسَ لَهُ هِمَّةٌ سِوَى اللّٰه) . ځکه چه د هغهٔ د الله تعالىٰ نه سوئ بل هیڅ همت او فکر نهٔ وو، نهٔ ئے د ښځے فکر وو، او نهٔ د مال او نهٔ د راحت، صرف د الله فکر ئے وو چه هغه به څنګه راضی شی، او د هغهٔ دین او بندګی به په دنیا کښ څنګه عامه شی، او د چا چه همت اُوچت وی نو د هغهٔ اخلاق هم اُوچتیږی.

او چه همت ئے ښکته وی نو بیا به ئے اخلاق هم خکته وی او په وړو وړو خبرو به جګړے کوی.

| فَسَتُبۡصِرُ وَيُبۡصِرُوۡنَ ﴿٥﴾ بِأَيِّكُمُ الۡمَفۡتُوۡنُ ﴿٦﴾ |
|---|
| نو زر دے چه ته به ووینے او دوی به ووینی۔ چه په کوم یو ستاسو باندے لیونتوب دے۔ |
| إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعۡلَمُ بِمَنۡ ضَلَّ عَنۡ سَبِيۡلِهٖ وَهُوَ |
| یقیناً رب ستا ښه پوهه دے په هغه چا چه گمراه کیږی د لارے د هغهٔ نه او هغه ښهٔ |
| أَعۡلَمُ بِالۡمُهۡتَدِيۡنَ ﴿٧﴾ فَلَا تُطِعِ الۡمُكَذِّبِيۡنَ ﴿٨﴾ |
| پوهه دے په هدایت والو باندے۔ نو خبره مهٔ منه د تکذیب کونکو۔ (د دروغژن |
| وَدُّوۡا لَوۡ تُدۡهِنُ فَيُدۡهِنُوۡنَ ﴿٩﴾ |
| گڼرونکو) (حق لره)۔ خوښوی دوی که چرے ته سست شے نو دوی به (هم) سست شی۔ |

**تفسیر** : پدے کښې تسلی ده رسول الله ﷺ ته چه ته د خپلو شریفو اخلاقو سره د دعوت په لاره کښې مخ په وړاندے ځه، او په دے لاره کښې چه کوم تکلیف راشی هغه برداشت کوه۔ ډیر زر هغه ورځ راتلونکے ده چه تاته او هغه خلقو ته به معلومه شی چه هغوئ تا په لیونتوب سره تورن کوی چه لیونے او فتنه کښې پریوتے څوك دے !۔

فَسَتُبۡصِرُ: سین دپاره د قرب دے، یعنی په دنیا کښې یا په آخرت کښې به ته وینے۔

قتادهٔ او مقاتل وائی : دا مکے مشرکانو ته د بدر د ورځے په عذاب باندے وعید وو۔

د ستبصر او یبصرون مفعول پټ دے۔ اَیۡ سَتُبۡصِرُ عَاقِبَةَ عَمَلِكَ وَيُبۡصِرُوۡنَ عَاقِبَةَ عَمَلِهِمۡ۔

زر دے چه ته به د خپل عمل انجام وینے او دوی به هم د خپلو عملونو انجام وینی۔ او د بِاَيِّكُمُ نه مخکښې (سَتَعۡلَمُوۡنَ) پټ دے۔ (یعنی زر دے چه تاسو ته پته ولگیږی)

بِأَيِّكُمُ الۡمَفۡتُوۡنُ : دے کښې ډیر تفسیرونه دی :

(۱) باء زیاتی ده، او مفتون مجنون (لیونی) ته وئیلے شی۔ لکه ددے معنیٰ مخکښې وشوه۔

(۲) یا مفتون مصدر دے په وزن د مفعول لکه د مَيۡسُوۡر، مَعۡسُوۡر، مَعۡقُوۡل په شان په معنیٰ د فتنے سره، او باء په خپل ځای ده، او د فتنے نه مراد جنون (لیونتوب)، یا گمراهی ده۔ یعنی چه په کوم یو ستاسو باندے فتنه (لیونتوب او گمراهی) ده۔

(ابن کثیرؒ وفتح البیان)

(۳) فراء او مجاهد وائی چه باء په معنیٰ د فِیْ سره دے،

اَیْ فِیْ اَیِّکُمُ الْمَفْتُوْنُ فِی الْفَرِیْقِ الَّذِیْ اَنْتَ فِیْهِ اَمْ فِی الْفَرِیْقِ الْاٰخَرِ.

یعنی په کومه یوه ډله کښې مجنون دے۔ ستا په ډله کښې یا د کفارو په ډله کښې۔

پدے کښې تعریض دے په ابوجهل او ولید بن مغیره وغیره باندے۔

(٤) او مفتون مُعَذَّب ته هم وئیلے کیږی، یعنی پته به ولګی چه په چا به عذاب راځی۔

**حکمة** : دلته ئے مفتون ووئیل او مجنون ئے ونهٔ وئیل، پدے کښې حکمة دا دے چه مجنون خاص دے او مفتون عام دے، مفتون هغے ته هم وائی چه د هغه په اقوالو او افعالو کښې اضطراب او پریشانی وی، نو اګرکه بعض مشرکان په منزله د لیونو باندے نهٔ وو مګر په فتنه د اضطراب د اقوالو او افعالو کښې ضرور اخته وو لکه ابوجهل او ولید بن مغیره او د دوی په شان نور چه عوام به ئے راتیزول چه ددے نبی په باره کښې مختلف اقوال وکړی۔ (التحریر والتنویر)

**اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ**: په دے آیت کښې الله تعالیٰ نبی ﷺ له تسلی ورکړے چه ته دعوت کوه (لکه مَا اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ نه معلومیږی) دوه ډلے به جوړیږی، څوك به هدایت والا وی او څوك ګمراهان، او د دعوت په لاره کښې چه تا ته کوم تکلیف اورسی، په هغے باندے صبر کوه۔ دارنګه په دے کښې مشرکانو لپاره دهمکی ده چه هغوئ تا دروغژن ګنړی۔

**فَلَا تُطِعِ الْمُکَذِّبِیْنَ**: مشرکانو په قسماقسم طریقو سره کوشش کولو چه رسول الله ﷺ د توحید د بیانولو نه بند کړی لکه اُوس هم د ټولو کفارو او اهل بدعو طریقه ده چه حق دعوت بندول غواړی) نو الله خپل نبی ته نصیحت کوی چه هر کله دا خبره واضحه شوه چه ته په حقه ئے، او ستا قوم د کفر او شرك په کندو کښې سرګردانه اوسی، نو ستا دپاره دا خبره په هیڅ طریقه مناسب نهٔ ده چه د الله، د هغهٔ د رسول او د اسلامی دین دروغژن ګنړونکو خبره اُومنے، هغوئ خو آرزو کوی چه تهٔ د دوئ د معبودانو عیب تالاش نکړے، او د دوئ بے وسی بیان نهٔ کړے دے دپاره چه دوئ هم تا ته کنځل نهٔ کوی او ضرر نهٔ درکوی۔

**اَلْمُکَذِّبِیْنَ**: یعنی ددے خلقو تابعداری مهٔ کوه چه د هغوی دا ناکاره صفات دی۔ د حق تکذیب کوی چه هغه الله او رسول دے۔

وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ: دا قانون دے چه کله تا حق کلك بیانولو نو باطل به هم په جوش کښې راځي، او چه کله تهٔ سست شوے نو باطل به هم سستیږي. خکه چه د هغوی مطلب صرف دنیا ده، بعض خلق وائی : ما ډیر حکمت نه کار واخستو او حال دا چه حق ئے پټ کړے وی، کلك حق ئے نهٔ وی بیان کړے.

تُدْهِنُ: اِدْهان : مُلَايَنَة (نرمی) مُسَامَحَة (چشم پوشی) مُدَارات (نرمی) کول دی.

مبرِّدٌ وئیلی دی : ادهان او مداهنت خیانت کول او ظاهرول د هغه خبرے دی چه د باطن نه مخالف وی.

بعض علماء وائی چه نرم والے په کلام او په طریقه کښې که د خیر وی او که د شر، خو په شر کښې ئے استعمال ډیر دے.

نو ادهان او مداهنت دے ته وائی چه د حق او د توحید په مسئله کښې داسے نرمی وکړی چه په شرك رد نهٔ کوی، او حق پټ کړی چه کافرن او مشرکان به هم مخالفت نکوی، مقابلے به نهٔ کوی، کنځل او رد بد به ورته نهٔ وائی او دے ته پدے زمانه کښې ډیر خلق اتحاد او حکمت وائی. مګر دا غلطی ده. (احسن الکلام)

فَيُدْهِنُونَ: یعنی کافران او مشرکان او د حق مخالفین به هم نرمی شروع کړی، هغه دا چه ددهٔ مخالفت به نهٔ کوی او مقابلے ته به نهٔ راوځی او کنځل او بد رد به ورته نهٔ وائی.

| وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَّهِينٍ ﴿١٠﴾ هَمَّازٍ مَّشَّاءٍ |
|---|
| او خبره مهٔ منه د هر ډیر قسم خور، سپك. چه عیب لګونکے، ورونکے دے چغلئ لره |
| بِنَمِيمٍ ﴿١١﴾ مَّنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ مُعْتَدٍ أَثِيمٍ ﴿١٢﴾ عُتُلٍّ |
| ډیر منع کونکے دے خیر لره، زیاتے کونکے دے، ګناهګار دے. سخت زړے (سخت |
| بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيمٍ ﴿١٣﴾ |
| زړے) روستو ددے نه حرامی هم دے. (په شر مشهور دے) (رذیل کارونه کونکے دے) |
| أَنْ كَانَ ذَا مَالٍ وَّبَنِينَ ﴿١٤﴾ إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ |
| (بے نسبه دے). پدے وجه چه دے مال او ځامنو والا دے. کله چه لوستلے شی په دهٔ |

| آیَاتُنَا قَالَ أَسَاطِیرُ الْأَوَّلِینَ ﴿۱۵﴾ |
|---|
| باندے آیتونه زمونږ وائی دے (دا) قصے د پخوانو دی۔ |

**تفسیر:** ربط:

مخکښې د عامو کافرانو د خبرے منلو نه منع وشوه، اُوس په خاصه توګه د مکے د خینے لویو شریانو د خبرے نهٔ منلو نصیحت کیږی، لکه ولید بن مغیره۔ دا صفات ددهٔ وو، او بعض وائی چه دا د اخنس بن شریق وو۔ ظاهر دا ده چه په دغه ټولو کافرانو کښې دغه مرضونه وو۔ د دوی نے لس بد صفات ذکر کړیدی۔

**وَلَا تُطِعْ:** اَیْ فِیْ تَرْكِ الدَّعْوَةِ وَفِی الْاِتِّصَافِ بِتِلْكَ الصِّفَاتِ الذَّمِیمَةِ۔ یعنی د دعوت په پریخودو او د دغه بدو صفاتو په اختیارولو کښې۔

اے زما نبی! ته د هر هغه انسان خبره مهٔ منه چه هغه د باطل د غالب کولو لپاره ډیر ډیر قسمونه خوری، او هغه سپك او عاجز او بدکارے دے، همیشه د نورو عیبونه تالاش کوی، د خلقو ترمینځه د اختلاف پیدا کولو لپاره چغلی کوی، ډیر زیات بخیل دے، یا خلق په اسلام کښې د داخلیدو نه منع کوی، د خلقو په خانونو او د دویٔ په مال او دولت باندے زیاتے کوی، یعنی د ظلم او زیاتی غوښتونکے دے، او کثرت سره ګناه کوی، سخت طبیعت والا، سختی کونکے او بدخویه دے، او دے تمامو صفتونو سره سره هغه قریشی هم نهٔ دے، بلکه دویٔ طرفته منسوب کړے شوے دے۔

**حَلَّافٍ:** مبالغه ده په حالِف کښې یعنی ډیر قسم خور په باطله باندے۔

**مَّهِينٍ:** سپك او ذلیله۔ مهانة په رأی او تمییز کښې کموالی ته وئیلے شی۔ او دا دواړه صفتونه یو ځای ذکر کول کښې اشاره ده چه دا د یو بل سره لازم ملزوم دی، ځوك چه غلط ډیر قسمونه خوری هغه ذلیله وی.

**هَمَّازٍ:** عیب ویونکے د حق پرستو مخامخ او پشی شا۔ همز او لمز چه جدا جدا ذکر شی نو بیا یو شان وی او چه یو ځای ذکر شی، نو بیا ئے فرق کیږی لکه په سورة همزه کښې به راشی۔ ان شاء الله۔

دلته د همّاز نه مراد: غیبت کونکے، بدنامے لګونکے، طعنونه کونکے دے۔

**مَّشَّاءٍ بِنَمِيمٍ:** دا ځلورم صفت دے۔ یعنی ډیر وړونکے دے چغلئ لره۔ یعنی یو بل ته

خبره وړی دپاره د فساد او وراني راوستو. او دهٔ ته نَمَّام او قَتَّات هم وئیلی شي. او په مَشَّاء لفظ کښې مبالغه ده، یعني ګرځیدل ئې همیشه د فساد دپاره دی.

او په روایت د بخاري او مسلم کښې دي چه نَمَّام جنت ته نشي داخلیدے.

او په بل روایت د بخاري او مسلم کښې دي چه په یو شخص باندې عذاب قبر ددې وجه نه وو چه هغه به چغلخوری کوله، او الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته د هغهٔ حال ښکاره کړو.

او دا دوه صفتونه په هغه چا کښې راځي چه ډیر سپك شي، او د خپل نفس قدر ورسره نهٔ وي. نو عیبونه لګول او چغلي د هغهٔ کار شي.

مَنَّاعٍ لِّلْخَيْرِ: ١- یعني ځان هم د خیر نه منع کوي، اکه اسلام، قرآن کښې نهٔ داخلیږي.

٢- یا بخیل دے مال په صحیح ځای کښې نهٔ خرچ کوي، یا خپل اهل او قبیله ئې د اسلام نه منع کړیده. حسنؒ وائي: خلقو ته وائي چه څوك چه په دین د محمد ﷺ کښې داخل شو نو زهٔ به ورته هیڅکله هیڅ فائده نهٔ ورکوم.

مُعْتَدٍ: د الله تعالیٰ د حدودو نه تجاوز کونکے دے. یا ظلم کونکے دے.

أَثِيمٍ: ډیر ګناهګار دے.

عُتُلٍّ: بد ژبانه دے، ١- واحديؒ وائي: اکثر مفسرین وائي:

(هُوَ الشَّدِيدُ الْخُلُقِ الْفَاحِشُ الْخُلُقِ). سخت بد اخلاقه او ناکاره اخلاقو والا)

٢- فراءؒ وائي: هُوَ الشَّدِيدُ الْخُصُومَةِ فِي الْبَاطِلِ. په باطل کښې سخت جګړه کونکے.

٣- هُوَ الْغَلِيظُ الْجَافِيُّ فِي الطَّبْعِ. (زجاجؒ).

سخت بدن او زړهٔ والا، سخت خویه، بے وفاء.

٤- هُوَ الْأَكُولُ الْمَنُوعُ. (الليثؒ). ډیر خوراکي، د بل نه منع کونکے.

٥- يَعْتِلُ النَّاسَ اَیْ يَحْمِلُهُمْ وَيَجُرُّهُمْ اِلٰى مَا يَكْرَهُوْنَ.

په خلقو باندې ناکاره کارونه کونکے لکه جیل او وهل تکول.

٦- اَلْفَاحِشُ اللَّئِيمُ. بے حیاء رذیل / کمینه.

٧- اَلْأَكُولُ الشَّرُوبُ الشَّدِيدُ فِيْ كُفْرِهٖ. ډیر خوراکي، ډیر څکاکي چه په کفر کښې سخت وي.

٧- بنه معنیٰ ئې ده: اَلْغَلِيظُ الْجِسْمِ الْقَاسِيُّ الْقَلْبِ بَعِيْدُ الْفَهْمِ كَثِيْرُ الْجَهْلِ.

سخت بدن والا، سخت زړه والا، په خبره نۀ پو هیدونکے، ډیر ناپو هه. نو ددۀ ژبه ډیره ورانه استعمالیږی نو ځکه ورته بد زبانه ونیلے کیږی.

**بَعْدَ ذٰلِكَ:** یعنی روستو د دغه مخکنو صفاتو نه.

**زَنِیْم:** ۱– مَعْرُوْف بِالشَّرِّ. په شرونو باندے مشهور. (سعید بن جبیرؒ)

۲– قَبِیْحُ الْاَفْعَال. (بد عمله انسان) (د دواړو حاصل یو دے).

۳– مَأْبُوْن. عمل قوم لوط والا. اُبنه یوه بیماری ده چه د یو تن په مقعد کښ خارخ ولګی چه هغه صرف په عمل قوم لوط سره سړیږی.

٤– اَلظَّلُوْمُ. ډیر ظلم کونکے.

٥– دَعِیٌّ مُلْصَقٌ مُسْتَلْحَقٌ بِالْقَوْمِ. بے نسبه چه پلار ئے نۀ وی معلوم. یعنی د قریشو د قوم نه نۀ دے او د هغوی سره ئے ځان په زوره پیوسته کولو. ګویا که ولدِ زنا دے. دا معانی قرطبیؒ، معالم التنزیل او شربینیؒ او فتح البیان ذکر کړیدی.

څوك چه د رسول الله ﷺ پسے خبرے کوی، لیونے ورته وائی نو الله تعالیٰ ورته داسے ردے بدے وائی. او دا قانون دے چه څوك د رسول الله ﷺ او د هغه د سنتو په خلاف وډریږی نو داسے بد صفات به پکښ راځی.

**أَنْ كَانَ:** (۱) دا متعلق دے د لَا تُطِعْ سره یعنی جاهلان خلق د داسے موصوف او د داسے صفاتِ قبیحه ؤ والا سړی اطاعت او تابعداری د هغه د مالدارئ د وجه نه کوی لیکن تۀ د هغه د طاعت نه ځان ساته.

(۲) پدے کښ لام تعلیلی پټ دے، اَیْ لِأَنْ كَانَ، او دا علت دے د روستو لسم صفت دپاره (إِذَا تُتْلٰی عَلَیْهِ) یعنی د قرآن مخالفت د وجه د سرمایه دارئ او د تکبر نه کوی.

(۳) دا د مخکنو ټولو صفتونو دپاره سبب دے. یعنی دا ناکاره صفات پکښ د مالدارئ او د غرور نه پیدا شویدی.

**إِذَا تُتْلٰی:** یعنی د مال او مرتبے او اولاد غرور د الله د آیتونو په دروغژن ګڼړلو او په دے تورلګولو باندے راپارولے دے چه دا قرآن د تیرو شوو قومونو صرف قیصے او حکایات دي.

**أَسَاطِیْرُ:** جمع د اُسْطُوْرَةٌ ده، هغه قصے چه لیکلے شوی وی او اکثر دروغ وی.

| سَنَسِمُهٗ عَلَى الْخُرْطُوْمِ ﴿۱۶﴾ إِنَّا بَلَوْنَاهُمْ |
|---|
| زردے چه وبه داغو دهٔ لره په خرتم (پوزه) باندے۔ یقیناً مونږ ازمیښت کوو په دوی |
| كَمَا بَلَوْنَا أَصْحَابَ الْجَنَّةِ إِذْ أَقْسَمُوْا |
| باندے لکه چه ازمیښت کړے وو مونږ په باغ والو باندے کله چه هغوی قسم وکړو |
| لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِيْنَ ﴿۱۷﴾ وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ ﴿۱۸﴾ |
| چه خامخا پرېکوی به هغه په وخت د صبا کښې۔ او نهٔ ئے جدا کولو (حق د مسکین) |
| فَطَافَ عَلَيْهَا طَآئِفٌ |
| (یا ان شاء الله ئے نهٔ وئیله)۔ نو راغے په هغے باندے د شپے راتلونکے عذاب (اوګرځیدو |
| مِّنْ رَّبِّكَ وَهُمْ نَائِمُوْنَ ﴿۱۹﴾ |
| په هغے باندے یو ګرځیدونکے عذاب) د طرف د رب ستا نه او دوی اودهٔ وو۔ |

**تفسیر** : اُوس دهٔ ته سزا بیانیږی۔ فرمائی : مونږ به دهٔ په تندی او پوزه باندے داسے لویه نښه اولګوو چه تر څو پورے دا ژوندے وی ددے نښے په ذریعه به پیژندلے کیږی، لکه چه هغه کس وی چه د هغهٔ پوزه پریکړے شوے وی، څوك چه هم هغهٔ ته ګوری د هغهٔ د بدشکلئ نه متاثره کیږی۔

عَلَى الْخُرْطُوْمِ : دا پوزے او خرتم ته وئیلے شی، دلته الله تعالیٰ ولید بن مغیره مشابه کړو د یو فیل او خنزیر او ګیدړ سره چه غټ خرتم لری۔ خرطوم ددے درے وارو د پاره استعمالیږی۔

سَنَسِمُهٗ : دا داغ لګول به په کوم ځای کښې وی؟ نو (۱) یو په میدان د محشر کښې چه تول خلق به ورته ګوری۔

مقاتل وائی : مونږ به دهٔ پوزه توره کړو او دا په هغه وخت چه کله اُور ته داخلیږی۔ یعنی الله به په دے ورځ دهٔ په تندی باندے یو داسے بدشکله نښه پیدا کوی چه هغه به د نورو کافرانو نه بیخی جدا پیژندلے کیږی، ځکه چه دهٔ په دنیا کښې د نبی کریم ﷺ سره د تمامو کافرانو نه زیاته دشمنی کوله۔

(۲) فِی النَّارِ۔ په اُور د جهنم کښې۔
(۳) یا به په دنیا کښې پرې عذاب راولي او پوزه به ورله ذلیله کړي۔او سین د استقبال قریب دپاره دے نو په دنیا کښې دغه شان وشوه چه د بدر په ورځ د ولید پوزه زخمي شوه او عار او شرم وربانده همیشه دپاره پاتے شو۔
(٤) ابن جریرؒ ونیلي دي چه دا مجاز دے، او مراد دا دے چه د دغه سړي حال به خلقو ته په دنیا او آخرت کښې ښکاره شي، او هغه د ذلت حال دے لکه چه داغ په پوزه باندے پوره ښکاره کیږي۔
(٥) قرطبيؒ د قتادهؒ نه نقل کړیدي : (سَنُلْحِقُ بِهٖ شَیْنًا لَایُفَارِقُهٗ) چه په دغه سړي باندے به شرم او عار پیوسته شي لکه چه د چا په پوزه ښکاره داغ وي چه نهٔ ترے جدا کیږي۔
(٦) ابو العالیهؒ او مجاهدؒ وائي : (نُسَوِّدُ وَجْهَهٗ، فَنَجْعَلُ لَهٗ عَلَمًا فِی الْآخِرَةِ یُعْرَفُ بِهٖ وَهُوَ سَوَادُ الْوَجْهِ) یعنی مونږ به ددهٔ مخ تور کړو نو ددهٔ دپاره به داسے نښه جوړه کړو چه په هغې به پیژندلے شي چه هغه توروالے د مخ دے۔ (بغوی)
**اِنَّا بَلَوْنَاهُمْ** : پدے کښې د قریشو مشرکانو د ناشکرئ بیان دے، او دغه صفات د یو تن نهٔ وو پدے وجه ئے دلته ضمیر د جمع راوړو۔
**کَمَا بَلَوْنَا**: دا تشبیه په څه کښې ده ؟
(۱) یو فِیْ کُفْرِ النِّعْمَةِ۔ (د نعمتونو په ناشکرئ کښې) چه باغ والا ناشکره وو نو دغه شان دوی هم ناشکره شول، هغوی ته الله تعالیٰ دنیا ورکړے وه او دوی ته ئے لوی نعمت د دین ورکړو چه هغه د محمد رسول الله ﷺ دوی ته راتلل وو، که قریشو او نورو کفارو دا منلے وے نو ډیره لویه ګټه به ئے کړے وے۔
(۲) یا دا تشبیه ده په اِصَابَةُ الْبَلِیَّةِ وَالْقَحْطِ کښې (یعنی د مصیبت او قحط په رسیدو کښې) یعنی په مکے والو باندے الله تعالیٰ په لوږه او قحط سره امتحان وکړو څکه چه رسول الله ﷺ دوی ته ښیرے وکړے تردے چه دوی مردارے او هډوکي وخوړل۔ لکه څنګه چه په باغ والو باندے امتحان راغے د باغ په سوزیدو سره، لیکن باغ والو خو بیرته توبه ویستله مګر د مکے مشرکانو هیڅ توبه ونهٔ ویستله۔
اشاره ده چه څوك د نعمت ناشکري کوي نو الله تعالیٰ به ئے ترے واخلي او محروم به ئے پریدي۔

الله فرمائي : مونږ مکے والو له خپل نعمتونه ورکولو سره دوئ باندے آزمائش کول وغوښتل، دوئ له مو د دوئ د خواهش مطابق مال او دولت، اولاد او اوږد عمر ورکړو، او دوئ مو په خپل حال پريښودل، په دے وجه نۀ چه ګنے دوئ زمونږ خوښ بندګان وو، بلکه د دوئ رسئ مو دوئ ته ورسسته کړه، او دوئ ته ددے احساس هم اونشو، او په کفر او عناد کښ مخکښ وړاندے لاړل، لکه د اهلِ کتابو يا د حبشو هغه خلق چه هغوئ د خپل پلار د مرينے نه پس د يو باغ وارثان شول۔

کله چه د هغے ميوه پخه شوه، نو دوئ په خپلو کښ فيصله اوکړه چه دوئ به سهر وختی ځی او د هر چا د بيداريدو نه مخکښ به ددے ميوه پريکوی، دے دپاره چه هيڅ فقير او مسکين رانشی او دوئ نه صدقه اونۀ غواړی۔ دوئ په دے ګمان کښ مبتلا شول چه اوس د باغ د ميوے حاصلول يقينی شے ګرځيدلے، هيڅ يو شے ددے په لاره کښ رکاوټ نۀ دے،

او دا خبره ترے هيره شوه چه د الله د مرضئ نه بغير هغوئ په هيڅ شئ باندے قادر نۀ دی، دوئ ان شاء الله اونۀ وئيله چه که الله اوغواړی نو مونږ به د خپل باغ ميوه پريکړو۔ چنانچه د الله تعالیٰ يو عذاب شپے د شپے په دے باغ باندے نازل شو، او ټول باغ اوسوزيدۀ او د تيارے شپے پشان تور او ايره شو، او هيڅ هم باقی پاتے نشول۔

**اَصْحٰبَ الْجَنَّةِ**: دا يو باغ وو په زمکه د يمن کښ چه د صنعاء نه دوه فرسخه (يعنی اته ميله) وړاندے دے، او دا واقعه د عيسیٰ عليه السلام د پورته کيدو نه لږه زمانه روستو راغلے ده کله چه په يمن کښ نصرانيت لا نۀ وو خور شوے۔

بعض وائی : دا د حبشو نه څه کسان وو۔ (التحرير)

دا باغ د يو نيک سړی وو چه پدے کښ به فصلونه او انګور او کجورے کيدلے نو کله چه به د هغے ميوه وشوه نو دۀ به راوشوکوله او دا به ئے درے حصے کړه، يوه حصه به ئے کورته يوړه، او يوه حصه به ئے خرڅه کړه، او په باغ به ئے خرڅه کړه، او يوه حصه به ئے مسکينانو ته د الله په نامه ورکړه نو الله به دا باغ ډير مزيدار ساتلو۔

دا صالح سړے چه کله وفات شو نو ددۀ بچی اکثر بد اخلاقه، ناکاره وو، نو دوی وويل چه مونږ د پلار په شان کار پدے باغ کښ نشو کولے، هغه خو کم عقل وو، چه مسکينانو ته به ئے خوراکونه ورکول ځکه چه مال لږ دے او اهل وعيال زيات دے،

صدقے او زکاة ورکولو ته تیار نهٔ یو۔
بیا ئے وویل چه مسکینان خو عادت دی، هغه خو د باغ د شوکولو وخت ته خان رارسوی نو څه به کوو؟ که نهٔ ئے ورکوو شرم دے، نو علاج دا دے چه د شپے به لاړ شو او باغ به راوشوکوو، مسکینان چه نمر خاته خبرېږی مونږ به ټوله میوه کورته رارسولی وی۔ نو دوی بخیلان وو او د الله په نوم ئے څه نهٔ ورکول او د الله په مخلوق ئے شفقت نهٔ کولو۔ لکه همدغه مرضونه د مکے په مشرکانو کښې هم وو۔
نو د دوی د ورتللو نه مخکښې مخکښې الله تعالیٰ په دغه باغ باندے اُور راولیږلو چه ټول باغ ئے وسوزیدو، تک تور میدان ترے جوړ شو، دوی چه ورغلل نو حیران شو وے ویل چه مونږ نه لاره خطاء شوه نو نیک سړی پکښې وویل چه لاره مو نهٔ ده خطاء کړے بلکه د الله عذاب درباندے راغلے دے۔
آیا ما تاسو ته نهٔ وو وئیلی چه ان شاء الله ووایئ او د الله حق مهٔ خورئ او دا گناه مهٔ کوئ، نو هغوی ټول په خپل دے عمل باندے خپیمانه شول او الله ته ئے توبه وېستله۔ او دا عذاب د دوئ دپاره د خیر ذریعه وګرزیده۔
عبد الله بن مسعود ﷺ فرمائی: الله تعالیٰ دوی ته د رشتینی توبے په وجه ددے باغ په بدل کښې داسے مزیدار باغ د انګورو ورکړو چه د هغے نوم الحیوان وو۔
(یَحْمِلُ الْبَغَلُ مِنْهَا عُنْقُوْدًا وَاحِدًا)
یو عنقود (غونچك/خوشه) د انګورو به یو قچر وړله۔ (په توبے سره الله تعالیٰ بیرته زاړه نعمتونه راواپس کوی)۔ (البحر المحیط ۳۱۳/۸ والبغوی والقرطبی)
إِذْ أَقْسَمُوا: یعنی په دوی کښې اکثرو قسم وکړو۔ سوئ د یو غوره ورور نه۔
ابن عاشورؒ لیکی: چه دوی قسمونه ددے دپاره وکړل چه دوی په ځان باندے دا عمل ضروری کړی، او ددے وجه دا ښکاره کیږی چه په دوی کښې یو تن د دوی په موافقت کښې شکی وو، نو دوی هغه ځان سره د قسم په زور شریکول غوښتل۔ لکه د روستو (قَالَ أَوْسَطُهُمْ) نه معلومیږی۔
لَيَصْرِمُنَّهَا مُصْبِحِينَ: صرم د فصل او میوے پریکولو ته وئیلے شی، او صرم هغه کوری ته وئیلے کیږی چه د چیلئ او سخی (د پیځ رودونکی بچی) په خوله باندے تړلے کیږی دے دپاره چه د مور نه پیځ نه روی۔

او صرماء : هغه صحراء ته وائي چه اُوبه پکښ وچې شوي وي، او هغه اُوښے ته وائي چه پئ ترينه وچ شوي وي، نو پدے لفظ کښ معنی د منع پرته ده۔ او اشاره ده چه د دوی دا پریکول په وخت د صبا کښ په نیت د منع کولو سره وو د مسکینانو نه۔

مُصْبِحِيْنَ: دَاخِلِيْنَ فِیْ وَقْتِ الصَّبَاحِ۔

یعني په داسے حال کښ په وخت د صبا کښ داخلیدونکي وي۔

وَلَا يَسْتَثْنُوْنَ: ۱- ددے مشهوره معنی دا ده چه دوی ان شاء الله نهٔ وئیله په خپل قسم کښ، نو ځکه الله په خپل قسم کښ حانث کړل۔ (ابن کثیرؒ)۔

ابن عاشورؒ وائي : دوی د خپل ځانونو د قوت په وجه په غرور کښ راغلي وو کله چه به ئے د یو کار د کولو عزم کولو نو د هغے څه مانع به ئے په زړه کښ نهٔ تیریدو۔

(التحریر والتنویر)

۲- عکرمهؒ وائي : نهٔ ئے جدا کولو حق د مسکینانو۔ (یا دوی عزم وکړو چه ټول به پریکوو او لږ به هم ترے نهٔ پریدو- ابن عاشورؒ)

۳- لَا يَثْنُوْنَ عَزْمَهُمْ عَنِ الْحِرْمَانِ۔ دوی خپل عزم او اراده د مسکینانو د محرومولو نه نهٔ اړوله۔ (فتح البیان)

٤- ابو صالحؒ وائي : چه سبحان الله ئے نهٔ وئیله۔

فَطَافَ عَلَيْهَا طَائِفٌ : طائف، اَلْاَمْرُ اللَّيْلِیُّ ته وئیلے شي، یعني د شپے چه کوم عذاب راځي هغے ته طائف وائي۔ او عَلٰی کښ د تسلط او نزول معنیٰ ده، یعني د هر طرف نه پرے دغه عذاب راغلو چه هیځ ئے پرینخودل۔

| فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيْمِ ﴿۲۰﴾ فَتَنَادَوْا مُصْبِحِيْنَ ﴿۲۱﴾ |
|---|
| نو اُوګرځیدو باغ پشان د ایرو۔ نو آوازونه ئے اُوکړل یو بل ته د صبا په وخت کښ۔ |
| أَنِ اغْدُوْا عَلٰى حَرْثِكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَارِمِيْنَ ﴿۲۲﴾ فَانْطَلَقُوْا |
| چه سحر وختي لاړ شئ پټي خپل ته که چرته تاسو پرے کونکي يئ۔ نو لاړل دوی |
| وَهُمْ يَتَخَافَتُوْنَ ﴿۲۳﴾ أَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا الْيَوْمَ عَلَيْكُمْ |
| او دوی پټے پټے خبرے کولے۔ (هسے نه) چه داخل نشي دے باغ ته نن په تاسو باندے |

| مِّسْكِيْنٌ ﴿٢٤﴾ وَّغَدَوْا عَلٰى حَرْدٍ قٰدِرِيْنَ ﴿٢٥﴾ فَلَمَّا رَاَوْهَا |
|---|
| مسکین. او سحر وختی لاړل په غصے سره ځان ئے قادر ګڼړلو. نو هرکله چه دوی |
| قَالُوْٓا اِنَّا لَضَآلُّوْنَ ﴿٢٦﴾ بَلْ نَحْنُ مَحْرُوْمُوْنَ ﴿٢٧﴾ |
| اُولیدو باغ وے وئیل یقیناً مونږ خامخا لاره خطا کونکی یو. بلکه مونږ محرومه کړے شو. |

**تفسیر**: فَأَصْبَحَتْ كَالصَّرِيمِ: صریم ۱- رماد (تورو ایرو) ته وئیلے شي.

او صریم د اضدادو نه دے، ورځ او شپے دواړو ته وئیلے شي.

۲- نهار تـه هم وئیلے شي یعنی داسے صفا شو لکه د سپینے ورځے په شان. اخفش ئے داسے معنیٰ کوي: وګرزیده په شان د پریکړے شوے صبا د شپے نه.

۳- كَاللَّيْلِ الْمُظْلِمِ. لکه د تورے شپے په شان.

٤- كَالرَّمْلَةِ لَا يَنْبُتُ عَلَيْهَا شَيْءٌ يُنْتَفَعُ بِهِ. (مؤرج)

په شان د میدان د شړو چه په هغے باندے فائده مند شے نهٔ زرغونیږي.

٥- یا صریم هغه اُونه ده چه د هغے نه میوے پریکړے شي یا فصل لَو کړے شي.

فَتَنَادَوْا: د باغ د انجام نه ناخبره، دوئ یو بل ته سهر وختی آواز اوکړو، او وے وئیل چه که تاسو د خپل باغ میوه حاصلول غواړئ نو زر زر هلته لاړ شئ. نو دغه خلقو خپلو کښ پټے پټے خبرے کولے او روان وو، دے دپاره چه کوم فقیر او محتاج پو هه نشي او دوئ پورے اونهٔ نښلی څنګه چه د دوئ د پلار په زمانه کښې به کیدل. یعنی د دوئ نیت خراب شو، دوئ په دے مال سره د الله تعالیٰ حق اداء کول ونهٔ غوښتل.

اَنِ اغْدُوْا: وختی لاړ شئ.

عَلٰى حَرْثِكُمْ: پدے لفظ کښې اشاره ده چه دوی وئیل چه کرونده مونږ کړے ده، مونږ پکښې محنت کړیدے، دا هر څه خو زمونږ دی نو پدے کښې د الله تعالیٰ حصه په مونږ باندے واجب نهٔ ده.

فَانْطَلَقُوْا: کـلـه چه راجـمـع شو نو اُوس باغ ته روانیږی په داسے طریقه چه مسکینان ترے خبر نشي، لکه چه غلا له ځي.

اَنْ لَّا يَدْخُلَنَّهَا: دا تـفسیر د تـخافت (پټے خبرے) کولو دے. یعنی دوی دا خبره پټه

کولـه. یـا لام اجلیـه پـټ دے، او دا د پټـو خبـرو کـولـو علت دے. او مطلب دا دے چه مسکین له د داخلیدو موقعه او قدرت ورنکړئ اګرکه هغه به داخلیدل غواړی.

**وَغَدَوْا:** یـعـنـی دا خلق باغ طرفته په تیزئ، غصه او په دے پخه اراده لاړل چه فقیرانو تـه بـه هـیـڅ کـلـه ورکـړه نهٔ کـوئ. دوئ د خپل خیال مطابق د پلار د مړینے نه پس په دے خبره قادر شوی وو چه ددیے نه به د الله په نوم هیڅ برخه نهٔ اوخکلے کیږی.

**عَلٰی حَرْدٍ:** دا ډیرو معانو ته شامل دے. ١- اَلْغَضَبُ. ٢- وَالْمَنْعُ ٣- وَالْقَصْدُ.

یعنی په غصه سره، په منع کولو سره، په قصد او اراده کولو سره.

٤- عَلٰی حَاجَةٍ وَّفَاقَةٍ. دوی په خپل حاجت او فاقے سره لاړل.

٥- بعض وائی : حرد اِنفراد (ځانله کیدو) ته وائی.

٦- او بـعـض وائـی چـه دا د بـاغ نـوم وو یـا د هـغـه مـکـان نوم وو. مخکنی ټول اقوال صحیح دی.

**قَادِرِیْنَ:** د قـدر نـه دے، اندازے ته وائی. ١- یعنی دوی اندازه لګونکی وو د خپل کار په خپل ګمان. (یعنی چه دومره وخت کښ به ئے راپریکړو) (الفراءٔ)

٢- یا قادرین : ځان قدرت والا ګنړونکی وو. (قتادهٔ)

٣- د قـدر نـه دے تنګئ ته وائی. اَیْ مُضَیِّقِیْنَ عَلَی الْمَسَاکِیْنِ. یـعـنـی په مسکینانو باندے تنګی راوستونکی وو.

**فَلَمَّا رَاَوْهَا :** کـلـه چه دوئ باغ سوے وموندلو، نو یو بل ته ئے ووئیل چه دا زمونږ باغ نـهٔ دے، مـونـږ لاره ورکـه کـړه او بل خوا ته لاړو، لیکن حقیقت کله بدلیدے شی، د دوئ یـقـیـن راغـے چه د دوئ باغ سوزیدلے دے، اُوس دوئ ته فورًا دا احساس اوشو چه زمونږ د بـد نیـتـئ او د مسـکـیـنـانـو د حق نهٔ ورکولو د بدے ارادے په وجه الله تعالیٰ مونږ د خپل نعمت نه محرومه کړو، او زمونږ د باغ دا حال شو.

زمـونـږ پـلار بـه د الله د شکر په توګه هر کال د باغ د میوے نه د فقیرانو حق اوخکلو، او په هغوئ به ئے تقسیمولو، نو الله تعالیٰ د هغهٔ د باغ حفاظت کولو.

**لَضَآلُّوْنَ :** یـعـنـی دوی د ډیـرے حیـرانتیا او تعجب د وجه نه دا خبره بعیده ګنړله چه د دوی باغ دِے په داسے حال وی. نو وے وئیل چه مونږ لاره خطاء کړه.

**بَلْ نَحْنُ :** بیـا ئـے د سـوچ نـه روستـو یـقـیـن راغے چه مونږ محرومه شو په سبب د دغه

گناه.

| |
|---|
| قَالَ أَوْسَطُهُمْ أَلَمْ أَقُل لَّكُمْ لَوْلَا تُسَبِّحُونَ ﴿٢٨﴾ قَالُوا |
| وویل غوره د دوی نه آیا نهٔ وو وئیلی ما تاسو ته ولے پاکی نهٔ وایئ (د الله). وویل |
| سُبْحَانَ رَبِّنَا إِنَّا كُنَّا ظَالِمِينَ ﴿٢٩﴾ فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ |
| دوی پاکی ده رب زمونږ لره یقیناً مونږ ظالمان یو. نو رامخامخ شو بعض د دوی په |
| بَعْضٍ يَتَلَاوَمُونَ ﴿٣٠﴾ قَالُوا يَا وَيْلَنَا إِنَّا |
| بعضو باندے یو بل ئے ملامته کول. اُووئیل دوی هائے افسوس دے یقیناً مونږ |
| كُنَّا طَاغِينَ ﴿٣١﴾ عَسَىٰ رَبُّنَا أَن يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَا |
| سرکشان وو. امید دے چه رب زمونږ به په بدل کښې راکړی مونږ ته غوره ددے نه |
| إِنَّا إِلَىٰ رَبِّنَا رَاغِبُونَ ﴿٣٢﴾ كَذَٰلِكَ الْعَذَابُ |
| یقیناً مونږ رب خپل ته رغبت (مینه) کونکی یو. دغسے عذاب وی (په ناشکرو) |
| وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ﴿٣٣﴾ |
| او خامخا عذاب د آخرت ډیر لوئی دے که چرته دوی پو هیږی. |

**تفسیر** : په دے ورونو کښې چه کوم زیات صاحبِ تقوی او صاحبِ عقل وو، خپلو نورو ورونو ته مخاطب شو، وے وئیل : ما تاسو ټولو ته نصیحت کړے وو چه تاسو د خپلے بد نیتئ نه توبه کړئ، د الله د یاد نه غافله مهٔ جوړیږئ، او د هغهٔ حق مهٔ هیروئ، او یاد لرئ چه الله د مجرمانو نه په بدلے اخستلو باندے په پوره توګه قادر دے.

چنانچه ټولو د خپلے غلطئ اقرار اوکړو، د الله په حضور کښې ئے توبه کړه، او وے وئیل چه زمونږ رب د تمامو عیبونو او نقصانونو نه پاك دے، مونږ په خپلو ځانونو ظلم کړے. دے نه پس ئے یو بل ملامته کول چه که مونږ مسکینانو لره د دوئ د حق نه د محروم کولو بد نیت نهٔ وے کړے، او د الله قدرت هیرولو سره مو د خپل قدرت اظهار نهٔ وے کړے، نو نن به مو دا ورځ نهٔ وے لیدلے. هائے افسوس چه مونږ په غفلت او ناپو هئ

کښې د الله د حدودو نه تجاوز کړے وو۔

اَوْسَطُهُمْ: اوسط په معنیٰ د غوره دے د دوی نه په عقل او رأی کښې۔

اَلَمْ اَقُلْ لَّکُمْ : دا دلیل دے چه دغه یو وررور دوی ته د تسبیح وئیلو دعوت ورکړے وو لیکن دوی هغه ونهٔ منلو مګر بیا هغه هم د دوی نه براء ت ونکړو نو د هغه په حصه باندے هم عذاب راغے۔

لَوْلَا تُسَبِّحُوْنَ : د تسبیح نه مراد ان شاء الله وئیل دی۔ او دے ته ئے تسبیح ووئیله ځکه چه په ان شاء الله کښې د الله تعظیم او د هغهٔ اقرار دے۔

مجاهدؒ او ابو صالحؒ وائی : چه د هغوی ان شاء الله تسبیح وه۔ یعنی الله پاك دے ددے نه چه د هغهٔ په بادشاهئ کښې هغه کار وشی چه د هغهٔ اراده نهٔ وی۔

او بعض مفسرین وائی چه تسبیح نه مراد الله تعالیٰ پاك کنړل دی د شریکانو نه نو دوی د توحید فی البرکات نه انکار کونکی وو نو د شرك په وجه سره په دوی باندے دا عذاب راغے۔

قَالُوْا سُبْحَانَ رَبِّنَا: اُوس ئے د الله پاکی ووئیله۔ یعنی الله تعالیٰ د هر قسم شریك او نسبت د ظلم نه پاك دے۔

کُنَّا ظَالِمِیْنَ: یعنی الله چه زمونږ باغ هلاك کړو نو هغه په مونږ ظلم نهٔ دے کړے بلکه مونږ د خپلو ځانو سره ظلم کړیدے۔ دوی د خپل جرم اقرار وکړو او د خپل جرم اقرار کول توبه ده، لیکن اُوس فائده نهٔ ورکوی، کله چه مجرم راګیر شی البته په آینده کښې فائده ورکوی۔

فَاَقْبَلَ : پدے کښې د دوی ډیرے عاجزئ او خضوع کولو ته اشاره ده په توبه کولو سره ځکه چه هر یو د دوی نه د جرم اقرار وکړو۔

یَتَلَاوَمُوْنَ: یعنی یو بل ئے ملامته کول چه تا مشوره راکړے وه چه مسکینان به منع کوو۔ او د دوئ ډیرے عاجزئ ته اشاره ده په توبه کولو سره۔ ځکه چه هر یو د جرم اقرار وکړو۔

قَالُوْا یَا وَیْلَنَا: دا نوره مبالغه ده په اقرار د جرم او په توبه کولو کښې۔ یعنی یو بل ته ئے ووئیل چه یو بل څه له ملامته کوو، خو دا ټول کارونه په مونږ کښې وو۔ باغ خو هلاك شو خو پدے خفه یو چه د الله نافرمانی او سرکشی مو ولے کړیده۔

## د طغیان او ظلم فرقونه

طَاغِیْنَ: فرق د طغیان او ظلم دا دے چه ظلم شرك او نورو گنا هونو كولو ته وائی، او طغیان: د مسكینانو حق منع كولو ته وائی۔

❁ یا ظلم دا دے چه د مسكینانو حق ئے خوړلو، او طغیان دا دے چه د الله د امر نه اوړیدلی وو۔ او ان شاء الله ئے نهٔ وئیله۔

❁ یا ظلم دا دے چه خپل حق مو تباه كړو او طغیان دا دے چه د مسكینانو حق مو هم ختم كړو۔

یا ظلم دا دے چه مونږ د مسكینانو حق منع كولو، او طغیان دا دے چه د الله ددے نعمت ناشكري مو كوله۔

عَسَى رَبُّنَا أَنْ يُبْدِلَنَا: كله چه دوئ د خپلے گناه نه توبه كړه او آینده لپاره ئے الله سره وعده وكړه چه بیا به داسے غلطی نهٔ كوی، نو د خپل رب نه ئے بنهٔ امید وكړو، او وے وئیل چه الله به مونږه د خپل رحمت نه محرومه نهٔ كړی، او ددے نه به بنهٔ باغ مونږ له راكړی۔ مونږ د خپل رب نه همدا امید لرو۔

عَسَى رَبُّنَا: دا جمله خبریه ده لیكن مقصد په كښې دعا كول دی، او دے نه معلومیږی چه توبه د آینده دپاره ډیره فائده وركوی چه الله تعالیٰ زاړه نعمتونه بیرته راواپس كوی۔ او پدے كښې دعوت دے توبے ته چه هسے ارمانونه او افسوسونه څه له كوئ بلكه علاج موجود دے، راشئ توبه وباسئ الله به مو گناه معاف كړی۔

پدے كښې دعوت دے قریشو ته چه اُوس هم دوی ته موقعه شته چه د خپلے سركشئ نه توبه وباسی۔

رَاغِبُونَ: یعنی الله تعالیٰ ته په زړه باندے رجوع كوو او بیا عمل كوو۔ او هركله چه دوی په دے توبه كښې رشتینی وو نو الله ورته غوره باغ وركړو۔

او ابو خالد الیمانیؒ وائی: زهٔ دغه باغ ته ننوتم نو ما په هغے كښې هریو غونچك داسے ولیدو لكه یو ولاړ تور انسان۔ (التحریر والقرطبی وفتح البیان)

كَذَلِكَ الْعَذَابُ: ١- اَیْ سَیَنْزِلُ عَلٰی هٰؤُلَاءِ۔

یعنی دغه شان عذاب به پدے موجوده كافرانو ناشكرو باندے هم راولیږی، قحطونه او

پریشانئ به پرے راولی۔
۲- كَذٰلِكَ الْعَذَابُ لِمَنْ عَصَانِیْ ۔ دغه رنګ عذابونه زۀ ورکوم هغه چا ته چه زما نافرمانی کوی۔
وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ: یعنی عذاب د مکے والو صرف په دنیا کښں نۀ دے بلکه چه توبه نۀ وباسی نو په آخرت کښں هم عذاب دے۔
یا عام دے لکه څنګه چه باغ والو ته په دنیا کښں عذاب ورکړے شو چه باغ ئے هلاك شو نو که څوك داسے عمل کوی، او توبه نۀ وباسی نو د هغوی دپاره په دنیا کښں هم عذاب دے او په آخرت کښں هم۔
لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ: لو شرطیه دے جزاء پټه ده۔ اَیْ لَمَا عَصَوْا رَبَّهُمْ۔ یعنی دوی به د خپل رب عصیان نۀ کولے۔
❁ اوددے قصے نه دا خبره ثابتیږی چه زکاة او عشر ورکول واجب دی،
❁ او ورسره مسکینانو ته د خپل فصل او باغ نه څه نا څه برخه ورکول ضروری دی، که دا نۀ وی الله تعالیٰ سزا ورکوی۔ دا بیا د نعمت ناشکری ده۔
❁ او دا دلیل دے چه څوك د کال د پوره کیدو نه مخکښں د نصاب نه څه شے کم کړی دے دپاره چه د زکاة نه وتښتی نو دا ناروا ده۔
نو کوم خلق چه د زکاة د ادا کولو نه ځان په حیلو سره بچ کوی لکه بعض علماؤ حیلے د اسقاطِ زکاة یا اسقاطِ شفعه دپاره لیکلے دی نو دا غلطے دی، د الله حکمونه د ځان نه اړول دی۔ (قاسمیؒ وابن عاشورؒ)

| إِنَّ لِلْمُتَّقِيْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿۳۴﴾ أَفَنَجْعَلُ |
|---|
| یقیناً متقیانو دپاره په نیز د رب د دوی جنتونه د نعمتونو دی۔ آیا کړخوو به مونږ |
| الْمُسْلِمِيْنَ كَالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۳۵﴾ مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۶﴾ أَمْ لَكُمْ |
| مسلمانان پشان د مجرمانو۔ څه وجه ده تاسو لره څنګه فیصله کوئ۔ آیا تاسو لره |
| كِتٰبٌ فِيْهِ تَدْرُسُوْنَ ﴿۳۷﴾ إِنَّ لَكُمْ فِيْهِ لَمَا |
| کتاب شته چه په هغے کښں لوستل کوئ۔ یقیناً تاسو لره په هغے کښں خامخا هغه |

| تَخَيَّرُوْنَ ﴿۳۸﴾ أَمْ لَكُمْ أَيْمَانٌ عَلَيْنَا |
|---|
| څه دي چه تاسو ئے خوښوئ. آیا تاسو لره شته قسمونه په مونږ باندے چه |
| بَالِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِنَّ لَكُمْ لَمَا |
| رسیدونکی وی تر ورځے د قیامت پورے چه یقیناً تاسو لره خامخا هغه څه دی |
| تَحْكُمُوْنَ ﴿۳۹﴾ سَلْهُمْ أَيُّهُمْ بِذٰلِكَ زَعِيْمٌ ﴿۴۰﴾ |
| چه تاسو ئے فیصله کوئ. تپوس وکړه د دوی نه چه کوم یو د دوی پدے خبره ذمه وار دے. |

**تفسیر**: کله چه د کافرانو او سرکشانو د قیامت په ورځ هغه انجام شو کوم چه پورته بیان شو، نو اوس د قرآن کریم د عامے قاعدے مطابق د نیکانو او پرهیزګارانو انجام بیانولے شی، او دوی ته زیرے ورکوی او دا خبره بیانوی چه که دے کافرانو سره مالونه دی نو تاسو له الله تعالیٰ جنتونه درکوی.

دارنګه دلته په هغه مشرکانو باندے رد هم شوے چه هغوئ به په غریبانانو مسلمانانو پورے توقے کولے او خپل ځان له د دروغو تسلی ورکولو لپاره به ئے وئیلے چه که بالفرض قیامت راشی نو زمونږ الله به مونږ له په قیامت کښ هم ددے وګو او بربنډو نه ښهٔ حالت کښ ساتی، لکه څنګه چه هغهٔ مونږ له دلته مال او دولت راکړے دے.

الله تعالیٰ وفرمایل چه د الله نه یریدونکو مسلمانانو ته به د قیامت په ورځ د دوئ د رب سره داسے جنتونه ملاوېږی چه په هغے کښ به سراسر نعمتونه وی.

**أَفَنَجْعَلُ الْمُسْلِمِيْنَ**: هرکله چه متقیانو ته د الله تعالیٰ د طرفنه د جنتونو اعلان وشو نو هغوی د کمزورو مؤمنانو پورے استهزاء (توقے) شروع کړے، استهزاء ئے دا وه چه اول خو جنتونه نشته، دا هسے دوکه ده، بیا به ئے دا وئیل چه که آخرت راشی نو دا بلال او صهیب او عمار (رضی الله عنهم) به جنت ته ځی او مونږ به نهٔ ځو، دا نشی کیدے، بلکه (لَنَدْخُلَنَّ قَبْلَهُمْ) مونږ به ضرور د دوی نه مخکښ جنتونو ته روان یو. ځکه چه مونږ الله ته ګران او محبوب یو چه دنیا ئے راکړیده نو جنت ته به هم راکوی.

او دوی به دلته هم غریبانان وی، او هلته به هم دغه شان غریبانان وی. نو دا د دوئ د غرور او تکبر خبرے وے.

نو دلته الله تعالیٰ په دوی باندے ځلور ردونه کوی چه دا نظریه ستاسو غلطه ده، او دا تاسو هسے خوب وینئ، هیڅ حقیقت ئے نشته. ځکه چه ستاسو صفاتو کښ فرق دے چرته مسلم او چرته مجرم دواړه نشی برابریدے، نو الله دواړه څنګه جنت ته بوځی، بله وجه دا ده چه آیا تاسو سره کوم کتاب شته چه په هغے کښ الله لیکلی وی چه مشرکان به الله تعالیٰ سره د شرك نه جنت ته بوځی. یا که کتاب نۀ وی نو آیا الله کوم خاص کښ وعده کریده چه الله رب العالمین به قسم سره وئیلی وی چه قسم په الله اے قریشو مشرکانو! تاسو جنتیان یئ او دا قسم الله نۀ ماتوی، پابندی پرے کوی.

څلورمه وجه: آیا ستاسو د کوم معبود دا طاقت شته چه هرکله الله تعالیٰ مسلمانان جنت ته بوځی او هغه تاسو راکاږی او جنت ته مو بوځی، لکه څنګه چه الله طاقتور ذات دے نو ستاسو معبودانو کښ هم دغه شان طاقت وی.

مطلب دا شو چه د جنت د داخلیدو دا ځلور لارے دی:

(۱) یا خو د مسلمان په شان صفت ځان کښ پیدا کړئ.

(۲) یا به الله خپل کتاب کښ دا خبره لیکلی وی.

(۳) یا به الله تا سره لوظ کړے وی،

(٤) یا به ستاسو طاقتور معبود وی چه تاسو په زوره جنت ته بوځی. او تاسو کښ دا تولے خبرے نشته، دا لا څه چه قیامت کښ به دومره پریشانه شئ چه تاسو به سجدے ته راوبللے شئ نو د سجدے طاقت به نۀ لرئ.

**اَفَنَجۡعَلُ الۡمُسۡلِمِيۡنَ**: پدے کښ هغه قاعده ده چه الله تعالیٰ جمع بین المتناقضین نۀ کوی ځکه چه اسلام او جرم کښ تناقض دے ځکه چه مجرم کافر دے او مسلم د کافر متناقض دے، نو هرکله چه اسلام او کفر نۀ جمع کیږی نو دغه شان ددے نتیجه هم یوه نشی کیدے چه هغه جنت دے.

**مَا لَكُمۡ كَيۡفَ تَحۡكُمُوۡنَ**: یعنی دا خو ډیره غلطه فیصله ده چه زۀ مسلم او مجرم یو شان کړم، او دواړه جنت ته داخل کړم، ددے خو مطلب دا جوړیږی چه الله ته به تور او سپین، دوست او دشمن، ښه او بد یو شان ښکاره کیږی، پدے کښ خو الله تعالیٰ ته ډیر سخت د عیبونو نسبت راځی، نۀ بلکه الله ته ښۀ ډیر ښۀ ښکاره کیږی، او کفر ئے ډیر بدی شی چه دومره انسانانو ته ښه ډیر ښه او بد ډیر بد نۀ ښکاره کیږی. الله د دواړو

ترمینځ دیر تمییز کوی۔
أَمْ لَكُمْ كِتَابٌ: یعنی ستاسو کوم کتاب شته چه تاسو د هغے درس کوئ۔
تَدْرُسُونَ: دا کنایه ده ددے نه چه څوك د یو کتاب درس کوی نو په هغے باندے ښه پوهه شوے وی۔
إِنَّ لَكُمْ: یعنی په هغه کتاب کښ دا خبره وی چه خامخا ستاسو دپاره به هغه شے وی او تاسو ته به درکولے شی چه تاسو ئے خان له غوره کوئ چه هغه جنت دے۔
تَخَيَّرُونَ: اَیْ تَخْتَارُوْنَهٗ لِاَنْفُسِکُمْ۔ یعنی چه تاسو ئے خان له غوره کوئ۔
أَمْ لَكُمْ أَيْمَانٌ عَلَيْنَا بَالِغَةٌ : د عربو عادت به دا وو چه کله به ئے وعده کوله نو په هغے کښ به ئے قسم کولو چه قسم په الله دا کار به کوم۔ ایمان کنایه ده د وعدے نه۔ خو هغے سره قسم ملګرے دے۔
أَمْ عَلَيْنَا: اَیْ هَلْ حَلَفْنَا لَکُمْ ۔ یعنی آیا مونږ تاسو ته چرته قسم کړیدے او لوظ مے درسره کړیدے۔
بَالِغَةٌ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ : قسمونه دوه قسمه دی (۱) یو هغه قسم دے چه انسان ئے وکړی او بیرته ئے مات کړی، او د هغے کفاره ورکړی۔
(۲) او بعض هغه قسم وی چه انسان ئے هیڅکله نۀ ماتوی۔ نو الله فرمائی چه آیا ما داسے قسم کړیدے چه زۀ ئے نۀ ماتوم۔ [لَا نَخْرُجُ مِنْهَا وَلَا نَتَحَلَّلُ مِنْهَا اِلٰی یَوْمِ الْقِیَامَةِ] چه نۀ به ددے قسم نه وځم او نۀ به ترے خان حلالوم تر قیامته پورے لکه انسان د قسم نه په کفارے ورکولو سره وځی۔
إِنَّ لَكُمْ لَمَا تَحْكُمُونَ : یعنی چه وی به ستاسو دپاره هغه شے چه تاسو ئے فیصله کوئ نو پدے کښ د نفی معنیٰ ده، یعنی داسے هیڅکله نشته۔ تۀ خو به دا فیصله کوے چه الله ما سره لوظ کړیدے لیکن دا د الله د طرفنه هیڅکله نشته۔ او دا فیصله ستا غلطه ده۔
سَلْهُم: که دوی induced ووائی چه دا قسمونه مونږ سره الله تعالیٰ کړیدی نو الله خپل نبی ته فرمائی : تۀ د دوی نه تپوس وکړه چه کوم یو ددوی نه پدے قسم باندے ذمه وار دے، چه هغه ذمه واری واخلی چه زۀ به ئے درته وښایم چه الله په فلانی ځای کښ قسم کړیدے راشه دا وګوره۔ نو هغه ځای مونږ ته وښایئ۔ آیا دے انسان الله لیدلے دے، یا ئے د الله

خبرے آوریدلی دی، هغه دِے وښائی۔ دا یو هم نشته۔ نو کیدے شی چه د دوی په باباګانو او باطلو معبودانو باندے توکل وی نو الله هغه هم رد کوی فرمائی :

| أَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَائِهِمْ إِنْ كَانُوا صَادِقِينَ ﴿۴۱﴾ |
|---|
| آیا دوی لره شریکان شته نو رادِے ولی شریکان خپل که چرته رشتینی یئ۔ |
| يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ وَيُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ |
| په کومه ورځ چه لرے به کړے شی پرده د پنډئ نه او راوبه بللے شی سجدے ته |
| فَلَا يَسْتَطِيعُونَ ﴿۴۲﴾ خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ |
| نو طاقت به نۀ لری۔ ذلیله به وی سترګے د دوی، پټ کړی به وی دوی لره ذلت |
| وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُودِ وَهُمْ سَالِمُونَ ﴿۴۳﴾ |
| (دپاسه به راغلے وی په دوی ذلت) او یقیناً وو دوی چه رابللے به شو سجدے ته او دوی به روغ وو۔ |

**تفسیر: أَمْ لَهُمْ شُرَكَاء** : آیا د دوی لره معبودان شته (شرکاء د معبودانو دپاره نوم ګرځیدلے دے ځکه ئے نسبت یو ته هم نۀ دے کړے نۀ الله ته او نۀ مشرکانو ته) او ددے سره دا مراد دے : [يُدْخِلُوْنَهُمُ الْجَنَّةَ] یعنی آیا داسے شرکاء شته چه دوی جنت ته بوځی، لکه څنګه چه دوی ئے وائی۔

**فَلْيَأْتُوا بِشُرَكَائِهِمْ** : یعنی په دنیا کښ دِے خپل معبودان راولی چه هغوی اقرار وکړی یا دِے په آخرت کښ راولی بلکه د آخرت خو ډیره هیبتی ورځ ده، چه په دوی باندے به رپ رپے لګیدلے وی، نو په هغه ورځ د دوی جنت ته داخلیدل نا ممکن دی۔

**يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ** : مخکښ د مشرکانو دلیل رد کړے شو نو اُوس دوی ته تخویف بیانوی۔ (یعنی په هغه ورځ چه پرده به لرے کړے شی د پونډئ نه)

د اکثرو اهل علمو په نیز باندے کشف الساق کنایه ده د شدت نه۔

لکه عرب وائی : كَشَفَتِ الْحَرْبُ عَنْ سَاقِهَا۔ اَیْ اِشْتَدَّتْ۔

جنګ د خپلے پونډئ نه پرده لرے کړه یعنی سخت شو۔ لکه څنګه چه سخته ډیره

شي نو خلق پېنځې بدې کړي او منډه وهي۔

نو دلته مطلب دا دے چه کله سخت شدت او هول (ېره) راشي په قيامت کښې۔ په قيامت کښې ډېر هيبتي احوال راځي۔ او مطلب دا دے چه په تاسو باندې هيبتي احوال راتلونکي دي، جنتونه ستاسو دپاره نشته۔

او په حديث د بخاري کښې چه کوم کشف الساق راغلے دے نو هغه د متشابهاتو نه دے۔ په حديث د بخاري کښې دي: چه کله د قيامت ورځ شي نو الله به انسانانو ته حکم وکړي چه چا په دنيا کښې د چا عبادت کړے وي نو هغه دې د خپل معبود پسے روان شي نو يهود او نصارىٰ او مشرکان به اُور ته وغورزولے شي، نو دا امت به پاتے شي چه پدے کښې به منافقان هم وي۔ نو الله به ورته په يو صورت کښې راشي چه د خپل صورت نه ئے علاوه دے، ورته به ووائي چه زۀ ستاسو رب يم، نو دوي به د الله پورے پناهي طلب کړي، الله به ورته وفرمائي چه آيا تاسو الله پيژنئ؟ ستاسو او د الله ترمينځ څه نخه شته؟ نو دوي به ووائي چه آؤ، ساق (پونډئ) ده۔

(فَيَكْشِفُ عَنْ سَاقِهٖ فَيَسْجُدُ لَهٗ كُلُّ مُؤْمِنٍ وَيَبْقٰى مَنْ كَانَ يَسْجُدُ لِلّٰهِ رِيَاءً وَسُمْعَةً فَيَذْهَبُ كَيْمَا يَسْجُدَ فَيَعُوْدُ ظَهْرُهٗ طَبَقًا وَاحِدًا)

نو الله به پرده لرے کړي د پنډئ خپلے نه نو هغۀ ته به هر مؤمن په سجده پريوزي او پاتے به شي هغه څوك چه الله دپاره ئے په رياء او سمعت سره سجده کوله نو دے به شروع شي چه سجده وکړي نو ددۀ ملا به يو طبق جوړ شي۔ (د سجدے طاقت به نۀ لري)

(بخاري: ۷۴۳۹) و (۴۹۱۹)

دا حديث امام بخاريؒ په کتاب التفسير کښې او امام مسلمؒ په کتاب الايمان کښې د ابو سعيد خدري ﷺ نه روايت کړے دے۔

نو دلته د الله د پونډئ حقيقت الله تعالىٰ ته معلوم دے، او دا د الله صفت دے چه بنده ئے پوره کيفيت نشي بيانولے، نو مونږ به ددے په ظاهر باندے ايمان لرو، او ددے تاويل به نۀ کوو، او همدا د سلف صالحينؒ مذهب دے۔

معلومه شوه چه منافقان به هم سجده کول غواړي ليکن ملا به ئے يوه تخته شي چه نۀ به شي خکته کيدے۔ نو دلته په آيت کښې اگر که رد په مشرکانو دے ليکن د دوئ ورونه (منافقان) يادوي، که نۀ وي مشرك ته خو د سجدے توفيق نۀ ملاويږي هغه خو

مخکښې نه اُورته غورزيدلے دے، او منافق خو لا په ميدان د محشر کښې دے نو هغه ته به توفيق نۀ ملاويږي نو مطلب دا شو چه اے مشرکانو ! په قيامت کښې به په تاسو باندے به بيحده هيبت راځي، تاسو اُور والا يئ، خو ستاسو په ورونو منافقانو باندے داسے حالت راځي چه سجده به نشي کولے او مؤمنان به صرف الله ته سجده کولے شي۔ نو دلته صرف د آخرت يو حالت ذکر کول دي دپاره د رد کولو د وينا د مشرکانو چه تاسو د جنت طمع کوئ خو آخرت کښې داسے سخت حالات راروان دي۔

وَيُدْعَوْنَ: دلته رابللو نه مراد د مؤمنانو او منافقانو رابلل دي۔ او دا بعيده نۀ ده چه مشرکان په يو ځاى کښې وي او د حجت قائمولو دپاره هغوي ته هم د سجدے کولو حکم وکړي او هغوي ئے نشي کولے خو د حديث په بناء دلته منافقان ذکر شويدي۔

او منافقان سجدے ته رابلل د توبيخ په طريقه دي۔

فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ: په قيامت کښې الله تعالىٰ د کافر او منافق او د مؤمن د تميز دپاره دا کار کوي چه دوي سجدے ته رابلي۔

خَاشِعَةً اَبْصَارُهُمْ: يعنی په دے ورځ به د سرو او ښځو منافقانو نظرونه د سختے ويرے له کبله لاندے ښکته شوي وي، او دوئ به د ذلت او رسوائی د بوج لاندے تيت تيت روان وي۔ دا خلق چه کله په دنيا کښې تندرست وو، او دوئ ته به د سجدے لپاره اووئيل شو نو د کفر او سخت تکبر له وجے به د دوئ څټونه د الله مخے ته نۀ ښکته کيدل۔

وَقَدْ كَانُوا يُدْعَوْنَ إِلَى السُّجُوْدِ: کعب الاحبارؒ وائی :

[وَاللّٰهِ مَا نَزَلَتْ هٰذِهِ الآيَةُ اِلَّا فِي الَّذِيْنَ يَتَخَلَّفُوْنَ عَنِ الْجَمَاعَاتِ]

قسم په الله دا آيت د هغه خلقو په باره کښې نازل دے چه د جَمعے مونځونو نه روستو پاتے کيږي۔ يعنی چه دوي به د قيامت په ورځ د سجدے کولو طاقت نۀ لري۔

| فَذَرۡنِیۡ وَمَنۡ یُّکَذِّبُ بِهٰذَا الۡحَدِیۡثِ سَنَسۡتَدۡرِجُهُمۡ |
|---|
| نو پریږده ما او هغه څوك چه دروغژن گڼري دا خبر زردے چه په آرام آرام سره به را |
| مِّنۡ حَیۡثُ لَا یَعۡلَمُوۡنَ ﴿۴۴﴾ وَاُمۡلِیۡ لَهُمۡ اِنَّ |
| نیسو دوی د هغه ځائے نه چه دوی به نهٔ پو هیږي۔ او مهلت ورکوم دوی ته یقیناً |
| کَیۡدِیۡ مَتِیۡنٌ ﴿۴۵﴾ اَمۡ تَسۡـَٔلُهُمۡ اَجۡرًا فَهُمۡ مِّنۡ مَّغۡرَمٍ |
| تدبیر زما مضبوط دے۔ آیا غواړے تهٔ د دوی نه مزدوري نو دوی د وجے د تاوان نه |
| مُّثۡقَلُوۡنَ ﴿۴۶﴾ اَمۡ عِنۡدَهُمُ الۡغَیۡبُ فَهُمۡ یَکۡتُبُوۡنَ ﴿۴۷﴾ |
| درانهٔ کړے شویدی۔ آیا دوی سره پو هه د غیبو ده پس چه دوی لیکل کوی (د هغے نه)۔ |

**تفسیر** : هرکله چه د مکے د مشرکانو په حق کښې هیڅ دهمکئ کار ورنهٔ کړو، نو الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته وفرمایل چه کوم خلق دا قرآن دروغژن گڼري د دوئ معامله تهٔ ماته پریده، ماته معلومه ده چه دوئ سره څهٔ کول پکار دي، او زهٔ د دوئ نه په هره طریقه د بدلے اخستو قدرت لرم۔

**فَذَرۡنِیۡ:** اُوس مکذبینو ته دهمکی ده، چه دا خلق ماته پریده۔

ذرنی معنیٰ ده : (کِلۡهُمۡ اِلَیَّ وَلَا تُشۡغِلۡ بِهِمۡ فِکۡرَكَ) یعنی دا خلق ماته پریده، او په دوی باندے خپل فکر مهٔ مشغولوه، زهٔ به ورسره گورم، او تهٔ خپل کار جاری وساته۔

**سَنَسۡتَدۡرِجُهُمۡ:** یعنی مونږ د دوئ رسئ ورسستوو، او دوئ له صحت او عافیت ورکوو او نور ډیر نعمتونه ورکوو، او دوئ په مزه مزه د هلاکت کندے ته رسوو، او دوئ ته به ددے احساس هم نهٔ وی۔

د استدراج معنیٰ په سورة الاعراف او سورة المؤمنون کښې تیره شویده چه دے ته وائی چه یو تن د الله نافرمانی کوی او الله ورله نعمتونه ورکوی نو دا داسے دے لکه د ماشومانو دام چه مرغانو ته ئے کیږدی او هغوی ته دانے واچوی، او مقصد پکښې د هغهٔ په چل کښې رانیول وی۔ په حدیث کښې دی :

[اِذَا رَاَیۡتَ اللّٰهَ یُعۡطِی الۡعَبۡدَ مِنَ الدُّنۡیَا عَلٰی مَعَاصِیۡهِ مَا یُحِبُّ فَاِنَّمَا هُوَ اسۡتِدۡرَاجٌ]

(احمد : ۱۷۳٤۹) حديث حسن)

کله چه ته الله وينې چه بنده ته د هغه د ګناهونو سره نعمتونه ورکوي نو پوهه شه چه دا استدراج (په آرام آرام رانیول) دی، لکه یو تن چه څاروي ته خوراك ورکوي، او هغه څرپوي دې دپاره چه هغه ذبح کړي. نو الله ئې هم عذابونو دپاره ښه تیاروي.

وَاُمْلِیْ لَهُمْ: يعني دا استدراج د دوئ دپاره د اکرام د وجه نه نه دے بلکه دا خو یو مهلت ورکول دي چه په هغې سره به ئې ګناهونه نور هم زيات شي. يعني زه به د دوئ رسئ ډيره ورسسته کړم، دوئ له په عذاب ورکولو کښې تادي نه کوم، تردے پورے چه دوئ په دے کچه خيال کښې آخته شي چه دوئ د الله خوښ بندګان دي ځکه خو هغه دوئ له دومره ډير نعمتونه ورکړي دي. په دے وخت کښې زه دوئ په خپل سخت ګرفت کښې راولم. او دا به د دوئ خِلاف د الله داسے سخت ترين تدبير وي چه هغه به دوئ برداشت نه کړي.

اَمْ تَسْـَٔلُهُمْ اَجْرًا: اُوس مشرکانو ته په بل انداز باندے د رسول الله ﷺ اخلاص او حقانيت بيانوي، او هغوي ته زجر او رټنه ده چه دا خلق چه انکار کوي نو کيدے شي چه ته به د دوی نه څه مزدوري او عوض غواړے چه دوی به د هغے بوج نشي برداشت کولے، او ددے په وجه به ستا د دعوت قبلولو نه يريږي؟ داسے څه خبره خو نشته، ته خو د دوی دپاره مخلص ئے. نو بيا ولے دا خلق ستا خبره نه مني.

اَمْ عِنْدَهُمُ الْغَيْبُ: ۱- يا به دوی انکار پدے وجه کوي چه دوئ سره به د غيبو علم وي، لوحِ محفوظ به د دوئ مخې ته پرانستے پروت وي، او د علمِ غيب تمامے پردے به دوئ لپاره اوچتے شوي وي، چه د هغے نه دوئ استفاده کوي او خپله پيژني چه د الله په نيز د دوئ مقام د ايمان والو نه اُوچت او پورته دے، او دوئ ته په تا باندے د نازله شوے وحي او دين ضرورت نشته. يا په علم غيب کښې ئے دا خبره ليکلي وي چه دوی جنتيان دي نو بيا به دوی هم ترے ځانله خپله دا خبره رانقل کړي وي او په کتابونو کښې به ئے ليکلي وي چه دوی جنتيان دي.

۲- يا د غيب نه مراد وحي ده نو معنیٰ دا ده چه آيا د دوی سره وحي شته چه د هغے نه دوی د خپلو ځانونو دپاره دين ليکي چه زمونږ شرکي دين حق دے، او دا وحي د قرآن صحيح نه ده. او پدے کښې اشاره ده چه دا يوه وحي د رسول الله ﷺ خو موجوده ده، خو

آیا د دوی سره بله وحی شته چه هغوی پرے د قرآن مقابله وکړی، دا هم نشته، نو بیا دوی ولے انکار کوی، حاصل دا چه نۀ د دوی سره دنیوی مانع شته او نۀ دینی۔

| فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ وَلَا تَكُنْ كَصَاحِبِ الْحُوتِ إِذْ نَادٰى |
| --- |
| نو صبره کوه فیصلے د رب خپل ته او مۀ کیږه پشان د ماهی والا کله چه هغۀ آواز |
| وَهُوَ مَكْظُومٌ ﴿٤٨﴾ لَوْلَا أَنْ تَدَارَكَهٗ |
| اُوکړو او هغه د غم نه ډك وو۔ که چرته نۀ وے لاندے کړے (نۀ وے رانیولے) دۀ لره |
| نِعْمَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ لَنُبِذَ بِالْعَرَاءِ وَهُوَ |
| نعمت د طرف د رب ددۀ نه خامخا گوزار شوے به وے په میدان کښې او دے به |
| مَذْمُومٌ ﴿٤٩﴾ فَاجْتَبٰهُ رَبُّهٗ فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٥٠﴾ |
| بدحالے وے۔ نو غوره کړو دۀ لره رب ددۀ نو وے گرځولو دۀ لره د نیکانو نه۔ |

**تفسير** : اُوس الله تعالیٰ خپل نبی ته ادب بیانوی او تسلی ورکوی چه تۀ د خپل دعوت سره مخ په وړاندے ځه، د دوئ د کفر او عناد او د دوئ د دروغژن گنړلو پرواه مۀ کوه، او د دعوت او د تبلیغ په مصیبتونو باندے صبر کوه۔

او د مهی والا یعنی یونس بن متیٰ ﷺ غونته مۀ کیږه، چه هغه د خپل قوم د تکلیفونو رسولو نه تنگ راغے، او د الله حکم ته ئے صبر ونکړو، او بغیر د اجازت د الله تعالیٰ نه د خپل قوم نه ووتو، هجرت ئے وکړو او هغوی ئے پریخودل، نو الله پرے امتحان راوستو چه مهی وخوړو۔

او کله چه مهی بنوے تیر کړو، او د غم او خفگان د وجے نه د هغۀ زړۀ ډك شو، د مهی په خیټه کښې هغۀ خپل رب ته آواز وکړو او وے وئیل : ﴿ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِيْنَ ﴾ (زما ربه! تا نه سوئ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، تۀ د هر عیب او نقصان نه پاك ئے، او بیشکه زۀ په خپل ځان باندے د ظلم کونکو نه ووم)۔

نو الله تعالیٰ د هغۀ توبه قبوله کړه او په هغۀ باندے د رحم کولو دپاره ئے مهی ته حکم وکړو چه هغه د سمندر غاړے ته واچوی، دے وجے نه مهی داسے وکړل، په داسے حال کښې

چه هغه د خپل رب مقبول او ستائیلے شوے بنده وو۔

مَكْظُوْمٌ: د کظم نه دے بندولو ته ونیلے شی، لکه ﴿اَلْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ﴾ بیا مکظوم نه مراد دلته مَحْبُوْس دے یعنی بند شوے په خیټه د مهی کښې۔

یا د غم نه داسے ډك چه د خوشحالئ لارے ئے بندے شی۔ او غم ئے یو پدے وجه وو چه د الله د اجازت نه بغیر وتلے وو، او بل په ډیر تنګ ځای کښې وو۔

لَوْلَا اَنْ تَدَارَكَهٗ: که چرے د الله رحمت د هغهٔ شاملِ حال نهٔ وے، او الله د هغهٔ توبه قبوله کړے نهٔ وے، نو مهی به هغه په کوم وران ځائے باندے ارتولے وے، په داسے حال کښې چه هغه به د خپلے غلطئ له وجے د ملامتیا وړ او بد حالے وے۔

نِعْمَةٌ: نکره دپاره د عظمت ده، یعنی لوی نعمت۔

بِالْعَرَاءِ: عراء یو شاړ میدان او ډاګے ته وائی۔

مَذْمُوْمٌ: یعنی که د الله نعمت نهٔ وے نو په بد حالت کښې به غورزولے شوے وے۔

ر په اول کښې ئے هم (مَا اَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ بِمَجْنُوْنٍ) وویل او په آخر کښې ئے هم (نِعْمَة) ذکر کړو اشاره ده چه اے زما نبی! تا کښې چه دا ښکلے صفات او اخلاق پیدا شویدی نو دا به د الله تعالیٰ احسان او نعمت ګڼړے۔

فَاجْتَبَاهُ: هغه ئے غوره کړو (۱) یو غوره والے د هغهٔ په حفاظت کولو سره وو۔ (۲) دویم اجتباء د مَعَالِی الامور (اُوچتو کارونو) دپاره وه چه هغه الله طرفته دعوت کول وو۔

فَجَعَلَهٗ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ: یونس عليه السلام خو د مخکښې نه د نیکانو نه وو، نو دلته معنیٰ دا ده چه الله ورله توبه قبوله کړه، او آینده دپاره ئے د ګناه نه محفوظ وساتلو، او نیکی ئے ورله نوره هم زیاته کړه، او توفیق د صبر ئے ورکړو، او د هغهٔ قوم له ئے توفیق د ایمان ورکړو، او وحی ورته دوباره شورو شوه۔

| وَاِنْ يَّكَادُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَيُزْلِقُوْنَكَ |
| --- |
| او یقیناً نزدے دی هغه کسان چه کافران دی چه وخویوی تا لره (اُورسوی تا ته |
| بِاَبْصَارِهِمْ لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ وَيَقُوْلُوْنَ اِنَّهٗ |
| مصیبت) په نظرونو خپلو سره هر کله چه واوریدو دوی قرآن او وائی دوی یقیناً دے |

| لَمَجۡنُوۡنٌ ﴿۵۱﴾ وَمَا هُوَ اِلَّا ذِكۡرٌ لِّلۡعٰلَمِيۡنَ ﴿۵۲﴾ |
| --- |
| خامخا لیونے دے۔ او نهٔ دے دا مګر یاداشت دے دپاره د مخلوقاتو۔ |

**تفسیر** : اُوس بیا کافرانو ته چه د رسول الله ﷺ په شان د نعمت ناشکره دی، رټنه ورکړے کیږی۔ آیت کښې دوه تفسیرونه دی (۱) اِنۡ مُخَفَّفۡ مِنَ الۡمُثَقَّل دے اَیۡ وَاِنَّهٗ ۔ یعنی شان دا دے چه کافران نزدے دی چه تا په خپلو سترګو سره وښیوی۔

زَلَقَ بِالۡاَبۡصَار یو نظر بازیٔ ته وائی۔ د قریشو کافرانو به چه کله قرآن آوریدو نو هغه به ئے نشو برداشت کولے، او ډیر بد به ئے ګنړلو، او هغه ته به ئے ډیر د دشمنیٔ او بغض او نفرت په نظر سره کتل، نو دوی سلا مشوره وکړه چه دهٔ دپاره د عربو نظر بازان خلق راولو چه دهٔ باندے نظر واچوی چه په کور کښې پروت وی، او مونږ ته هر وخت بیانونه نهٔ کوی چه ترے بیغمه شو (لکه ډیر کرته داعیانو د حق باندے خلق داسے کار کوی چه څوك ئے د نظره کړی او څوك پرے جادو وکړی)

نو دے له ئے څه کسان راوستل چه هغوی به رسول الله ﷺ ته نیغ نیغ کتل دے دپاره چه هغه د نظره کړی لیکن رسول الله ﷺ ترے الله تعالیٰ محفوظ وساتلو ځکه چه هغه به شرعی اذکار لوستل، که الله تعالیٰ د هغهٔ حفاظت نهٔ کولے نو هغه به د هغویٔ د بد نظر د وجے نه بیمار شوے وے، لیکن د الله فضل همیشه په هغهٔ باندے کیدلو۔ مشرکانو به وئیلے چه محمد لیونے شوے دے، ځکه داسے ګډے وډے خبرے کوی۔

نو دا دلیل دے چه نظر لګیدل حق دی لکه چه بخاری او مسلم د ابو هریره ﷺ نه په مرفوع روایت کښې ذکر کړیدی (اَلۡعَیۡنُ حَقٌّ) سترګے لګیدل حق دی۔

(بخاری: ۵۷٤۰ ومسلم: ۵۸۳۰)

او دا یو قسم بیماری دهٔ، د مبتدعینو کومے ډلے چه ددے نه انکار کوی د هغوی سره هیڅ دلیل نشته، او د هغوی انکار لره هیڅ اعتبار نشته۔

ابن قُتَیبَۃ په مختلف الحدیث کښې لیکلی دی چه د نظر د لګیدو وجه دا ده چه د بعض سړی په سترګو کښې الله تعالیٰ څه جراثیم کیخودلے وی، هرکله چه هغه خپلے سترګے څه څیز ته مخامخ کړی او د هغه څیز نه خوشحالی او تعجب ښکاره کړی، نو دا جراثیم هغه بنده یا څیز ته اُورسیږی او هغه بنده بیمار شی یا هغه څیز متأثره شی نو

معلومه شوه چه د نظر لګیدو عقیده لرل صرف تعبّد نهٔ دے بلکه د علم طب سره په اعتبار د اسباب محسوسه هم مناسبت لري۔

رسول الله ﷺ فرمائي : [لَوْ كَانَ شَيْءٌ سَابَقَ الْقَدَرَ لَسَبَقَتْهُ الْعَيْنُ] که یو شے د تقدیر نه مخکښې کیدلے نو نظر به ترے مخکښې شوے وے۔ (یعنې نظر هم په تقدیر او په اذن د الله تعالیٰ سره اثر کوي) او د نظر د لګیدو نه پس ددے دپاره دم طلب کول هم جائز دي لکه امام ابن ماجه په باب من استرقی من العین کښې د اسماء بنت عمیس رضی الله عنها روایت راوړیدے چه هغې د رسول الله ﷺ نه اجازت طلب کړو وے فرمایل :

(يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ اِنَّ وَلَدَ جَعْفَرٍ تَسْرَعُ اِلَيْهِمُ الْعَيْنُ أَفَأَسْتَرْقِيْ لَهُمْ ؟ قَالَ نَعَمْ)

چه د جعفر بن ابی طالب ﷛ اولادو ته نظر لګیږي آیا زهٔ ددے دپاره دم طلب کړم؟ وے فرمایل : آؤ۔ او بیائے دغه مخکښے قول ذکر کړو (لَوْ كَانَ شَيْءٌ)۔

(سنن ابن ماجه : ۳۵۱۰) باسناد صحیح)

او د نظر نه د حفاظت دپاره په احادیثو کښې شرعي اذکار نقل دي لکه آخري درے سورتونه لوستل۔ او په صحیح مسلم کښې ذکر دي :

[بِسْمِ اللّٰهِ اَرْقِيْكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيْكَ، مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ اَوْ عَيْنٍ حَاسِدٍ، اَللّٰهُ يَشْفِيْكَ بِاسْمِ اللّٰهِ اَرْقِيْكَ]۔ (مسلم : ۵۸۲۹)

او حسن بصریؒ وائي چه دا آیت هم د نظر د لګیدو دپاره دم دے۔

ماوردیؒ ذکر کړیدي چه په عربو کښې په بنو اسدو کښې نظربازان زیات وو۔

نو د لَيُزْلِقُوْنَكَ معنیٰ دا ده چه تا خوئے کړي په نظربازئ کولو سره۔ او په کور کښې دِے ښملوي۔ او زلق اصل کښې دے ته وائي چه یو انسان ختهو کښې روان وي نو ناڅاپه راپرے وځي۔

(۲) دویم تفسیر : زیاته ظاهره دا ده چه زلق بالابصار معنیٰ دا ده چه ته چه کله قرآن تلاوت کوے نو کافران تا ته تیز او نیغ ګوري۔

[اَيْ يَنْظُرُوْنَ اِلَيْكَ نَظَرًا شَدِيْدًا بِالْعَدَاوَةِ وَالْبَغْضَاءِ يَكَادُ يُسْقِطُكَ]

یعنې په سخت بد نظر درته ګوري او دا غواړي چه تا د هغه ځای نه خوئے کړي کوم ځای چه الله تعالیٰ ته د حق بیان ته ودرولے ئے، نو دوی نهٔ غواړي چه ته دوی ته د الله دا کتاب بیان کړے کوم کښې چه د دوی دپاره ذکر (یاداشت) او عبرت پروت دے بلکه د سختے

دشمنۍ او بغض او نفرت د وجه نه تا ته لیونے وائی۔
نو پدے آیت کښ الله تعالیٰ د مشرکانو د قرآن او د رسول الله ﷺ سره سخته دشمنی او د هغوی د خبرو او د عمل ترمینځ تعارض او تناقض ذکر کړیدے، چه هغه نبی چه دوی ته ذکر (د عبرت) او عقل نه ډکے خبرے بیانوی لیکن دوی هغۀ ته دے عقلو او لیونو نسبت کوی۔ حقائق په دوی باندے پټ شویدی او دماغ ئے اوړیدلی دی، ورځ ورته شپه ښکاره کیږی۔ او سپین ورته تور۔ او دا تفسیر ابن قتیبۃ غوره کړیدے۔
او دا تفسیر ځکه غوره دے چه دلته الله تعالیٰ (لَمَّا سَمِعُوا الذِّكْرَ) لفظ وئیلے دے، او د دوی نظر بازی خو یواځے د بیان د رسول الله ﷺ په وخت نۀ وه، هغه خو بل وخت کښ هم کیدے شوه، او دلته وائی چه کله دوی قرآن آوری نو دوی تا ته بد بد ګوری۔ نو معلومیږی چه دلته بد کتل مراد دی اګر که نظر بازی به هم پکښ داخلیږی۔ یعنی دوی قرآن نشی برداشت کولے۔
وَمَا هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ: الله تعالیٰ په کافرانو رد کوی چه محمد (ﷺ) هیڅکله لیونے نۀ دے بلکه هغه خو د الله نبی او رسول دے، هغه الله دے له رالیږلے دے چه هغه تمامو انسانانو او پیریانو ته د الله آخری پیغام اورسوی۔
او د لیونو کلام خو داسے هیڅکله نشی کیدے چه د ټول عالَم دپاره مفید وی۔ کلام کښ چه کله کمال او جزالت وی او هر چا ته ئے فائده رسیږی، نو هغه د لیونو خبرے نۀ وی بلکه هغه د ډیرو غټو عقلاؤ وی بلکه هغه خو د الله تعالیٰ کلام دے چه د مخلوقاتو رب دے، یو نبی هم داسے کتاب نشی جوړولے۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورة القلم

١ – الله تعالیٰ قرآن کریم ته ترغیب ورکړو۔
٢ – د رسول الله ﷺ صفات او کمالات او خلق عظیم او شرافت ئے بیان کړو۔
٣ – د رسول الله ﷺ د مخالفینو کافرانو ډیر بد صفات ئے بیان کړل۔
٤ – د اصحاب الجنة (باغ والو) واقعه پدے سورت کښ ده۔
ختم شو تفسیر د سورة القلم په رحم د رب العالمین په (٦) رمضان ١٤٣٧ هـ موافق (١١/٦/٢٠١٦)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| رکوعاتها (۲) | (۶۹) سُوْرَةُ الْحَاقَّةِ مَكِّيَّةٌ | آیاتها (۵۲) |
|---|---|---|

سورة الحاقه مکی دے، په دے کښې دوه پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة الحاقه

**نوم :** دے سورت ته سورة الحاقه وائی، او دا د قیامت د نومونو یو نوم دے. د قیامت هیبت ته په کښې اشاره ده. بعضو ددے نوم [اَلسِّلْسِلَة] او [الدَّاعِيَة] هم ذکر کړیدے.

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکلی دی چه د ټولو په نیز دا سورت مکی دے. ابن مردویهؒ او بیهقیؒ او نورو د ابن عباس ﷺ نه همدا نقل کړی دی.

### مناسبت

۱ – مخکښې د رسول الله ﷺ شان بیان شو، نو دلته فرمائی چه دے شاعر، ساحر او کاهن نهٔ دے، که بالفرض دے دغه وے او په ما باندے ئے دروغ جوړ کړی وے، نو ما ستاسو نه مخکښې وژلو. نو دلته د رسول الله ﷺ صدق (رشتینوالے) بیانیږی.

۲ – مخکښې د رسول الله ﷺ شان او صدق ذکر شو نو دلته د هغهٔ منکرینو ته تخویف دنیوی او اُخروی ذکر کوی.

۳ – مخکښې سورت کښې درے اصول ذکر شول توحید، رسالت او قرآن. نو دلته څلورم اصل ذکر کوی چه هغه اثبات د قیامت دے.

٤ – مخکښې سورت کښې د تخویف یوه نمونه (واقعه د باغ والو) ذکر شوه، نو دلته د تخویف دنیوی پنځه نمونے ذکر کوی.

## د سورت مقصد

۱ - اَلتَّخْوِیْفُ بِیَوْمِ الْقِیَامَةِ ۔ الله تعالیٰ د قیامت په راتللو سره خلقو ته یره ورکوی۔ او دا یره په څلورو طریقو سره ورکړے شویده

(۱) یو بِذِکْرِ اسْمِهَا۔

د قیامت په نومونو سره چه الحاقه، القارعه، الواقعه دی۔

(۲) دویم بِذِکْرِ عَذَابِ مُکَذِّبِیْهَا ۔ څوك چه قیامت نهٔ منی الله تعالیٰ هغوی ته په دنیا کښې عذابونه ورکړیدی۔ دا تر دولس آیت پورے راځی۔

(۳) دریم : بِذِکْرِ اَهْوَالِ یَوْمِ الْقِیَامَةِ ۔ د قیامت د ورځے یرے او هیبتونه چه آسمان ماتیدل او زمکه شلیدل او غرونه روانیدل وغیره۔

(٤) بِذِکْرِ جَزَاءِ الْاَعْمَالِ ۔ د عملونو په جزاء او سزا ذکر کولو سره۔ او همدا مقصودی ټکے دے۔ چه تاسو چه دنیا کښې کوم عملونه کړیدی نو اُوس راشئ ددے جزاء او سزا وګورئ۔ نو تر (۲٤) آیت پورے د نیك عمله انسان حال، او بیا د بد عمله (یعنی کافر او مشرك) انسان ناکاره حال۔

اوله رکوع ئے د آخرت په باره کښې ده، او دویمه رکوع ئے د رسول ﷺ او د قرآن کریم د حقانیت په باره کښې ده۔

او دے سورت کښې هم د سورة الواقعه په شان کار شویدے چه قرآن او قیامت ئے جمع کړیدی، او په سورة القیامة او سورة المدثر او سورة التکویر کښې به بیا جمع کیږی۔ ګویا که اول بندګان وېروی بیا ورته وائی چه قرآن حق کتاب دے دا اُومنئ چه د دغه هیبتونو نه محفوظ شئ۔ او دارنګه برعکس، روستو ئے قرآن بیان کړو چه دا مخکښې چه کومے خبرے د آخرت ذکر شوے دا حقے دی۔

په آخره جمله کښې به ترغیب ذکر کړی چه ددے خبرو نه متقیان فائده اخلی۔

او په توحید باندے ئے ختموی۔ نو ګویا که سورت کښې دوه خبرے شوے د آخرت یره او د قرآن کریم او د نبی ﷺ رشتینوالے۔

| اَلْحَاقَّةُ ﴿۱﴾ مَا الْحَاقَّةُ ﴿۲﴾ وَمَا اَدْرَاكَ مَا |
|---|
| ثابتیدونکے ورځ، څه ده ثابتیدونکے ورځ۔ او څه پوهه کړے نے تهٔ چه څه ده |
| الْحَاقَّةُ ﴿۳﴾ كَذَّبَتْ ثَمُوْدُ وَعَادٌ بِالْقَارِعَةِ ﴿۴﴾ |
| ثابتیدونکے ورځ۔ تکذیب کړے وو ثمودیانو او عادیانو په هغه ورځ چه ګړنګونکے ده |
| فَاَمَّا ثَمُوْدُ فَاُهْلِكُوْا بِالطَّاغِيَةِ ﴿۵﴾ |
| (زړونو لره)۔ پس هر چه ثمودیان دی نو هلاك کړے شول په سخته چغه۔ |

**تفسیر** : په اول آیت کښ د قیامت اثبات دے په صفت د الحاقه سره درے کرته نو اشاره ده زیات هیبت د هغے ته۔ د [اَلْحَاقَّةُ] نه مراد د قیامت ورځ ده، د حق نه ماخوذ دے ثبوت ته وئیلے شی، حاقه ورته د ډیرو وجو نه وائی :

(۱) لِتَحَقُّقِهَا۔ ځکه چه دا یقینی ثابتیدونکے ورځ ده۔

(۲) لِاِبْدَاءِ حَقَائِقِ الْاُمُوْرِ فِيْهَا۔ په دغه ورځ به د کارونو حقیقتونه راښکاره شی۔ ټول رازونه به پکښ راښکاره شی۔ یا تمام غیبی خبرونه به په دغه ورځ ثابت او واقع شی لکه بعث، حشر، حساب کتاب، میزان او صراط وغیره۔

(۳) لِاَنَّهَا اَحَقَّتْ لِكُلِّ اَحَدٍ جَزَاءَ عَمَلِهٖ۔ ځکه چه دے ورځے هر چا دپاره جزاء د عمل ثابته کړیده۔ چا لره جنت او چا لره جهنم۔

**مَا الْحَاقَّةُ**: پدے تپوس کښ تهویل (یره ول) او تعظیم مقصد دے۔ یعنی حاقه څه شے دے۔ یعنی حاقه کومه لویه ورځ ده۔ دا خو ډیره لویه ورځ ده چه د هغے په باره کښ تپوس کیږی۔

ترکیب : الحاقة مبتداء او مَا په معنیٰ د اَیُّ شَیْءٍ سره مبتداء ثانی او اَلْحَاقَّةُ ئے خبر دے، مبتداء ثانی سره د خبر نه خبر شو دپاره د اولے مبتداء۔

**وَمَا اَدْرَاكَ**: مفسرینو لیکلی دی چه عرب کله د مخاطب په زړهٔ کښ د یو ے ضروری خبرے شوق پیدا کول غواړی، نو اول هغه په مجمل توګه ذکر کوی، بیا د هغے تفصیل بیانوی، دے دپاره چه اول د هغهٔ په ذهن کښ دا خبره کینی چه د کوم څیز چه ذکر کیږی هغه یو قابلِ اهتمام شے دے، بیا د هغے تفصیلی ذکر اوکړے شی دے دپاره چه د هغے

تصور د هغهٔ په زړهٔ او دماغو کښې په ښې طریقې سره کیني. دلته هم د قیامت ذکر اول په اجمالي توګه او بیا په تفصیلي توګه د همدې مقصد دپاره راغلی دے.

وَمَا اَدْرَاكَ مَا الْحَاقَّةُ: دلته هم ما استفهامیه ده، او دویم ځل تپوس کول کنایه ده ددې نه چه خلقو لره په خپل علم کښې د حاقې حقیقت راګیرول متعذر (مشکل) دی ځکه چه کوم یو شے د مالوف حد نه بهر شوے وی، هغه په آسانتیا سره ذهن ته نهٔ راځی، نو د هغې د پوهے په باره کښې تپوس نه کوی، نو استفهام او تعظیم د یو بل سره لازم وی. (التحریر)

د مَا الْحَاقَّةُ: معنیٰ ده: اَیْ لَا تَبْلُغُهُ الْاَفْکَارُ. یعني حاقه څه شے دے، دا خو یو داسے شے دے چه دے ته فکرونه نهٔ وررسیږی. ددے حاصل دا وی چه که زهٔ تا ته بیان هم وکړم چه قیامت داسے داسے دے، نو بیا هم ستا په زړهٔ کښې د هغې هیبت پوره رانشي (لَیْسَ الْخَبَرُ کَالْمُعَایَنَةِ) خبر د لیدو په شان نهٔ وی، تا چه ترڅو پورے پخپله دغه ورځ نهٔ وی لیدلی، نو تهٔ د هغې هیبت او حقیقت باندے نهٔ پو هیږے.

نو پدے کښې ترغیب دے چه د آخرت ورځ ډیره هیبتي ده، ددے نه یره وکړئ، د الله تعالیٰ د حساب نه ویریږئ.

وَمَا اَدْرَاكَ: یحیی بن سلامؒ او سفیان بن عیینهؒ نه روایت دے چه کوم ځای په قرآن کښې وَمَا اَدْرَاكَ ذکر دے، نو وروسته د هغې علم ورکړے شوے وی، او کوم ځای چه (وَمَا یُدْرِیْكَ) ذکر دے نو د هغې علم ئے نهٔ دے ورکړے.

کَذَّبَتْ ثَمُوْدُ: د قیامت د اثبات نه روستو اُوس د تخویف دنیوی نمونے ذکر کوی.

د قیامت ورځ ولے حقه ده؟ نو د هغې دلیل او وجه بیانوی چه د قیامت دروغجن ګنړونکو ته الله تعالیٰ په دنیا کښې عذاب ورکړیدے، که قیامت حق نهٔ وے نو مکذبینو ته به الله تعالیٰ عذاب نهٔ ورکولے لکه دا استدلال په سورة هود (۱۰۳) آیت کښې ذکر شوے ﴿اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَاٰیَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْاٰخِرَةِ﴾

د قریشو د کافرانو غوندے ثمودیانو او عادیانو هم د قیامت ورځ دروغژنه ګنړلے وه، نو د قوم ثمود خلق د یوے سختے چغې په ذریعه هلاك کړے شول. دا قوم د شام او حجاز ترمینځه په (حِجر) نومے علاقه کښې آباد وو، چه دا نن صبا د مدائنِ صالح په نوم پیژندلے شی، چه دا د سعودی عرب د (العُلا) ښار نه صرف څو میله فاصلے باندے دے.

بِالْقَارِعَةِ: ((القارعة)) هم د قیامت نوم دے، ځکه چه دا به د خپلو خطرو په ذریعه خلق اُوشاربي او د دوئ په زړونو باندے به لړزه راخوره کړي، او زړونه به ورله وتښکوي.

د بعض مفسرینو (مبرّد) خیال دے چه ددے نه مراد قرآن کریم دے، ځکه چه نبي کریم ﷺ د قرآن په آیتونو لوستلو سره خلق یرول، او دوئ به ئے د غفلت د خوب نه را ویښول.

او بعض وائی چه دا د قُرعے نه دے. خښتړي او قرعه اندازي کولو ته وئیلے شي. نو دا ورځ هم قرعه کونکے ده، چه پدے سره به بعض خلق پورته کوي، او بعض به ښکته کوي. (فتح البیان) لیکن اولنئ معنیٰ غوره ده.

بِالطَّاغِيَةِ: دے نه مراد هغه تیزه صیحه (چغه) ده چه د حد نه بهر شوے وه. چه هغه د جبریل علیه السلام چغه وه. ❁ بعض وائی: ددے نه زلزله مراد ده.

❁ بعض وائی: باء سببیه ده او طاغیه نه مراد طغیان دے. یعني دوي د خپلے سرکشئ په وجه هلاك شول. ❁ یا طاغیه هغه شخص وو چه هغه اُوښه هلاکه کړے وه، او ټول قوم په هغه راضي وو نو دغه قوم ددهٔ په وجه هلاك شول.

لیکن اول مطلب غوره دے.

دلته ثمودیان مخکښ ذکر شول اګرکه زمانه ئے د عادیانو نه روستو وه ځکه چه د دوي علاقے او کورونه قریشو ته نزدے وو، او د نزدے نه عبرت زر اخستے کیږي.

او بله دا چه د دوي هلاکت په صیحه سره وو او هغه د نفخ فی الصور سره زیات مشابه دے. نو ګویا که دا هم د قیامت تصویر وو. (فتح البیان)

| وَأَمَّا عَادٌ فَأُهْلِكُوا بِرِيحٍ صَرْصَرٍ عَاتِيَةٍ ﴿٦﴾ |
|---|
| او هرچه عادیان وو نو هلاك كړے شول په هوا تیزه سره چه د حد نه تیریدونکے وه. |
| سَخَّرَهَا عَلَيْهِمْ سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَانِيَةَ أَيَّامٍ حُسُومًا |
| وے چلوله (روانه ئے کړه) په دوي باندے اُووه شپے او اته ورځے سپیرے (پرله پسے) |
| فَتَرَى الْقَوْمَ فِيهَا صَرْعَىٰ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ |
| نو لیدل تا دغه قوم لره په هغے کښ پرمخے پراته، ګویا که دا تنے د کجوري دی |

| خَاوِیَةٍ ﴿۷﴾ فَهَلْ تَرٰی لَهُمْ مِّنْ بَاقِیَةٍ ﴿۸﴾ |
|---|
| راپریوتونکی (راغورزیدلې)۔ نو آیا وینې ته دوی لره یو نفس باقي پاتې کیدونکې۔ |

**تفسیر**: او قومِ عاد د یو سختې یخې او تیزې تُندې هواء په ذریعه هلاك کړې شول، دا خلق په (أحقاف) کښې آباد وو چه دا د عُمان او حضرموت (یمن) ترمینځه شګلنه علاقه ده۔

**صَرْصَرٍ**: دا د صِرٌّ نه دې، برد (یخنۍ او ګلیء) ته وائي،

۱- یعني شَدِیْدَةُ الْبَرْدِ۔ سخته یخه وه۔

۲- شَدِیْدَةُ الصَّوْتِ۔ سخت آواز والا وه۔

۳- شَدِیْدَةُ السَّمُوْمِ۔ په سختۍ سره په مساماتو (رګونو) کښې ننوتونکې وه۔ (مجاهدؒ)

**عَاتِیَةٍ**: (۱) عتو د حد نه تجاوز ته وئیلې شي۔ یعني د حد نه زیاته وه په الوتلو کښې۔

(۲) یا د عادیانو د طاقت نه ورتیره وه چه هغوی ترینه په هیڅ شان سره نشو بچ کیدې۔

(۳) یا عَتَتْ عَلٰی خُزَّانِهَا۔ د ملائکو د قابو نه ورتیره شوې وه کوم چه په هواګانو باندې مقرر دي۔

ابن عباس رضی الله عنه فرمائي: هیڅ هواء یا اُوبۀ الله نۀ دي رالیږلي مګر په اندازه سره مګر په ورځ د عادیانو او په ورځ د قوم نوح، د نوح علیه السلام د طوفان د خپلو خزانه کونکو ملائکو د قابو نه تیروتې وو، نو د هغوی په هغې باندې هیڅ طاقت د راواپس کولو نۀ وو۔ بیا ئې ولوستل (اِنَّا لَمَّا طَغَی الْمَآءُ) الحاقه: ۱۱)

او هرچه د عادیانو ورځ وه نو هواء د خپلو خزانه کونکو ملائکو نه بې قابو شوه نو د هغوی پرې هیڅ چاره نۀ وه بیا ئې ولوستل (بِرِیْحٍ صَرْصَرٍ عَاتِیَةٍ)۔

۲- د ابن عباس رضی الله عنه نه یو روایت دا دې چه عَاتِیَةٍ اَیْ غَالِبَةٍ۔ یعني غالبه وه۔

روایاتو نه معلومیږي چه په عادیانو باندې عذاب نازلونکي ملائك ته حکم وشو چه د یوې ګوتمې په اندازه هواء راخوشې کړي مګر هغې هواء دومره تیروتنه وکړه چه د دروازو د ارخونو نه هغه ووتله۔ (فتح البیان، ابن ابی حاتمؒ)

**سَخَّرَهَا عَلَیْهِمْ**: اَیْ سَلَّطَهَا/ وَاَرْسَلَهَا۔

يعنى الله مقرر كړے وه او دے ئے رالیږلے وه. يعنى الله تعالىٰ دا سیلئ په دوئ باندے اووۀ شپے او اتۀ ورځو پورے تابع كړے وه، چه هغه مسلسله چلیدله، او دوئ ئے د بیخ او بنیاد نه ختمول.

چنانچه د دوئ د لاشونو داسے ډهیرے اولګیدۀ لکه د کهجورو ډډے وُنے چه د ویخ نه اوخکلے شی اوپه زمکه باندے غورزیدلے پرتے وی. لکه د سورۀ القمر په (۲۰) آیت کښ راغلی دی: ﴿ كَأَنَّهُمْ أَعْجَازُ نَخْلٍ مُّنْقَعِرٍ ﴾ (ګویا که دوئ د ویخ نه د پریکړے شوو کهجورو تنے دی).

سَبْعَ لَيَالٍ: بقاعیؒ وئیلی دی چه دا هواء د چارشنبے (بدهـ) ورځے د سهار نه شروع وه تر بلے چارشنبے مازیګر پورے روانه وه، او دا د شوال د میاشتے آخری اته ورځے وے.

ابن جریرؒ وئیلی دی چه دوی اُوه شپے او آته ورځے د هواء په عذاب کښ ژوندی وو خو کله چه د اتمے ورځے مازیګر شو نو ټول مړۀ شول او هواء پورته کړل او دریاب ته ئے ګوزار کړل.

حُسُوماً: په دے کښ ډیر اقوال دی، پرله پسے /، د ویخ نه ویستونکے / پریکونکے، همیشه / سپیرے او بے خیره وے د دوی په باره کښ.

او دا منصوب دے په حالیت باندے یا مفعول مطلق دے د فعل محذوف دپاره، یا مفعول لۀ دے.

صَرْعَىٰ: جمع د صَرِیْعٌ ده، په زمکه باندے پرمخے غورزولے شوی، یعنی مړۀ پراتۀ وو.

أَعْجَازُ: د جمع د عَجُز ده، د تنے لاندینۍ حصے ته وئیلے شی. یعنی دوی په غټ والی کښ د کجورو د مونډانو په شان وو.

خَاوِيَةٍ: خالی / ډډ. چه مینځ ئے وینو او چینجو خوړلے وی.

❁ يا سَاقِطَةٌ (پریوتلے په زمکه باندے). ❁ یا بَالِيَةٌ. زاړۀ.

یحیىٰ بن سلامؒ وائی: په (خَاوِيَة) کلمه کښ اشاره ده چه د دوئ بدنونه د دوئ د روحونو نه داسے خالی وو څنګه چه د کهجورے ډډے وُنے وی.

فَهَلْ تَرَىٰ لَهُم مِّن بَاقِيَةٍ: اَیْ نَفْسٌ بَاقِيَةٌ. یعنی یو نفس پاتے کیدونکے.

یعنی دغه شان الله تعالىٰ همیشه لپاره دا قوم ختم کړو، او د دوئ یو کس هم باقی پاتے نشو. دنیا نه د دوئ نسل ختم شو.

| وَجَآءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهٗ وَالْمُؤْتَفِكَاتُ |
|---|
| او راغلے وو فرعون او هغه خوك چه مخكښ وو ددهٔ نه او هغه كلي چه اُلټه كړے |
| بِالْخَاطِئَةِ ﴿٩﴾ فَعَصَوْا رَسُوْلَ رَبِّهِمْ |
| شويدي په غټه گناه سره۔ نو نافرماني اُوكړه دوي د رسول د رب خپل نه |
| فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَّابِيَةً ﴿١٠﴾ إِنَّا لَمَّا |
| نو رانيول هغه دوي لره په رانيولو اُوچتو سره، (سختو سره)۔ يقيناً مونږ هركله چه |
| طَغَى الْمَآءُ حَمَلْنَاكُمْ فِي الْجَارِيَةِ ﴿١١﴾ |
| د حد نه تيرے شوے اُوبهٔ (نو) سوارهٔ كړئ تاسو مونږ په كشتئ كښ۔ دے دپاره چه |
| لِنَجْعَلَهَا لَكُمْ تَذْكِرَةً وَّتَعِيَهَا أُذُنٌ وَّاعِيَةٌ ﴿١٢﴾ |
| وګرځوو مونږ كشتئ تاسو لره نصيحت، او ياد كړي دے لره غوږونه يادونكي۔ |

**تفسير** : وَجَاءَ فِرْعَوْنُ : د عاديانو اوثموديانو غونته په دے سرزمين باندے بل سركشه قوم هم تير شوے دے۔ د مِصر په ملك كښ فرعون پيدا شو۔ چه ددهٔ د هدايت لپاره الله تعالىٰ موسیٰ بن عمران عليه السلام په ډيرو معجزاتو سره را اوليږهٔ، ليكن هغهٔ د كفر لاره اختيار كړه، او د مصر د فرعون نه مخكښ هم داسے قومونه موندلے شوي وو چه هغوئ د خپلے زمانے رسولان دروغژن اوګڼړل۔

او د قومِ لوط كلي اوموندلے شول چه د هغوئ اوسيدونكو ګناهونه كړي وو نو الله پرے كلي الټه كړل۔ دے تمامو كافرو قومونو د خپل رب رسولان دروغژن وګڼړل، نو الله تعالىٰ دوئ سخت را اونيول۔

بِالْخَاطِئَةِ: ددے موصوف پټ دے، اَیْ بِالْاَفْعَالِ الْخَاطِئَةِ۔ يعني د ګناه كارونه۔

يا مفرد نه مراد جنس دے، يعني ډير ګناهونه د كفر او د شرك او د مخالفت د رسول او د انكار د آخرت او د نارينه استعمالول او نور خبائث۔

رَسُوْلَ: دا جنس دے مراد ترے ډير رسولان دی۔ اشاره ده چه دغه خلقو په تكذيب او په ګناهونو كولو كښ صرف د عقل خلاف نهٔ وو كړے بلكه د نقل او د وحی نه هم

عاصیان وو۔

رسول لفظ ځکه راوړی چه دے سورت کښې روستو د رسول د صدق موضوع ده۔ نو اشاره ده چه ددے رسول (محمد رسول الله ﷺ) مخالفت سبب د هلاکت دے۔

رَّابِيَةً: اَیْ زَائِدًا عَلٰی عَذَابِ الْاُمَمِ۔ یعنی زیات عذاب د دوی په نورو عذابونو باندے ځکه چه د دوی جرمونه هم د نورو نه زیات وو۔

❁ یا رابیة په معنیٰ د سختو رانیولو سره۔ (مجاهدؒ)۔

اِنَّا لَمَّا طَغَى الْمَآءُ: پنځمه نمونه د عذاب ذکر کیږی، په دے کافرو او سرکشه خلقو کښې د قومِ نوح خلق هم وو، چه الله تعالیٰ هغویٰ په سمندر کښې ډوب کړل۔ کله چه د طوفان اوبهٔ هر اړخ نه راخورے شوے، او په ښکته او پورته زمکه کښې فرق پاتے نشو، نو الله تعالیٰ نوح ته حکم وکړو چه هغه او د هغهٔ مسلمانان ملګری په کشتیٔ کښې سوارهٔ شی۔ چنانچه په کشتیٔ کښې د سورو خلقو نه سویٰ ټول هلاك شول، او کشتیٔ د باقی پاتے خلقو لپاره د عبرت او نصیحت سبب جوړه شوه چه الله تعالیٰ څنګه د خپلو رسولانو مدد کوی، او خپل دشمنان تباه کوی۔

دارنګه دا واقعه د هر عقل او هوش والا په زړهٔ او دماغو کښې همیشه لپاره ثبت شوه، او دویٰ ته معلومه شوه چه الله نه د سرکشی کونکی قوم انجام څنګه وی۔

طَغَى الْمَآءُ: یعنی د حد د عامو اوبو نه ورتیرے شوے۔

یا د ملائکو د قابو نه ورتیرے شوے تردے پورے چه غرونه پکښې پټ شول۔

لِنَجْعَلَهَا: ضمیر کشتیٔ ته راجع دے په اعتبار د امثالو د هغے کشتیٔ سره۔

یا دغه واقعے ته راجع دے، یعنی غرق کول د منکرینو او نجات د مؤمنانو۔

تَذْكِرَةً: یعنی په روستنو کشتیو لیدو سره د نوح ؑ کشتیٔ یادیږی۔ او عبرت حاصلیږی۔ نو دا د الله تعالیٰ د عظیم قدرت دلیل دے۔

وَتَعِيَهَا اُذُنٌ وَّاعِيَةٌ: او ددے دپاره چه یاده کړی دے کشتیٔ یا دے واقعے لره هغه غوږونه چه یادونکی دی۔

اُذُنٌ وَّاعِيَةٌ: ۱ – اَیِ الْاُذُنُ الْمُعْتَبِرَةُ۔ یعنی هغه غوږونه چه عبرت اخستونکی وی۔ بعض غوږونه خبرے آوری لیکن یادوی ئے نهٔ۔

۲ – هغه غوږونه چه خبره آوری او په هغے ځان پوهه کوی، او محفوظ ئےساتی، او

عمل ورباندے کوی۔
تَعِيَهَا د وَعْیٌ نـه دے، او وعـی پـه نفس کښې د یو شی حفظ او یادولو ته وئیلے شی۔ او اِیُعَاءٌ یو شے په لوخی کښې محفوظ کول دی۔

| |
|---|
| فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّوْرِ نَفْخَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿١٣﴾ وَحُمِلَتِ الْأَرْضُ |
| نو کله چه پوکے اُوکړے شی په شپیلئ کښې پوکے یو۔ او پورته کړے شی زمکه |
| وَالْجِبَالُ فَدُكَّتَا دَكَّةً وَّاحِدَةً ﴿١٤﴾ |
| او غرونه نو اُوبه ټکولے شی په ټکولو په یو ځل۔ (نو اُوبه جنګولے شی په جنګیدو |
| فَيَوْمَئِذٍ وَّقَعَتِ الْوَاقِعَةُ ﴿١٥﴾ وَانْشَقَّتِ السَّمَآءُ فَهِيَ |
| یو) نو په دغه ورځ به واقع شی واقع کیدونکے آفت۔ او وبه چوی آسمان نو هغه به |
| يَوْمَئِذٍ وَّاهِيَةٌ ﴿١٦﴾ وَالْمَلَكُ عَلٰى أَرْجَائِهَا وَيَحْمِلُ |
| په دغه ورځ کمزورے وی۔ او ملائك به په طرفونو د آسمان باندے وی، او پورته |
| عَرْشَ رَبِّكَ فَوْقَهُمْ يَوْمَئِذٍ ثَمَانِيَةٌ ﴿١٧﴾ يَوْمَئِذٍ |
| کوی به عرش د رب ستا پورته د دوی نه په دغه ورځ اته ملائك۔ په دغه ورځ به |
| تُعْرَضُوْنَ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴿١٨﴾ |
| پیش کړے شئ تاسو (الله ته)، نهٔ به شی پټیدے ستاسو نه یو نفس پټیدونکے۔ |

**تفسیر:** ربط :

مخکښې عظمتِ شان د قیامت وو په هلاکولو د مکذبینو د قیامت، یعنی دا مکذبین الله تعالیٰ هلاك کړل نو راشئ اُوس د قیامت ابتدائی حالت او کیفیت بیانیږی۔

یعنی اسرافیل علیه السلام بـه دویـمـه شپیلئ اُووهی، چه د هغے د وجے نه به تمام روحونه په خپلو جسمونو کښې داخل شی،

او ټول خلق به د رب العالمین مخے ته حاضرئ دپاره اُودرولے شی، او زمکه او غرونه به پورتـه اوچت کـړے شـی، او یو بل سره به داسے ټکراؤ شی چه په یو دَم کښې به ټوله دنیا

تباه او برباده شي، او ټوله زمکه به یو خالي میدان جوړ شي، او قیامت به واقع شي.
نَفۡخَةٞ وَٰحِدَةٞ : دا دویمه شپیلۍ ده ځکه چه په اولے شپیلۍ سره ټول ژوندي مخلوق مړ شویدي. او یوه شپیلۍ به وهي، دویمے ته ضرورت نشته د وجه د ډیر قوت د هغے نه.
وَحُمِلَتِ ٱلۡأَرۡضُ : یعني د شپیلۍ په زور سره به زمکه او غرونه پورته کړے شي. یا به ئے ملائك پورته کړي. اول قول غوره دے.
فَدُكَّتَا دَكَّةٗ وَٰحِدَةٗ : دکة ماتولو او ټکولو او جنګیدو ته وئیلے شي. او دارنګه هموارېدو ته هم وائي. یعني اول به وټکولے شي او مات به شي نو (كَثِيبٗا مَّهِيلًا) به شي، یعني بهیدونکي شړے به شي، بیا به د یو بل سره هموار کړے شي نو ټول به یو میدان ښکاري.
وَٱنشَقَّتِ ٱلسَّمَآءُ : او آسمان به اوشلیږي، ددے رنګ به بدل شي، او انتهائي کمزورے او سست به شي.
وَٱنشَقَّتِ : ماضي په معنیٰ د مضارع ده، د وجه د تحقق او تیقن نه ئے ماضي راوړه.
وَاهِيَةٞ : وَهي سخت ضعف او کمزورتیا ته وئیلے شي. (زجاج)
وَٱلۡمَلَكُ عَلَىٰٓ أَرۡجَآئِهَا : یعني ملائك به د آسمان کنارو ته پناه یوسي.
د ضحاكؒ وینا ده چه د قیامت په ورځ چه کله آسمان اوشلیږي، نو ملائك به ددے په کنارو باندے پناه نیونکي شي، تردے چه الله تعالیٰ به دوئ ته په زمکه باندے د راکوزیدو حکم اوکړي، نو هغوئ به زمکه او په دے کښې اوسیدونکي په خپله ګیره کښې واخلي.
داسے ښکاره کیږي چه د آسمان مینځ به وشلیږي او غاړے به ئے باقي وي چه په هغے باندے به ملائك وي. او کیفیت ئے الله تعالیٰ ته معلوم دے.
اول به عرش ته نزدے آسمان وشلیږي، د هغے ملائك به لاندے راکوز شي، بیا به دویم آسمان وچوي د هغے ملائك به لاندے دریم ته راکوز شي، بیا به دریم وشلیږي نو څلورم ته به راکوز شي تردے چه د آخري آسمان غاړو ته به راشي.
او عرش به پاتے وي نو اته ملائکو به هغه په خپلو سرونو پورته کړے وي، اُوس څلورو ملائکو پورته کړیدے. کما قال ابن عباس رضی الله عنه.
او دا به ئے څنګه پورته کړے وي؟ او اته ملائك ولے مقرر شول؟ ددے کیفیت او حکمة

باندے صرف الله تعالیٰ پوهه دے۔
الله تعالیٰ عرش ته ضرورت نهٔ لري، دا هم د الله په قدرت ټینګ دے، لیکن الله تعالیٰ د حساب دپاره یو ځای مقرر کړیدے، او د الله د عظمت ښکاره کیدو مقام دے۔
**فَوْقَهُمْ:** دا دلیل دے چه د الله تعالیٰ عرش پورته دے۔
**ثَمَانِيَةٌ:** یعنی اته ملائك۔ او دا په عامو ملائکو کښې غوره او اشرف ملائك دي، ځکه چه الله تعالیٰ ته نزدے دي۔ (فتح البیان والقشیری)
او د ابن عباس ﷺ نه په یو موقوف روایت کښې دي چه بے شماره ملائك به په اتو صفونو کښې تقسیم شوي وي، او عرش به ئے په خپلو سرونو پورته کړے وي۔
(فتح البیان)
او ددے ملائکو صفات او شکلونه او د هغوي لوی بدنونه په روایاتو کښې او په کلام د سلفو کښې ذکر شویدي چه د هغے نه کوم په صحیح روایاتو کښې ذکر وي هغه به مقبول وي۔ او دے کښې توقف بهتر دے۔
حافظ ابن کثیرؒ لیکلي دي چه د (عرش) نه مراد خو یا (عرشِ عظیم) دے، یا بل یو عرش دے چه هغه به د قیامت په ورځ د فیصلے دپاره په زمکه باندے کیښودلے شي۔ والله اعلم۔ د آخرت امور د متشابهاتو نه دي، انسان ئے پوره مُکَیَّف کولے نشي۔
د قیامت تصویر مخکښې مونږ لیکلے وو چه ددے شکل به داسے وي چه کله د زمکے نه هموار میدان جوړ کړے شي، نو انسانان به د حشر میدان ته راجمع کړے شي، پدے کښې به ملائك راکوز شي، او د دوی نه به ګیره واچوي،
لکه پولیس چه د مجرمانو نه ګیره اچوي، د یو آسمان نه او د بل نه تر د اُوه آسمانونو ملائك به اُوه صفونه شي او ګیره به واچوي او الله به بره مخامخ راشي، او دلته به جهنم هم ملائکو راوستے وي، نو الله بره، او شا ته ملائك او مخامخ اُور د جهنم او مینځ کښې انسانان او پیریان به وي چه خوا ته به ورسره ګیر چا پیره حیوانات هم ولاړ وي۔
**يَوْمَئِذٍ تُعْرَضُونَ:** اُوس د اعمالو حساب به شروع کیږي چه دا مقصود شے دے۔
الله تعالیٰ پیریان او انسانان مخاطب کړي دي فرمائي چه د قیامت په ورځ به تاسو ټول د خپل رب مخے ته د حساب او جزاء او سزا دپاره پیش کړے شئ،
او دا حساب او پیشي به هم زر نهٔ وي بلکه پنځوس زره کاله انتظار به وي، او دا پیشي

به په دے وجه نهٔ وی چه کنے الله ستاسو هغه عملونه اوپیژنی چه هغه هغهٔ ته نهٔ دی معلوم، بلکه ددے نه مقصد به تاسو آزمائل او ستاسو زجر او رټنه وی. دے وجے نه الله تعالیٰ اوفرمایل :

﴿ لَا تَخْفٰى مِنْكُمْ خَافِيَةٌ ﴾ (تاسو به د خپل رب مخے ته پیش کړے شئ، په داسے حال کښې چه ستاسو د عملونو نه به هیڅ یو عمل د هغهٔ نه پټ نهٔ وی).

خَافِيَةٌ: یعنی پټیدونکے نفس، یا خَصْلَةٌ خَافِيَةٌ. یعنی هیڅ عمل د انسانانو به نشی پټیدے.

| فَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِيَمِينِهِ |
|---|
| پس هر چه هغه څوك دے چه ورکړے شی هغهٔ ته عملنامه د هغهٔ په ښی لاس سره |
| فَيَقُولُ هَاؤُمُ اقْرَءُوا كِتَابِيَهْ ﴿١٩﴾ إِنِّي ظَنَنْتُ أَنِّي مُلَاقٍ |
| نو وائی به راشئ اُولولئ عملنامه زما. یقیناً ما ګمان کولو چه زهٔ به ملاویدونکے |
| حِسَابِيَهْ ﴿٢٠﴾ فَهُوَ فِي عِيشَةٍ رَاضِيَةٍ ﴿٢١﴾ فِي جَنَّةٍ عَالِيَةٍ ﴿٢٢﴾ |
| یم د حساب خپل سره. نو دے به په ژوند خوشحاله کښې وی. په جنت اُوچت کښې. |
| قُطُوفُهَا دَانِيَةٌ ﴿٢٣﴾ كُلُوا وَاشْرَبُوا هَنِيئًا |
| غونچکونه د هغے به نزدے وی. (ورته ونیلے به شی) خورئ او څکئ په خوشحالئ سره |
| بِمَا أَسْلَفْتُمْ فِي الْأَيَّامِ الْخَالِيَةِ ﴿٢٤﴾ |
| په سبب د هغے عملونو چه تاسو مخکښې کړی وو په ورځو تیرو شوو کښې. |
| وَأَمَّا مَنْ أُوتِيَ كِتَابَهُ بِشِمَالِهِ |
| او هر چه هغه څوك چه ورکړے شوه هغهٔ ته عملنامه د هغه په کس لاس د هغهٔ کښې |
| فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي لَمْ أُوتَ كِتَابِيَهْ ﴿٢٥﴾ |
| نو وائی به هائے ارمان دے ما لره چه نهٔ وے راکړے شوے ما ته عملنامه زما. |

| وَلَمْ أَدْرِ مَا حِسَابِيَهْ ﴿٢٦﴾ يَا لَيْتَهَا كَانَتِ الْقَاضِيَةَ ﴿٢٧﴾ |
|---|
| او نهٔ پو هیدم چه څه به وی حساب زما۔ هائے افسوس چه وے دا مرګ ختمونکے |
| مَا أَغْنَى عَنِّي مَالِيَهْ ﴿٢٨﴾ هَلَكَ عَنِّي |
| ما لره (یا فیصله کونکے ما لره)۔ هیڅ فائده رانکړه ما ته مال زما۔ تباه شو زما نه |
| سُلْطَانِيَهْ ﴿٢٩﴾ |
| طاقت زما۔ (دلیل زما) (زورَوری زما)۔ |

**تفسیر** : فَأَمَّا: اُوس بل قسم حالات بیانوی چه هغه د عملنامو تقسیم دے۔ په دے ورځ چه د چا عملنامه د هغهٔ په ښی لاس کښې ورکړے شی. هغه به کامیابَ وی، او د ډیرے خوشحالئ نه به خوا اوشا خلقو ته وائی چه لږه زما عملنامه واخلئ، او دا اولولئ، ددے نه خو رڼرا راخیژی، په دے کښې د ګناهونو تور والے په نظر نهٔ راځی۔

ماته په دنیا کښې ددے خبرے یقین وو چه د قیامت په ورځ به ماته د خپلو اعمالو بدله خامخا ملاویږی، دے وجے نه ما د ایمان او عمل صالح په ذریعه ددے ورځے لپاره تیاری کړے وه، او د ګناهونو نه لرے شوے ووم، اوکله به مے چه د ناپوهئ د وجے نه کومه ګناه اوکړه نو سمدس به مے الله طرفته رجوع اوکړه او ددے ګناه نه به مے توبه کړه، نو دغه ګناه زما په عملنامه کښې درج شوے نهٔ ده۔

کِتَابِيَهْ : یعنی هغه عملنامه چه ملائکو دهٔ لپاره لیکلے ده او ددهٔ عملونه ئے پکښې راجمع کړیدی۔

هَاؤُمُ: دا اسم فعل دے دوه معنے لری، یعنی راشئ (ابن زیدؒ) یا ونیسئ۔

کسائیؒ وائی : چه هاء په معنئ د اخستو دے لکه په حدیث د ابواب الربا کښې دی : (اِلَّا هَاءَ وَهَاءَ) (متفق علیه) او کله چه ورپورے میم پیوسته شی نو مفرد او تثنیه او جمعه پکښې یو شان وی۔ او بعض علماؤ وئیلی دی چه هاؤم مجموعه یوه کلمه ده چه عرب ئے د خوشحالئ په وخت کښې استعمالوی۔

په کتابیه، حسابیه، سلطانیه او مالیه کښې هاء د سکتے ده۔

علماء وائی چه دنیا کښې ریاکاری جائز نهٔ ده، او بنده به ئے په آخرت کښې کوی چه

اُوكورئ زما څو مره ښكلے عملونه وو.

اِقْرَءُوْا: د ډيرے خوشحالئ د وجه نه خپله عملنامه په بل چا باندے لولوى.

اِنِّیْ ظَنَنْتُ: اَیْ اَیْقَنْتُ وَعَلِمْتُ (يعنى ما يقين كاوه او پدے پوهه وم)

ضحاكؒ وائى: هر ظن چه په قرآن كريم كښې د مؤمن د طرفنه ذكر شى، نو هغه په معنىٰ د يقين وى، او د كافر نه په معنىٰ د شك وى.

مجاهدؒ وائى: ظن چه د آخرت په باره كښې استعمال شى، نو په معنىٰ د يقين وى، او د دنيا په باره كښې په معنىٰ د شك وى.

حسن بصرىؒ پدے آيت كښې فرمائى:

[اِنَّ الْمُؤْمِنَ اَحْسَنَ الظَّنَّ بِرَبِّهٖ فَاَحْسَنَ الْعَمَلَ لِلْاٰخِرَةِ وَاِنَّ الْكَافِرَ اَسَاءَ الظَّنَّ بِرَبِّهٖ فَاَسَاءَ الْعَمَلَ]

د مؤمن په الله باندے ښهٔ گمان وو نو د آخرت دپاره ئے هم ښه ښائسته عمل وكړو، او د كافر په خپل رب باندے بد گمان وو نو عمل ئے هم بد وكړو. (فتح البيان)

مُلٰقٍ حِسَابِيَهْ: دا يوه جامعه جمله ده، او ډير اُوچت نصيحت دے او هغه دا چه عمل د چا كله جوړيږى؟ دا هله چه د آخرت نه ويريږى، او د الله د حساب نه ويريږى، كوم انسانان چه د الله د حساب نه ويريدل نو د هغوى به ضرور اصلاح كيږى، ايمان به ئے هم جوړيږى او عمل او اخلاق به ئے هم جوړيږى، او د گناه نه به توبه وباسى.

او كوم خلق چه د حساب نه نهٔ يريږى نو هغه ددے دپاره تيارے نهٔ كوى، نو د هغوى به ټول اعمال غلط وى، دا گناهونه او اسرافونه او فسادونه چه كيږى نو ددے وجه همدا ده چه بنده گان د الله د حساب نه نهٔ يريږى. لكه د سلفو واقعات ددے په باره كښې مطالعه كړه چه د حساب د يرے د وجه نه به ئے د ډيرو خبرو نه او د چا د وهلو نه هم ځان ساتلو، په چا باندے د خپو اړولو او د چا په ځپلئ باندے د خپے كيخودو نه به ئے هم ځان ساتلو. په وړو وړو خبرو هم الله تعالىٰ حساب كوى.

﴿فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهٗ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهٗ﴾.

او پدے يوه جمله كښې مونږ ته الله تعالىٰ دعوت راكړو چه زما د حساب نه يره وكړئ.

فَهُوَ فِیْ عِيْشَةٍ: الله تعالىٰ د داسے نيك انسان انجام دا اوښودلو چه دهٔ ته به د جنت په بالا خانو كښې د خوشحاليو او راحتونو نه ډكه زندگى ملاؤ شى.

ددے جنت ميوه به په هر حال كښې دهٔ ته نزدے وى، دوئ چه كله هم ددے نه څهٔ ميوه

خوړل غواړی دهٔ تـه بـه نـزدے راشی۔ او دویٔ ته به د عزت زیاتولو په توګه وئیلے کیږی چه تاسو ټول خوشحاله او سیږیٔ او څهٔ چه غواړیٔ خوریٔ، او څهٔ چه غواړیٔ څکیٔ، دا جنت او ددے ټول نعمتونه تاسو ته ستاسو د هغه نیکو عملونو په وجه ملاؤ شوی دی چه هغه تاسو د دنیا په ژوند کښې کړی دی۔

فِیْ عِیْشَةٍ رَّاضِیَةٍ : ژوند بـه خوشحاله وی، یعنی صاحب د ژوند به خوشحاله وی۔ یا رَاضِیَة په معنیٰ د ذَاتُ رِضًی سره یعنی خوشحالیٔ والا ژوند۔ او دا فاعل ذُوْ ګذَا دے۔لکه د تَامِرٌ او لَابِنٌ په شان۔

فِیْ جَنَّةٍ عَالِیَةٍ : یـعـنـی داسے جنت بـه وی چـه په هغے کښې به بنګلے او درجے اُوچتے وی۔ / یا د هغے شان په نفسونو کښې اُوچت دے۔

قُطُوْفُهَا: جمع د قِطْفٌ ده، شوکولے شوے میوے۔ / غونچکونه۔

دَانِیَةٌ: نـزدے دی چه هر ناست، ولاړ، پروت او تکیه وهونکی ټولو ته به برابرے وی۔ هیڅوك به ئے په راشوکولو کښې هیڅ تکلیف نهٔ محسوس کوی۔

اَسْلَفْتُمْ فِی الْاَیَّامِ الْخَالِیَةِ : تیرے شوو ورځو کښې۔ یعنی د دنیا ژوند۔ مجاهدؒ وائی : ددے نه اَیَّامُ الصِّیَام (د روژو ورځے) دی چه پدے کښې ډیر عملونه کیږی۔

او په اسلفتم کښې اشاره ده د دوی ډیرو اعمالو ته۔

په مـلاق حسـابیـه کـښې اشاره شوه سبب د صفائی د عملنامے ته د ګناهونو نه، چه ګناهونه مے څکه ختم شویدی چه زهٔ د حساب نه یریدم، او دلته وائی چه دا عملنامه په ښی لاس ولے ملاؤ شوه؟ څکه چه نیك اعمال ئے کړیدی۔

وَاَمَّـا مَنْ اُوتِیَ کِتَابَهٗ : او پـه دے ورځ چه د چا عـمـلـنـامه د هغهٔ په کس لاس کښې ورکړے شی، هغه به بدبخت او نامراده وی، او د سخت غم او خفګان د وجے نه به اووائی چه اے کاش ! زما عملنامه ماله نهٔ وے راکړے شوے، او ماته زما حساب معلوم شوے نهٔ وے۔ او داسے نـاخبره پاتے شوے لکه څنګه چه په دنیا کښې جاهل وم۔ اے کاش ! په دنیا کښې چه ماله کوم مرګ راغلے وو، د هغے نه پس زهٔ ژوندے کړے شوے نهٔ وے۔

وَلَمْ اَدْرِ مَا حِسَابِیَهْ: دا عطف دے په (لَمْ اُوْتَ) باندے نو د یَالَیْتَنِیْ د لاندے دے لکه چه مخکښې ئے مطلب بیان شو۔ یا په یَا لَیْتَنِیْ عطف دے، نو د (فَیَقُوْلُ) لاندے دے۔

مـطـلـب دا دے چه دا بـه هـم وائـی چه زهٔ نـهٔ پو هیدم په دنیا کښې چه حساب لا څه ته

وائی۔ یعنی ما سره په دنیا کښں د خپلو عملونو د حساب غم او پرواه نۀ وه۔ اول مطلب غوره دے۔

**يَا لَيْتَهَا** : دا ضمیر اولنی مرګ ته راجع دے۔ یعنی دغه اولنی مرګ په ما فیصله د ختمیدو کړے وے او آخرت ته نۀ وے راژوندے شوے۔

**مَا أَغْنَى عَنِّي مَالِيَهْ**: جهنمی به د خپل افسوس او نامرادئ مزید اظهار وکړی وبه وائی چه زما مال نن زۀ د الله د عذاب نه بچ نۀ کړے شوم،

ما استفهامیه ده۔ یا نافیه ده۔ یعنی څه فائده راکړه ما ته مال زما۔

یا فائده رانکړه ما ته مال زما۔ یا دفع نکړو ما نه عذاب لره مال زما۔

یا په (مالیه) کښں ما موصوله ده۔ اَیِ الَّذِیُ لِیُ۔ فائده رانکړه ما ته هغه مرتبے او مالونو او مشرئ او نسب کوم چه زما په دنیا کښں وو۔

**هَلَكَ عَنِّي سُلْطَانِيَهْ**: ۱- اَیُ ضَلَّتُ وَغَابَتُ ۔ ورك شو او ختم شو زما نه حجت او دلیل زما۔ ۲- یا ختم شو زما نه قدرت او طاقت زما۔

یعنی زما بادشاهی، لښکر، جنګی سامانونه، او زما قوت او زما زور او زما بحثونه او جګړے او دلیلونه هیڅ هم زما په کار رانغلۀ۔ هر څۀ ورك شول، او د غم او خفګان او درد نه سوئ اوس زما سره هیڅ هم پاتے نشو۔

| |
|---|
| خُذُوهُ فَغُلُّوهُ ﴿۳۰﴾ ثُمَّ الْجَحِيمَ صَلُّوهُ ﴿۳۱﴾ ثُمَّ فِي |
| اُونیسئ دۀ لره نو طوقونه ورواچوئ دۀ ته۔ بیا جهنم کښں داخل کړئ دۀ لره۔ بیا په |
| سِلْسِلَةٍ ذَرْعُهَا سَبْعُونَ ذِرَاعًا فَاسْلُكُوهُ ﴿۳۲﴾ |
| زنځیر کښں چه اُوږدوالے د هغے (ګزونه د هغے) اویا ګزه دی نو داخل کړئ دۀ لره۔ |
| إِنَّهُ كَانَ لَا يُؤْمِنُ بِاللَّهِ الْعَظِيمِ ﴿۳۳﴾ وَلَا يَحُضُّ عَلَىٰ طَعَامِ |
| یقیناً دۀ ایمان نۀ راوړو په الله تعالیٰ چه لوی دے۔ او تیزی ئے نۀ ورکوله په خوراك |
| الْمِسْكِينِ ﴿۳۴﴾ فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ هَاهُنَا حَمِيمٌ ﴿۳۵﴾ وَلَا طَعَامٌ إِلَّا مِنْ |
| د مسکین۔ نو نشته دۀ لره نن ورځ دلته مخلص دوست۔ او نۀ خوراك مګر د |

| غِسْلِيْنٍ ﴿٣٦﴾ لَا يَأْكُلُهٗۤ اِلَّا الْخَاطِئُوْنَ ﴿٣٧﴾ |
| --- |
| زخمونو د وینو زوو نه۔ نهٔ به خوری دا مګر ډیر ګناهګاران۔ |

**تفسیر** : پدے افسوسونو کار نهٔ کیږی بلکه دے وخت کښ به الله تعالیٰ ملائکو ته حکم وکړی چه دا اونیسئ، او ددهٔ لاسونه څټ سره اوتړئ، ځکه چه دهٔ دنیا کښ ډیره آزادی کړے وه (دا قانون دے چه څوك دنیا کښ آزادی کوی او د الله د حکمونو پابندی نهٔ کوی نو هلته به تړلے کیږی۔

دلته حافظ ابن کثیرؒ د ابن ابی حاتمؒ روایت راوړیدے د منهال بن عمرو رحمه الله نه :

[اِذَا قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ ﴿ خُذُوْهُ﴾ اِبْتَدَرَهٗ سَبْعُوْنَ اَلْفَ مَلَكٍ)

چه کله الله تعالیٰ ملائکو ته دا حکم وکړی چه (خُذُوْهُ) دے راونیسئ، نو دا حکم به دومره په جلتئ واخلی چه اویا زره ملائك به وریسے رامنډه کړی۔

او فُضیل بن عیاضؒ فرمائی : [اِبْتَدَرَهٗ سَبْعُوْنَ اَلْفَ مَلَكٍ، اَيُّهُمْ يَجْعَلُ الْغُلَّ فِيْ عُنُقِهٖ)

اویا زره ملائك به وریسے رامنډه چه کوم د دوی نه ددهٔ په څټ کښ طوق واچوی۔

دے نه معلومیږی چه الله به ورته سخت په غضب وی نو ملائك او هر شے به ورته په غضب وی۔

نو دا به څومره هیبتی حالت وی چه انسان ئے تصور نشی کولے، دنیا کښ چه یو تن پسے لس پولیس راشی نو څومره هیبت پرے راشی چه رنګ ئے زیړ شی حال دا چه د دنیا جیل هم د آخرت په نسبت هیڅ جیل نهٔ دے۔

فَغُلُّوْهُ: اَیْ اِجْمَعُوْا یَدَهٗ اِلٰی عُنُقِهٖ۔ (بغوی) ددهٔ لاسونه څټ پورے وتړئ۔

ثُمَّ الْجَحِيْمَ : بیا دا د جهنم په لمبو باندے اُوسوزوئ او وائے روئ را وائے روئ، بیا دا د جهنم د ګرم زنځیرونو نه په یو زنځیر کښ داسے اُوپیلئ چه ددهٔ په دُبر کښ ئے ننباسئ او د خُلے نه ئے ورله را اوباسئ، دے دپاره چه په دے کښ زوړند وی۔

نو دا به کوم تصویر وی چه لاسونه او خپے ئے څټ سره تړل شوی وی، او په خوله کښ ورته تر لاندے حصے پورے زنځیر اچولے شوے وی۔ ددے نه بل لوی ذلت نشی کیدے۔

اَعَاذَنَا اللهُ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ۔

د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دی : [يُسْلَكُ فِيْ دُبُرِهٖ حَتّٰى يَخْرُجَ مِنْ مَنْخِرَيْهِ، حَتّٰى

لَا یَقُوْمُ عَلٰی رِجْلَیْهِ]۔ دا به ورته په لاندے طرف کښې ورداخل کړے شي او په پوزه به راوځکلے شي دے دپاره چه په خپو باندے ودریدو ته هم وزرګار نشي۔ (ابن کثیر، بغوی)

سَبْعُوْنَ ذِرَاعًا : دا د الله تعالیٰ اندازه کړی ګزونه وی۔

ابن عباس ﷺ فرمائی : بِذِرَاعِ الْمَلَكِ۔ د ملائکو ګزونه به وی۔

کعب الاحبارؒ وائی : [کُلُّ حَلْقَةٍ مِنْهَا قَدْرَ حَدِیْدِ الدُّنْیَا] ۔ د هغه زنځیر هره کړئ د ټولے دنیا د وسپنے په اندازه ده۔ (ابن کثیر)

اِنَّهٗ كَانَ لَا یُؤْمِنُ: اُوس جهنم ته د داخلیدو سبب بیانوی۔ یعنی دا بدبخت ددے بدترین انجام حقدار ځکه جوړ شو چه دهٔ په لوی الله ایمان نهٔ لرلو،

د الله نهٔ منل (۱) یو دا دی چه د الله وجود نهٔ منی لکه دهریان۔

(۲) یا څوك ورسره برخه داران جوړوی لکه د مکے مشرکانو الله منلو لیکن هغه سره ئے شریکان جوړول۔ نو دوی هم بے ایمانه وو۔

(۳) د الله نهٔ منل دا هم دی چه څوك د هغه ملاقات نهٔ منی،

(٤) د هغهٔ دپاره هیڅ عمل نهٔ کول۔

وَلَا یَحُضُّ عَلٰی طَعَامِ الْمِسْكِیْنِ: اَیْ نَفْسَهٗ وَلَا غَیْرَهٗ ۔یعنی مسکینانو ته د خوراك ورکولو ترغیب به ئے نهٔ خپل ځانته ورکولو، او نهٔ نورو ته، خپله انتهائی درجه بخیل وو، او نور به ئے هم د الله دپاره مسکینانو ته د خوراك ورکولو نه بندول۔

مفسرین لیکی چه د سعادت او نیك بختئ او کامیابئ دارو مدار د الله لپاره د اخلاص او مخلوق سره په احسان کولو باندے دے، او دا بد بخت ددے دواړو صفتونو نه محروم وو۔ یعنی دهٔ کښې یو بے ایمانی ده، او بل پکښې قسوتِ قلب دے۔ د الله په بندګانو باندے پکښې شفقت نهٔ وو۔ نو دهٔ کښې تعظیم د امر الله هم نهٔ وو او شفقت عَلٰی عِبَادِ الله هم نهٔ وو۔

اهل علم وائی : خُلِقَتِ النَّارُ لِاِذَابَةِ الْقُلُوْبِ الْقَاسِیَةِ۔

الله اُور ددے دپاره پیدا کړیدے چه پدے سره سخت زړونه ویلی کړی۔

او رسول الله ﷺ فرمائی :

(اَهْلُ الْجَنَّةِ ثَلَاثَةٌ ......وَرَجُلٌ رَحِیْمٌ رَقِیْقُ الْقَلْبِ لِكُلِّ ذِیْ قُرْبٰی وَمُسْلِمٍ)

(مسلم : ۱۹۷۳ طبع بیروت)

هغه سړے جنتي دے چه رحم دل او نرم زړه والا وي هر خپلوان او مسلمان ته. (چه نهٔ ئے په بیمار، او نهٔ په مصیبت زده او نهٔ په غریب باندے زړه سوزي نو دا جهنمي زړه دے) دارنګه دے کښې اشاره ده چه ددهٔ په آخرت باندے ایمان نهٔ وو ځکه چه مسکینانو ته په خوراك ورکولو کښې څه دنیاوي بدله نهٔ طلب کیږي بلکه خلق ئے صرف د الله د رضا او د آخرت د ثواب په امید ورکوي.

ددے تحقیق نه دا اعتراض ختم شو چه څوك وائي چه مسکینانو ته طعام ورکول خو مستحب عمل دے، نو ددے په ترك باندے څنګه جهنم ته لاړو؟.

دلته مطلب دا نهٔ دے چه دا صدقه نفلي ده یا فرضي، بلکه ددے انسان د زړهٔ کیفیت بیانول دي چه په دهٔ کښې د الله عظمت نشته او د الله په مخلوق باندے شفقت نشته.

صاحب د فتح البیان لیکي : دا دوه صفتونه ئے خاص کړل، ددے وجه دا ده چه د ټولو عقائدو نه ناکاره عقیده کفر بالله دے، او د ټولو خویو نه ګنده خوئي بخل او قسوت قلب دے.

حسن بصريؒ وائي : ما داسے اقوام موندلي دي چه هغوي به په خپل اهل باندے دا عزم (پابندي) کړے وو چه دوي به سائل (سوالګر) نهٔ رد کوي.

او بعضو (لکه ابو درداء ﷺ) به خپل اهل ته د مسکینانو دپاره د ښوروا د زیاتولو حکم کولو، او دا به ئے وئیل چه مونږ د جهنم نیمه کړئ په ایمان بالله سره ویستلے ده، نو نوره نیمائي کړئ په طعام ورکولو سره ولے نهٔ وباسو.

(البحر المحیط والدر المصون والتفسیر المنیر)

وَلَا يَحُضُّ : فَضْلًا عَنْ بَذْلِهٖ لَهٗ. یعني تیزي ئے نهٔ ورکوله پاتے لا دا چه مسکین ته خوراك ورکړي.

فَلَيْسَ لَهُ الْيَوْمَ: ددے بدبخته جهنمي نور حال بیانوي چه نن (یعني د قیامت په ورځ) به ددهٔ هیڅ رشته دار یا دوست نهٔ وي، چه هغه ددهٔ لپاره سفارشي جوړ شي، او دے د الله د عذاب نه بچ کړي. په سورتِ غافر (۱۸) آیت کښې الله تعالیٰ وفرمایل :

﴿وَاَنْذِرْهُمْ يَوْمَ الْاٰزِفَةِ اِذِ الْقُلُوْبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كٰظِمِيْنَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ حَمِيْمٍ وَّلَا شَفِيْعٍ يُّطَاعُ﴾

(او دوئ ډیر نزدے راتلونکي (قیامت) نه خبر کړه، هر کله چه زړونه مریو پورے را اورسي او ټول به خاموش وي او د ظالمانو به نهٔ کوم ولي او دوست وي او نهٔ سفارشي چه

د هغهٔ خبره اومنلے شی)۔
او دے بدبخت لـه بـه د خوراك لپاره د جهنمیانو د وینے او نَو نه سویٔ بل هیڅ هم نهٔ ملاویږی۔ دا بدترینه خوراکه به صرف کافران او مجرمان خوری کومو چه د الله اوامر او منع کړی څیزونه شاته گذارلی وو او قصدًا به ئے گناهونه او جرمونه کول۔
حَمِیۡمٌ: دا هغه قریب دوست دے چه په وخت د تکلیف د دوست کښِ په هغه باندے گرمی د غم راځی۔
غِسۡلِیۡنٍ: ١ – هغه وینے او زوے چه د جهنمیانو د زخمونو نه بهیږی۔
٢ – کُلُّ شَیۡءٍ اِذَا غَسَلۡتَهٗ فَخَرَجَ مِنۡهُ شَیۡءٌ فَهُوَ غِسۡلِیۡنٌ۔ (بخاری)
زخم چه کله تهٔ وینځے او د هغے نه څه گندونه راوځی دغے ته غسلین وائی۔ یعنی وینځلے شوی گندونه او وینے۔
٣ – ضحاکؒ او ربیع بن انسؒ وائی: دا یوه ونه ده چه اُور والا به ئے خوری۔ (لیکن دا بعیده ده)
٤ – ابن عباس ﷺ نه نقل دی چه دا د جهنمیانو د طعامونو نه یو طعام دے۔
او په روایت د حاکمؒ کښِ د ابوسعید خدری ﷺ نه مرفوعاً نقل دی:
[لَوۡ اَنَّ دَلۡوًا مِنۡ غِسۡلِیۡنٍ یُهۡرَاقُ فِی الدُّنۡیَا لَاَنۡتَنَ اَهۡلُ الدُّنۡیَا]
المستدرك (٢/ ٥٠١) وقال الذهبی :صحیح)
که د غسلین نه یوه بوقه دنیا ته راوړے شی نو ټولے دنیا والا خلق به بدبویه شی۔
**وَلَا طَعَامٌ اِلَّا مِنۡ غِسۡلِیۡنٍ:**
**سوال** دا دے چه دلته ئے حصر د طعام په غسلین کښِ کړے او په سورة الغاشیه (٦) آیت کښِ حصر د طعام د دویٔ په ضریع کښِ کړیدے؟
اول جواب دا دے چه مجرمان مختلف قِسمونه او طبقات دی، نو دا حصر په اعتبار د دغه اقسامو سره دے۔ یعنی چا ته به غسلین ورکولے شی او چا ته به ضریع۔
٢ – یا دا حصر په اعتبار د مختلفو اوقاتو سره دے۔ یعنی په دغه یو وخت کښِ به ئے طعام صرف غسلین وی، او په بل وخت کښِ به ضریع وی۔
بیا په قرآن کریم کښِ د جهنمیانو دپاره مختلف قسمه طعامونه ذکر شویدی، ضریع، شَجَرَةُ الزقوم، ﴿مَا یَاۡکُلُوۡنَ فِیۡ بُطُوۡنِهِمۡ اِلَّا النَّارَ﴾ نو دا قسماقسم عذابونه د ټولو جهنمیانو

دی یا د مختلفو طبقانو دی.

إِلَّا الْخَاطِؤُونَ: نـه مـراد هغهٔ نه دی چه غیر اختیاری ترے د گناه کار وشی بلکه ددے نـه مـراد هـغـه خـلق دی چه قصداً گناهونه کوی لکه مشرکان او د الله په بندگانو باندے سختی کونکی.

ابن عباس رضی الله عنه دلته په مشرکانو سره تفسیر کریدے.

نو دا د خطیئة نه دے، چه گناه ته وئیلۓ شی او د خطاء نه نهٔ دے.

| فَلَا أُقْسِمُ بِمَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۳۸﴾ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ ﴿۳۹﴾ |
|---|
| پس قسم کوم زهٔ په هغه څه چه تاسو ئے وینئ. او په هغه څه چه تاسو ئے نهٔ وینئ. |
| إِنَّهٗ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ ﴿۴۰﴾ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ قَلِيْلًا مَا |
| یقیناً دا قرآن خامخا وینا د رسول عزتمند ده. او نهٔ دے دا وینا د شاعر، ډیر لږ |
| تُؤْمِنُوْنَ ﴿۴۱﴾ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ قَلِيْلًا مَّا تَذَكَّرُوْنَ ﴿۴۲﴾ |
| ایمان راوړئ تاسو. او نهٔ ده وینا د جوگی، ډیر لږ نصیحت اخلئ تاسو. |
| تَنْزِيْلٌ مِّنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ ﴿۴۳﴾ |
| نازل کړے شویدے د طرف د رب العالمین نه. |

**تفسیر** : اُوس د قـرآن کـریم او د رسول الله ﷺ صـدق (رشتینـوالے) او حقانیت او پـه مشـرکـانو باندے رد دے چه هغوی به ددے نه انکار کولو. او د هغوی ددے سوال جواب دے چه هغوی وائی: دا قرآن قول د شاعر یا کاهن دے.

الله تـعـالیٰ وفرمایل چه اے خلقو! زهٔ په ټولو څیزونو باندے قسَم خورم چه هغه تاسو وینـئ، او کـوم چه تاسو نهٔ وینئ، یعنی په تمامو مخلوقاتو باندے، او په خپل پاك ذات بـانـدے قسَم خورم چه زما رسول (ﷺ) رشتینـے دے، او هغهٔ دا قرآن د خپل رب له اړخه خـلـقـو تـه آوروﻟـے دے، دا د کوم شاعر وینا نهٔ ده لکه څنګه چه تاسو دروغژنه پروپیګنډه کوئ. حقیقت دادے چه تاسو د ایمان د دولت نه محرومه یئ.

کـه چرے تاسو مومنان وے، او د نبی کریم ﷺ پـه صـفتونو او خویونو کښی مو غور او

فکر کولے، نو ستاسو لپاره به د روښانه نمر غوندې دا خبره واضحه شوې وي چه دا واقعي د الله رسول دے، او کوم قرآن چه دهٔ راوړے او دے پرے رالیږلے شوے دے هغه د الله کلام دے۔

## ربط او مناسبت

او ددے ربط د ماقبل سره دا دے چه قیامت باندے د یقین کولو دپاره ایمان په قرآن کریم باندے ضروری دے، او دا قرآن کریم دا مسئله ثابتوی چه قیامت راتلل حق دی۔ لکه چه په ابتداء د سورت کښې بیان شو۔

**فَلَآ اُقْسِمُ:** کښې (لَا) زائده ده، دپاره د تاکید۔ یا لا نفی ده د نورو څیزونو۔ یعنی انکار نهٔ دے پکار۔

**بِمَا تُبْصِرُوْنَ وَمَا لَا تُبْصِرُوْنَ:** ددے نه مراد ټول مشاهدات او مغیبات دی۔ که دنیاوی امور وی او که اخروی، محسوسات وی او که معقولات، اجسام وی او که ارواح د بشر وی او که جنات وغیره۔ بیا انسانان کم څیزونه وینی او ډیر ترے غائب دی۔

## د قسم او د جواب قسم مناسبت په ډیرو طریقو سره دے،

۱- اول دا چه دا ټول کائنات ظاهری او معنوی د قرآن په رشتینوالی باندے دلالت کوی چه دا کلام د الله تعالیٰ دے۔

۲- دویم دا چه لکه چه څیزونه دوه قسمه دی، بعض تاسو ته ښکاریږی او بعض ستاسو د نظر نه پټ دی، لیکن تاسو ئے منئ، نو دغه رنګ قرآن وحی ده د الله تعالیٰ د طرف نه اګرکه تاسو نه ددے کیفیت غائب دے لیکن پکار ده چه تاسو ئے ومنئ۔

۳- دریم: ټول عالَم که ښکاری او که غائب وی هغه د قرآن کریم د حقانیت ګواهی ورکوی، ولے که دا قرآن حق نهٔ وے نو د بره عالَم نه به الله تعالیٰ پدے رسول باندے داسے عذابونه رالیږلی وے چه ډیر ناشنا به وے، او دا قرآن به ئے ورله ګډوډ کړے وے۔ یعنی پدے هر څه کښې نښه شته د رسول الله ﷺ د صدق۔ لکه رسول الله ﷺ خپله هم فرمایلی وو: [لَيْسَ شَيْءٌ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ اِلَّا يَعْلَمُ اَنِّيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِلَّا عَاصِي الْجِنِّ وَالْاِنْسِ]

(مسند احمد: ۱٤۳۷۲) صحیح لغیره والدارمی: ۱۸)

د آسمان او د زمکے ترمینځ هیڅ داسے څه څیز نشته مګر هغه پدے پوهیږی چه زهٔ د

الله رسول یم سویٔ د نافرمان پیریانو او انسانانو نه۔
او په روایت د طبرانی کبیر (۱۸۱۲۸) کښې دی : [اِلَّا کَفَرَةَ اَوْ فَسَقَةَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ]
مګر کافران او فاسقان د پیریانو او انسانانو۔
**لَقَوْلُ رَسُوْلٍ کَرِیْمٍ** : ۱- ددے نه مراد جبریل ﷺ دے۔
۲- یا نبی ﷺ هم مراد کیدے شی، دواړه صحیح دی۔
بیا **سوال** دے چه هرکله دا د جبریل ﷺ یا د نبی کریم ﷺ وینا شوه نو بیا د مخلوق کلام شو؟ **جواب** دا دے چه دلته د رسول لفظ استعمال شویدے، او رسول خو د مُرسل کلام وائی، ځکه چه رسول استازی ته وائی، او د الله د استازی خبره دا بعینهٖ د الله خبره وی۔ او چه خپله خبره ئے وکړه نو بیا خو هغه رسول (استازے) نشو۔
**کَرِیْمٍ**: کرم دے ته وائی چه د هر شی لائق کمالات په یو شی کښې راجمع کیدل، نو د بشریت ټول کمالات په رسول الله ﷺ کښې راجمع کړے شوی وو۔
دارنګه جبریل ﷺ کښې د مَلَکِیت ټول کمالات راجمع دی۔
**قَلِیْلًا مَّا تُؤْمِنُوْنَ**: یعنی ستاسو ایمان ډیر کم دے۔ او هغه دا چه الله صرف خالق ګنړئ یا د تکلیف په وخت ورته فریادونه کوئ۔
بغویؒ وائی : د قلیل نه مراد نفی د ایمان ده۔ یا په تاسو کښې ایمان راوړونکی کم دی۔
**وَلَا بِقَوْلِ کَاهِنٍ**: کاهن هغه سړے دے چه د غیبو خبرونه بیانوی چه اکثر دروغ وی، په دعویٰ د علم غیب سره په ذریعه د نجومو، یا د حساب سره، او د هغے سبب شیطانان دی لکه په سورة شعراء کښې ذکر شویدی۔
قرآن ځکه شعر نهٔ دے چه شعر هغه مُقفّٰی کلام دے چه مقصد پکښې وزن وی او اکثر په مبالغاتو یا په دروغو باندے مشتمل وی، او کهانت خو د دروغو غیبی خبرونه ورکول دی چه د شیطانانو نه آوریدلے شوی وی۔
دارنګه په قرآن کښې خو د شعر او کهانت او سحر بدی ذکر شویده، نو معلومه شوه چه قرآن پخپله شعر، کهانت او جادو نشی کیدے۔
**قَلِیْلًا مَّا تَذَکَّرُوْنَ** : **فائده** : په اول آیت کښې ئے نفی د ایمان، او په دویم کښې نفی د تذکر وکړه، ددے حکمة دا ښکاره کیږی چه د قرآن مشابهت د شعر سره بیخی نشته، نو هلته ئے ایمان لفظ راوړو چه هرکله دا شعر نهٔ دے نو بیا خو تاسو له پدے باندے ایمان

او یقین راوړل پکار دی۔
او په دویم کښې ئې تذکر راوړو ځکه چه د کهانت د قرآن سره لږ څه ظاهری مشابهت شته، هغه دا چه کاهنان هم د راتلونکې زمانې د غیبو خبرونه ورکوی او رسول الله ﷺ به هم ورکول نو د هغې سره ئې التباس شته خو چه د رسول الله ﷺ په احوالو کښې لږ تذکر او سوچ وکړې او خبره رایاده کړې، او د قرآن کریم په معانیو کښې فکر وکړې چه هغه د کهانت د طریقې او د هغوی د اقوالو بیخی مخالف دی، نو التباس ختمیږی خو ډیر لږ خلق تذکر اخلی۔ (فتح البیان)
ځینی مفسرین وجه داسې بیانوی چه د شاعر په کلام باندې عادةً عقیده او یقین نهٔ حاصلیږی صرف د ذهن تفریح وربانده راځی نو ایمان وربانده نهٔ حاصلیږی، او د کاهن په خبرو باندې خلق تصدیق او یقین خو کوی لیکن په هغې کښې تذکیر او نصیحت مقصد نهٔ وی نو د هر یو سره ئې د هغې مناسب لفظ راوړیدے۔ (احسن الکلام)
تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ : دا خبر د مبتداء محذوفې دے اَیْ هُوَ یعنی دا قرآن خو نازل شویدے د رب العالمین د طرفنه۔ او د هغهٔ نازلول دی۔
د مشرکانو د شبهاتو رد کولو نه پس، الله تعالیٰ د تاکید په توګه وفرمایل چه په دے کښې هیڅ شك نشته چه قرآن کریم د رب العالمین کلام دے، دا د کوم انسان کلام نشی کیدے۔ ځکه ددے کلام عظمت، ددے جلال او په زړهٔ او دماغو باندې ددے ناشنا پریوتونکے اثر په دے خبره دلالت کوی چه ددے متکلم هغه الله دے چه هغه د عظمت او جلال او لوییٔ والا دے۔
په رب العالمین لفظ کښې درے اشارے دی :
(۱) یو دا چه پدے قرآن سره د الله په ربوبیت باندې ایمان او یقین حاصلیږی۔
(۲) دویم دا چه الله تعالیٰ ددے دپاره نازل کړیدے چه الله تعالیٰ پدے سره د بندګانو تربیت کوی، نو داسې د تربیت کتاب باندې څنګه اعتراضونه کوئ۔
(۳) دریم دا چه دا د ټول عالَم دپاره کتاب دے په یو قوم او زمانه پورے خاص نهٔ دے۔
**فائده :** امیر المؤمنین عمر بن خطاب رضی الله عنه فرمائی :
ما ددے آیتونو په ذریعه ایمان راوړیدے، رسول الله ﷺ په مکه کښې وو په مسجد حرام کښې ئې مونځ کولو، زمونږ د مشرکانو ورسره ډیره سخته ورانه وه، نو یوه ورځ زهٔ ورسره

خوا کښې کیناستم هغه سورة الحاقه لوستله، نو ما ووېل چه ډېر غټ شاعر دے چه ډېر ناشنا مُقفٰی کلام وائی۔

خو کله چه پدے آیت ﴿وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ﴾ باندے راتیر شو نو ما ووېل چه زما د زړه نه خبر شو، دا خو کاهن دے خو چه دائے ووېل (وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ) دا د کاهن کلام نهٔ دے نو زما په زړه کښې ایمان واقع شو۔ (مسند احمد : ۱۰۷) رجاله ثقات الا انه منقطع)

د عمر ﷺ د ایمان د راوړو درے څلور وجے وے یو په هغے کښې ددے آیتونو آوریدل وو۔

| |
|---|
| وَلَوْ تَقَوَّلَ عَلَيْنَا بَعْضَ الْأَقَاوِيلِ ﴿٤٤﴾ لَأَخَذْنَا |
| او که چرته دهٔ جوړ کړی وے په مونږ باندے بعض خبرے (دروغ)۔ خامخا رانیولے به وو |
| مِنْهُ بِالْيَمِينِ ﴿٤٥﴾ ثُمَّ لَقَطَعْنَا مِنْهُ الْوَتِينَ ﴿٤٦﴾ فَمَا |
| مونږ دهٔ نه ښیے لاس۔ بیا به خامخا پریکړے وو مونږ دهٔ نه رګ د څټ۔ نو نهٔ به وے |
| مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِينَ ﴿٤٧﴾ وَإِنَّهُ لَتَذْكِرَةٌ |
| ستاسو نه هیڅ یو تن دهٔ بچ کونکے۔ او یقیناً دا قرآن خامخا نصیحت دے |
| لِلْمُتَّقِينَ ﴿٤٨﴾ وَإِنَّا لَنَعْلَمُ أَنَّ مِنْكُمْ مُكَذِّبِينَ ﴿٤٩﴾ |
| دپاره د متقیانو۔ او یقیناً خامخا مونږ ته معلومه ده چه یقیناً بعض ستاسو نه دروغ |
| وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ ﴿٥٠﴾ وَإِنَّهُ |
| ګڼرونکی دی (حق لره) او یقیناً دا خامخا افسوس دے په کافرانو باندے۔ او یقیناً دا |
| لَحَقُّ الْيَقِينِ ﴿٥١﴾ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ ﴿٥٢﴾ |
| (قرآن) خامخا حق دے یقینی۔ نو پاکی وایه د نوم د رب ستا چه لوی دے۔ |

**تفسير:** اُوس د رسول الله ﷺ صدق په بل انداز بیانوی، د مکے مشرکانو ته وائی چه تاسو ددے نبی نه انکار کوئ، که چرے محمد ﷺ زما نبی نهٔ وے او دروغجن وے، او مونږ ته ئے د دروغو نسبت کړے وے، نو تاسو ترے خلاص وئ، ما ورله سزا ورکوله، د هغهٔ د مرئ هغه رګ به مو پریکړے وے کوم چه زړهٔ طرفته تلے دے، او هغه به هلاک

شوے وے، او په تاسو کښې هیڅوا به مونږ ددے کار نه منع کړی نهٔ وے،

لیکن الله داسے ونهٔ کړل، بلکه هغهٔ خپل رسول ﷺ د معجزاتو په ذریعه مضبوط کړو، قرآن ئے نازل کړو، او د دے د رشتین والی دلیل ئے پیش کړو، د دشمنانو خلاف ئے د دهٔ مدد اوکړو، او هغه ئے د هغویٔ د ملکونو مالك جوړ کړو۔

دا ټولے خبرے دلیل دے چه نبی کریم ﷺ د خپل طرفه په قرآن کریم کښې یوه کلمه هم نهٔ ده اضافه کړے، بلکه د قرآن کریم یوه یوه کلمه د الله کلام دے۔

بَعۡضَ الۡاَقَاوِیۡلِ: د بعض اطلاق په یوه خبره هم کیږی۔

لَاَخَذۡنَا مِنۡهُ بِالۡیَمِیۡنِ: یعنی ما به نیولے وے ددهٔ ښے لاس۔ باء په بِالۡیَمِیۡن کښې زیاتی ده لکه د بادشاهانو عادت دے چه کله چا ته سزا ورکوی نو ښے لاس ترے اول پریکړی۔ یعنی مضبوط مے رانیولو۔ یا اخذ نه مراد تړل دی د ښی لاس۔

یا اخذ په معنیٰ د انتقام سره دے او مِنۡهُ په خپله معنیٰ سره دے، او یمین نه مراد قوت او قدرت دے۔ یعنی ما به بدله اخستے وے ددهٔ نه په قوت او قدرت سره۔

الۡوَتِیۡنَ: دا نوم د هغه رګ دے چه د سر نه تر زړه پورے رسیدلے دے، یا رګ د ملا دے۔ چه کله پریکړے شی انسان ترے مری۔ نو قطع د وتین کنایه ده د مرګ د هغهٔ نه۔

فَمَا مِنۡکُمۡ مِّنۡ اَحَدٍ عَنۡهُ حَاجِزِیۡنَ: اَیۡ لَیۡسَ مِنۡکُمۡ اَحَدٌ یَحۡجِزُنَا عَنۡهُ۔

یعنی په تاسو کښې به هیڅوك نهٔ وی چه دے زمونږ نه منع کړی، او دهٔ ته پرده واقع شی۔

نو بیا به دے په الله باندے ستاسو د وجه نه څنګه دروغ ووائی، سره ددے نه چه دے پوهیږی چه که دهٔ دروغ جوړ کړل نو مونږ به سزا ورکوو او تاسو ئے بیا نشئ خلاصولے۔

وَاِنَّهٗ لَتَذۡکِرَةٌ لِّلۡمُتَّقِیۡنَ: بلکه دا قرآن خو د متقیانو دپاره نصیحت دے او متقیان ددے نه د دین او دنیا په هره معامله کښې رڼړا او رهنمائی حاصلوی، په مسلمانانو کښې لوی لوی ربانی (الله والا) علماء، او ائمه پیدا کیږی چه هغویٔ د قرآن کریم د تعلیماتو په رڼړا کښې د مومنانو دینی رهنمائی کوی۔

کوم سورت کښې چه وعیدونه زیات ذکر وی نو هلته به دا جمله وی (وَاِنَّهٗ لَتَذۡکِرَةٌ)۔

وَاِنَّا لَنَعۡلَمُ: پدے آیت کښې الله تعالیٰ وفرمایل چه اے خلقو! مونږ ته ښه پته ده چه په تاسو کښې ځینے خلق د دنیویٔ فائدے له خاطره او د نفس د خواهش په پیرویٔ کښې ددے قرآن تکذیب کوی، مونږ به دویٔ داسے نهٔ پریدو، بلکه د قرآن کریم نه د دویٔ د اعراض

بدله به ضرور ورکوو۔

وَإِنَّهُ لَحَسْرَةٌ عَلَى الْكَافِرِينَ : اُوس فرمائی چه د قیامت په ورځ کله چه کافران او مشرکان اووینی چه قرآن کریم باندے ایمان راوړونکو له انعام ورکړے کیږی، او دوئ جنت طرفته روانیږی، نو د دوئ افسوس به انتهائی سخت شی۔ لکه په سورة انعام (۲۷) آیت او سورة حجر (۲) آیت کښ دی۔

وَإِنَّهُ لَحَقُّ الْيَقِينِ : ۱ – (ہُ) ضمیر قرآن ته راجع دے۔ یعنی دا قرآن کریم د الله حق کتاب دے، په دے کښ د ذرے هومره د شك او شبهے ګنجائش نشته۔

۲ – یا ضمیر حسرة ته راجع دے په معنیٰ د تَحَسُّر سره۔

لحق الیقین پدے کښ اضافت د صفت دے موصوف ته، یعنی امر یقینی واقعی او ثابت دے۔ او دے لفظ کښ فائده دا ده چه بعض وخت د انسان یقین په باطل څیز باندے راشی، نو هغهٔ ته حق الیقین نشی وئیلے کیدے۔ او حق الیقین د علم الیقین نه اُوچته او د عین الیقین نه کوزه مرتبه ده۔

فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ: یعنی هرکله چه الله تعالیٰ داسے یقینی کتاب راولیږلو نو اے زما نبی! تهٔ د خپل دغه لوی رب د نوم پاکی بیانوه د [سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ] وظیفه کوه۔ په مانځه کښ هم او په غیر د مانځه نه هر وخت۔

یعنی الله د هر قسم شریك او عیب نه پاك ګنړه ځکه چه دا د عذابونو نه د بچ کیدو سبب دے، او د قرآن کریم د نازلیدو مقصد هم دا دے چه بندګان د الله تعالیٰ په توحید پوهه شی، او د هغهٔ پاکی په عالَم کښ بیانه کړے شی، او ددے په نتیجه کښ بندګان کامیاب شی او د جنت مستحق جوړ شی۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورة الحاقه

۱ – پدے سورت کښ د قیامت درے نومونه ذکر شول ددے د هیبت دپاره۔

۲ – څلورو طریقو سره د آخرت هیبت بیان شو۔

۳ – د اصحاب الیمین او اصحاب الشمال صفات پکښ بیان شول۔

٤ – د رسول الله ﷺ په باره کښ وویل شول چه که دے دروغ ووائی نو زهٔ ترے وتین پرے کوم۔ ختم شو تفسیر د سورة الحاقه په مدد د رب عظیم په ۷ رمضان جون ۱۲۔ صباح یوم الاحد۔

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

| رکوعاتها (۲) | (۷۰) سُوْرَةُ الْمَعَارِجِ مَكِّيَّةٌ | آیاتها (٤٤) |
|---|---|---|

سورة المعارج مکی دے، په دے کښې څلور څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

# تفسیر سورة المعارج

**نوم** : (۱) سورة اَلمعارج۔ دا نوم د (۳) آیت ﴿مِنَ اللّٰهِ ذِی الْمَعَارِجِ﴾ نه اخستے شوے۔ (۲) دیته سورة [سَاَلَ سَآئِلٌ] هم وئیلے کیږی۔ (۳) سُوْرَةُ الْوَاقِعِ هم ورته وائی۔

**د نازلیدو زمانه** : قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔ ابن عباس او ابن الزبیر رضی الله عنهم نه همدا نقل دی۔

## مناسبت :

۱- مخکښې د آخرت یره بیانه شوه نو دلته د هغه ورځے مقدار بنائی چه دا پنځوس زره کاله ده۔

۲- هلته دوه ډلے ذکر شوے، اصحاب الیمین او اصحاب الشمال، نو دلته ئے صفات راوړی۔

۳- مخکښې سورت کښې د قیامت د عذاب عظمتِ شان ذکر شو نو دلته زجر ورکوی هغه چاته چه د دغه عذاب په باره کښې سوال کوی۔

٤- هلته صفات د منکرینو زیات ذکر شو نو دلته صفات د مؤمنانو زیات راوړی۔

## د سورت مقصد او موضوع

اَلتَّخْوِیْفُ بِالْعَذَابِ الْوَاقِعِ ۔ الله تخویف او یره ورکوی په هغه عذاب چه واقع کیدونکے دے۔ وَالْاَسْبَابُ الدَّافِعَةُ وَالْجَالِبَةُ لِذٰلِكَ ۔ او هغه اسباب بیانوی چه عذاب دفع کوی، یا په

كوم سبب چه عذاب واقع كيږي. نو يو د هغې نه كفر دے، الجرم، الادبار والتولی، والبخل، وَالْهَلَعُ وَالْجَزَعُ، اَلتَّمَنِّیْ مِنْ غَيْرِ الْعَمَلِ (يعنی تمنا كول او عمل نهٔ كول) پدے ځان د جنت مستحق ګڼړل. اَلْخَوْضُ وَاللَّعِبُ. (بكواس او لوبے كول)،

اسباب دافعه دا دی: اَلصَّلٰوةُ، (مونځ) او په هغې باندے دوام. اِنْفَاقُ الْمَالِ، تصديق د يوم القيامة، اَلْاِشْفَاقُ مِنَ اللهِ (د الله نه يره) حِفَاظَةُ الْفَرْجِ (د عورت حفاظت) اَدَاءُ الْاَمَانَةِ وَرِعَايَةُ الْعَهْدِ، په شهادت باندے كلك ودريدل او د مانځه حفاظت.

پدے روستو سورتونو كښې به د آخرت يرے او نيك عملونو ته ترغيب او د بدو عملونو نه منع ذكر كيږی نو كله به د يو عمل نوم اخلی او كله د بل. كله به ئے اجمالاً بيانوی او كله تفصيلی.

| سَأَلَ سَائِلٌ بِعَذَابٍ وَاقِعٍ ﴿١﴾ لِّلْكَافِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ |
|---|
| اُوغوختو يو غوختونكی عذاب واقع كيدونكے. كافرانو لره نشته دے لره |
| دَافِعٌ ﴿٢﴾ مِّنَ اللهِ ذِی الْمَعَارِجِ ﴿٣﴾ |
| دفع كونكے. د طرف د الله نه چه آسمانونو والا دے. (خاوند د اُوچتو مرتبو دے). |

**تفسير**: سَأَلَ سَائِلٌ : يعنی په جلتئ سره وغوختو يو غوښتونكی هغه عذاب چه په كافرانو باندے واقع كيدونكے دے.

پدے سائل كښې دوه قوله دی: (١) يا خو ددے نه پيغمبران مراد دی چه هغوی د الله نه سوال وكړو چه الله تعالیٰ په كافرانو مخالفينو د توحيد باندے زر عذاب راولی، او انبياء عليهم السلام چه كله عذاب وغواړی نو الله ئے راولی لكه په سورة ابراهيم (١٥) آيت كښې ددے معنیٰ تائيد شته. ﴿وَاسْتَفْتَحُوْا وَخَابَ كُلُّ جَبَّارٍ عَنِيْدٍ﴾ پيغمبرانو د الله نه دعاء طلب كړه د قوم په خلاف نو الله عذاب راوليږلو نو نا مراده شو هر جبار عنادګر)

مګر دا معنیٰ دلته ډيره ظاهره نهٔ ده.

(٢) ظاهر دا ده چه دلته كافرانو سوال كړے وو د پيغمبرانو او د الله نه چه دا عذاب به كله راځی چه تاسو ئے مونږ سره وعدے كوئ لكه روستو ﴿اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا وَنَرَاهُ قَرِيْبًا﴾ نه معلوميږی. دوی عذابونه د امكان نه بعيد ګڼړل.

او (سائل) ئې نکره هم ددے وجه نه راوړه چه دا ډیرو کافرانو غوختلے وو۔

نسائیؒ او حاکمؒ او نورو د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے چه په دے آیت کښې کریمه کښې د [سَائِل] یعنی تپوس کونکی نه مراد نضر بن حارث دے چه هغهٔ د هغه عذاب پورے توقے اوکړے د کوم وعده چه الله کافرانو سره کړے ده، او وے وئیل چه اے الله ! که چرے ستا له اړخه همدا خبره حقه ده، نو په مونږ باندے د آسمان نه د کاڼرو باران وکړے، یا بل کوم دردناك عذاب په مونږ نازل کړے۔

د نضر بن حارث دا وینا الله تعالیٰ په سورت انفال (۳۲) آیت کښې بیان کړے ده:

﴿ اَللّٰهُمَّ إِنْ كَانَ هٰذَا هُوَ الْحَقَّ مِنْ عِنْدِكَ فَأَمْطِرْ عَلَيْنَا حِجَارَةً مِّنَ السَّمَاءِ أَوِ ائْتِنَا بِعَذَابٍ أَلِيْمٍ ﴾

نو الله تعالیٰ ددے سورت په (۲/۱) آیتونو کښې ددے خبرے جواب وکړو چه یو تپوس کونکی د هغه عذاب په باره کښې تپوس کړے چه د هغے واقع کیدل یقینی دی، او دا عذاب کافرانو دپاره د دویٔ د کفر له وجے دے، او ددے فیصله د الله له اړخه شوے ده، اُوس هغه څوك لرے کولے نشی۔

لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ حج په (٤٧) آیت کښې فرمایلی دی:

﴿ وَيَسْتَعْجِلُوْنَكَ بِالْعَذَابِ وَلَنْ يُّخْلِفَ اللهُ وَعْدَهٗ ﴾

(او د مکے مشرکان تانه د عذاب په راوړو تادی کوی، او الله هیڅ کله د خپلے وعدے خلاف نهٔ کوی)۔ نو په صحیح روایت کښې ثابت دی چه نضر بن حارث د بدر په میدان کښې په بد مرګ اووژلے شو۔

بِعَذَابٍ وَّاقِعٍ: په دے کښې تعجب دے چه دوی داسے عذاب غواړی چه هغه واقع کیدونکے دے۔

لِّلْكَافِرِيْنَ لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ: للکافرین متعلق دے په دَافِعٌ پورے۔ اَیْ لَيْسَ لَهٗ دَافِعٌ لِّلْكَافِرِيْنَ۔

یعنی د کافرانو دپاره د هغے دفع کونکے نشته۔

❁ یا متعلق دے د محذوف پورے (خَاصٌّ لَّهُمْ) یعنی خاص دے کافرانو لره) او نشته د هغے هیڅوك دفع کونکے۔

❁ یا متعلق دے د سَأَلَ پورے یعنی وے غوښتو د کافرانو دپاره هغه عذاب چه واقع کیدونکے دے۔ نو لام په معنیٰ د عَلیٰ سره دے۔

❁ یا د واقع پورے متعلق دے یعنی واقع کیدونکے په کافرانو باندے۔ نو دلته هم لام په معنیٰ د علیٰ سره شو۔

مِّنَ اللّٰهِ: دا متعلق دے د واقع پورے۔ ❁ یا د دافع پورے۔

یعنی د الله د طرفنه ئے څوك دفع کونکے نشته کله چه ددے وخت راشي۔

❁ یا متعلق دے د سَأَلَ پورے۔ یعنی د الله نه ئے دغه عذاب وغوښتو۔ اولنی احتمالونه غوره دی۔

[ذِی الْمَعَارِجِ] د الله صفت دے، یعنی دا عذاب د هغه الله له خوا دے چه هغه (معارج والا) دے۔ مفسرینو ددے کلمے درے معنے بیان کړی دی:

(۱) یو روایت کښې د ابن عباس ﷛ نه ددے معنیٰ په [ذِی السَّمَاوَاتِ] سره نقل ده، یعنی آسمانونو والا، ځکه چه ملائك دغه آسمانونو طرفته خیژی۔

(۲) دویم روایت د قتادة نه دے چه ددے معنیٰ [ذِی الْفَوَاضِلِ وَالنِّعَمِ] دے، یعنی هغه الله چه هغه نعمتونو او احسانانو والا دے۔

(۳) او دریم قول دادے چه د [معارج] نه مراد د جنت درجات دی کوم چه د الله له خوا د هغهٔ اولیاؤ او نیکانو ته ملاویږی۔

❁ یا د الله درجات مراد دی۔ یعنی هغه الله چه د اُوچتو درجو والا دے۔ لکه په سورة المؤمن (۱٤) آیت کښې تیر شوی وو ﴿رَفِيعُ الدَّرَجَاتِ﴾ الله اُوچتو درجو والا دے۔

| تَعْرُجُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَالرُّوْحُ اِلَيْهِ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ |
|---|
| ورخیژی ملائك او روح هغهٔ ته په هغه ورځ کښې چه اندازه د هغې پنځوس زره |
| سَنَةٍ ﴿٤﴾ فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِيْلًا ﴿٥﴾ اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا ﴿٦﴾ |
| کاله ده۔ نو صبر کوه په صبر ښائسته سره۔ یقیناً دوی وینی دے لره لرے۔ |
| وَنَرٰىهُ قَرِيْبًا ﴿٧﴾ |
| او وینو مونږ دا نزدے۔ |

**تفسیر:** اُوس د الله نور لوی والے بیانیږی چه دومره لوی الله دئے۔

د [روح] نه مراد جبریل ﷺ دے، او دا په ملائکو کښې داخل دے، لیکن د الله په نیز ددهٔ

د خصوصي مقام په وجه ددهٔ نوم جدا واخستے شو۔ نو دا عطف د خاص دے په عام باندے۔ د وجه د شرافت او اهتمام د هغهٔ نه۔ يا الروح كښې الف لام عهدي دی، مراد ترے نه روحونه د نيكانو مړو دي چه اُوم آسمان ته خيژي۔

فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ: ددے په تفسير كښې دوه رائے دي :

(۱) مرجوحه رائے دا ده چه ملائك او جبريل عليه السلام د الله عز وجل خوا ته ورخيژي، په دے توګه چه په يوه ورځ كښې د اُوومے زمكے د آخري تل نه اُووم آسمانه پورے د دوئ د ختلو تيز رفتاري د نورو مخلوقاتو د پنځوس زره كالو د رفتار برابر وي۔

دا تفسير ابن جرير بيان كړے۔ او حافظ ابن كثير د ابن ابي شيبة نه نقل كړے۔

يعني بالفرض كه تاسو د تحت الثرىٰ نه تر عرش پورے ختلے نو پنځوس زره كاله به ستاسو لګيدلے، ليكن ملائك او جبريل عليه السلام په يوه ورځ كښې ورخيژي۔ ځكه چه د هر آسمان نه بل پورے پنځه سوه كاله مزل او د تحت الثرىٰ نه د زمكے سر پورے پنځه سوه كاله دے، او دنياوي آسمان د بره طرف نه تر زمكے پورے زر كاله دے۔ نو پنځوس زره كاله شو۔ (فتح البيان)

ددے معنىٰ د مرجوحيت وجه دا ده چه ملائك عرش پورے نهٔ ځي بلكه سدرة المنتهىٰ باندے د هغوي رفتار ختميږي۔ بره نشي تللے۔

دويم دا چه د تحت الثرىٰ نه تر عرش پورے د انسان روانيدل تعليق بالمحال دے ځكه چه انسان خو د اُومے زمكے تل ته نشي كوزيدے چه د هغه ځاى نه روان شي۔

دريم دا چه د ملائكو په يوه ورځ كښې داسے رفتار وهلو ذكر كولو كښې د الله تعالىٰ دومره ډير عظمت نهٔ ښكاره كيږي۔ نو دا تفسير دومره ظاهر نهٔ دے۔

(۲) نو غوره تفسير دا دے (چه دا ابن عباس رضي الله عنه ذكر كړيدے) چه دا د قيامت د ورځے حالت بيانيږي، ددے وجه نه ئے تَعْرُجُ مضارع راوړيده، يعني د قيامت په ورځ به ملائك او جبريل عليه السلام الله ته ورخيژي (يعني چه الله ورله په قيامت كښې كوم ځاى مقرر كړے) په هغه ورځ كښې به ورخيژي چه د هغے مقدار پنځوس زره كاله دے۔

او مطلب دا دے چه لكه ځنګه چه په دنيا كښې بادشاهي د الله ده، نو په آخرت كښې به هم بادشاهي د الله تعالىٰ وي، الله به بره وي، او نافرمان بندګانو ته به عذابونه وركوي د ملائكو په واسطه، نو ملائك به الله ته ورخيژي، نو هغه به ورته حكمونه كوي چه

اُوس دا وكړئ، بيا به ورخيژی نو بل حكم به ورته كوی. لكه خُذُوْهُ فَغُلُّوْهُ چه الله تعالىٰ وائی نو ملائك به الله ته ورخيژی، نو الله به ورته حكم كوی چه ورشئ دا مجرمان راونيسئ، نو هغوی به د حشر ميدان ته راكوزيږی او بندګانو ته به دغه سزاګانے وركوی، بيا به الله ته ورخيژی. څكه چه الله تعالىٰ په آخرت كښې هم بره دے لكه څنګه چه اُوس په دنيا كښې هم د عرش دپاسه دے.

او دے تفسير په غوره والی باندے يو دليل حديث د مسلم دے چه زكاة څوك نۀ وركوی نو الله به د قيامت په ورځ پنځوس زره كاله عذاب وركوی.

بل حديث د ابوسعيد خدری رضي الله عنه دے چه د رسول الله ﷺ نه تپوس وشو :

[يَوْم كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ) مَا اَطْوَلَ هٰذَا الْيَوْمَ !]

پنځوس زره كاله ورځ څومره اُوږده ده! رسول الله ﷺ وفرمايل:

[وَالَّذِیْ نَفْسِیْ بِيَدِهٖ اِنَّهٗ لَيُخَفَّفُ عَلَى الْمُؤْمِنِ حَتّٰى يَكُوْنَ اَخَفَّ عَلَيْهِ مِنْ صَلَاةٍ مَكْتُوْبَةٍ يُصَلِّيْهَا فِی الدُّنْيَا].

(مسند احمد (١١٧٣٥) وفی اسناده ابن لهيعة ودراج ابی السمح، وابو يعلى وقال الهيثمی فی مجمع الزوائد (٢٨٣٤٧) اسناده حسن على ضعف فی راويه) وقال العراقی فی تخريج الاحياء : اسناده حسن) وقال الحافظ فی فتح الباری (١١/٤٤٨) وسنده حسن، ثم ذكر مثله وقال السيوطی فی البدور السافرة ص (٨٧) اسناده حسن وضعفه الالبانی، وحسنه ابن القطان فی كتاب الوهم والايهام).

قسم په الله چه دا به په مؤمن باندے آسانه شی تردے چه د هغه فرض مانځه نه به هم زياته آسانه شی كوم چه دۀ په دنيا كښې كولو.

بل دليل دا دے چه روستو ﴿اِنَّهُمْ يَرَوْنَهٗ بَعِيْدًا﴾ نو (ہٗ) ضمير اقرب مذكور ته راجع دے چه هغه د قيامت ورځ ده.

(٣) او د مجاهد وينا ده چه په آيت كښې دَ دنيا عمر پنځوس زره كاله بنودلے شوے، ليكن معلومه نۀ ده چه څومره موده تيره شوے ده، او څومره باقی ده. ليكن دے باندے دليل نشته. او دے آيت كښې سوچ نۀ دے شوے.

(٤) قتادۀ، كلبیؒ، محمد بن كعبؒ وائی : (يعنی اِنَّ مِقْدَارَ الْاَمْرِ فِيْهِ لَوْ تَوَلَّاهُ غَيْرُهٗ سُبْحَانَهٗ خَمْسُوْنَ اَلْفَ سَنَةٍ وَهُوَ سُبْحَانَهٗ يَفْرُغُ مِنْهُ فِیْ سَاعَةٍ).

يعنی په دغه ورځ د كارونو اندازه كه د الله تعالىٰ نه علاوه بل مخلوق ئے كوی نو

پنځوس زره کاله به وي، لیکن الله تعالیٰ به ترې په لږ ساعت کښې فارغ شي)
دې قول باندې هم دلیل نشته۔ او د ظاهر خلاف دې، او په تاویل بناء دې۔ او دلته خو د
کارونو اندازه نهٔ بیانیږي بلکه (مِقْدَارُهٗ) ضمیر ورځې ته راجع دې
فَاصْبِرْ صَبْرًا جَمِیْلًا : دا تسلي ده او د سَأَلَ سره متعلق دې، یعنې دا سوال د دوی په
طریقه د استهزاء سره دې، نو د هغې په مقابله کښې صبر پکار دې۔
دارنګه د دعوت په لاره کښې چه د مشرکانو د طرف نه کوم تکلیف تاته رسیږي، په
هغې باندې د ښهٔ صبر نه کار واخله، ښهٔ صبر دا دې چه د خلقو مخامخ پریشاني او
ناراضګي مهٔ ښکاره کوه، او د الله نه سوئ هیڅوا ته ددې تکلیفونو شکایت مهٔ کوه۔
مشرکان چونکه د آخرت په ورځ ایمان نهٔ لري، دې وجې نه د مرګ نه پس دوباره ژوند او
د قیامت د ورځې عذاب د خپلې بد بختئ له وجې نه ډیر لرې ګنړي، لیکن زمونږ په نیز
خو د هغې ورځ ډیره زیاته نزدې ده، ځکه چه ددې راتګ یقیني دې، او هر راتلونکې شې
نزدې وي۔ مونږ د خپل صفتِ رحمت او صبر د وجې نه په هغوئ باندې په عذاب راوړو
کښې جلتي نهٔ کوو۔
صبر جمیل دا دې چه انسان پکښې مخلوق ته شکایت ونکړي، او دا حُسن خُلق دې نو
ددې د جهاد او قتال د آیتونو سره منافات نشته، بلکه دا ادب دې په باب د دعوت کښې۔
إِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيْدًا : یعنې دوی ئې د عقل او د واقع کیدو او د امکان نه لرې ګنړي۔ یا د
زمانې لرې والې مراد دې۔ یعنې ددې زمانه وړاندې ګنړي۔
وَنَرَاهُ قَرِيْبًا : د قریب نه مراد د عقل سره مناسب یا د زمانې په اعتبار سره نزدې دې۔
ځکه چه هر راتلونکې شې نزدې وي، او بله دا چه الله ته زر کاله یوه ورځ ښکاره کیږي۔
ځکه د هغهٔ صبر ډیر زیات دې۔

| يَوْمَ تَكُوْنُ السَّمَآءُ كَالْمُهْلِ ﴿٨﴾ وَتَكُوْنُ الْجِبَالُ |
| --- |
| هغه ورځ چه شي به آسمان پشان د تانبې ویلې شوې۔ او شي به غرونه |
| كَالْعِهْنِ ﴿٩﴾ وَلَا يَسْأَلُ حَمِيْمٌ حَمِيْمًا ﴿١٠﴾ يُبَصَّرُوْنَهُمْ |
| پشان د وړیٔ۔ او تپوس به نشي کولې یو دوست د بل دوست نه۔ ورخودلې به شي دوی ته |

| يَوَدُّ الْمُجْرِمُ لَوْ يَفْتَدِىْ مِنْ عَذَابِ |
|---|
| ټول کافران، خوښوی به مجرم ارمان چه فدیه کښې ورکړی دے د عذاب |
| يَوْمِئِذٍ بِبَنِيْهِ ﴿۱۱﴾ وَصَاحِبَتِهٖ وَأَخِيْهِ ﴿۱۲﴾ وَفَصِيْلَتِهِ الَّتِيْ تُؤْوِيْهِ ﴿۱۳﴾ |
| د دغه ورځې نه ځامن۔ او ښځه او ورور خپل۔ او قبیله خپله هغه چه ځائے ورکوی دهٔ |
| وَمَنْ فِي الْأَرْضِ جَمِيْعًا ثُمَّ يُنْجِيْهِ ﴿۱۴﴾ |
| ته۔ (پناهی ورکوی دهٔ ته) او هغه څوك چه په زمکه کښې دی ټول بیا خلاص کړی |
| كَلَّا إِنَّهَا لَظٰى ﴿۱۵﴾ |
| دغه فدیه دهٔ لره۔ (د عذاب د الله نه)۔ هیچرے داسے نهٔ ده، یقیناً دا اُور ګرمے لمبے دی۔ |
| نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰى ﴿۱۶﴾ تَدْعُوْ مَنْ أَدْبَرَ |
| ویستونکے دے څرمنے د اندامونو لره۔ آواز به کوی هغه چا ته چه شا ئے راړولے ده |
| وَتَوَلّٰى ﴿۱۷﴾ وَجَمَعَ فَأَوْعٰى ﴿۱۸﴾ |
| او مخ ئے ګرځولے دے۔ او مال ئے جمع کړیدے نو په لوښی کښې ئے ساتلے دے۔ |

**تفسیر**: اُوس د دغـه ورځـې نورے سختیانے بیانوی چه په دے ورځ به آسمانونه ټکړے ټـکړے شی، او د ویلی کړے تانبے غونتـه به اُوبهیږی، او غرونه به د رنګینے وړیٔ غونتـه بیخی سپك شی، او څلور وارو طرفونو ته به آلوزی، او په هر یو شی به فناء راشی۔
دے نـه پـس بـه الله تـعـالیٰ تـمام پیریان او انسانان دوباره پیدا کوی، او ټول به خپے ابله خپے، بربنډ بدن په میدانِ محشر کښې جمع کولے شی۔
هـر کله چه د زمکو ددے لویو لویو جسمونو دا حال وی، نو په دے ورځ به د ضعیف او کـمزوری انسـان څـهٔ حـال وی کوم چه د ګناهونو د دروند بوج په ذریعه خپله اوګه درنه کړے وی۔
یقیـنًا د هغهٔ زړهٔ به خپـل ځائے پریدی، او د خپـل نجات په فکر کښې به داسے پریشانه او ګډوډ وی چه د خپـل ذات نـه سوئی بـه هر څـهٔ هیـر کړی، لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ عبس په (۳۷) آیت کښې فرمایلی دی:

﴿لِكُلِّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُّغْنِيْهِ﴾ (په دوئ کښې به هر يو کس ته په دغه ورځ داسې فکر لګیدلے وی چه ددهٔ لپاره به کافی وی)۔ همدا خبره الله تعالیٰ دلته داسې فرمائیلې ده چه ((هیڅ یو رشته دار او دوست به د خپل کوم رشته دار او دوست تپوس نهٔ کوی))۔

كَالْمُهْلِ : مهل د ګرمو تیلو ویخ (خیرے)/ ویلی کړے شوے تانبه۔/ او وینے زوے د زخمونو۔

كَالْعِهْنِ: هغه وړئ چه مشتمل وی په ډیرو رنګونو باندے نو غرونه هم ډیرو مختلفو رنګونو والا دی، نو په وخت د فناء کیدو کښې به د رنګینے وړئ په شان شی۔

غرونو کښې به اول تغیر پدے طریقه راځی چه اول به دا د بهیدونکو شګو په شان شی بیا به د رنګینے وړئ په شان سپك شی چه هغه ویشنلے شوی (ډانډت کړے شوی) وی بیا به هباء منثورا شی۔ یعنې دوړه آلوزولے شوے۔

وَلَا يَسْأَلُ حَمِيْمٌ حَمِيْماً : اَیْ لِلْاِنْدِهَاشِ لَا لِعَدَمِ الْمَعْرِفَةِ ۔ یعنی یو دوست به د بل دوست نه تپوس نشی کولے د وجه د سخت دهشت او یرے نه، نهٔ پدے وجه چه ګنے نهٔ ئے پیژنی۔ معرفت خو به وی (يَتَعَارَفُوْنَ بَيْنَهُمْ) او څکه وائی :

يُبَصَّرُوْنَهُمْ : یعنی دا دوستان به یو بل ته ښه ګوری۔ دلته د نائب فاعل او د مفعول دواړه ضمیرونه کافرانو ته راجع دی، یعنی دا کافران به یو بل ته خودلے شی، او یو به د بل نه نشی پټولے، هر یو به بل ته ښکاره کیږی لیکن هر سړے به د خپل ځان په فکر کښې وی۔

یا اول ضمیر (نائب فاعل) راجع دے مؤمنانو ته او ضمیر د مفعول کافرانو ته راجع دے۔ یعنی خودلے به شی مؤمنانو ته کافران۔

یا اول ضمیر تابعدارو ته او دویم ضمیر متبوعینو ته راجع دے۔ کومو چه په ګناهونو او شرك کښې تابعداری کړے وی۔ یعنی الله به په اُور کښې تابعدارو کافرانو ته خپل ګمراهان مشران وربښائی۔

لَوْ يَفْتَدِىْ: ارمان چه فدیه ورکړی د عذاب نه د بچ کیدو دپاره،

یعنی په دے ورځ به کافر آرزو کوی چه کاش ! څهٔ داسے صورت راوتے وے چه دهٔ خپل اولاد، ښځه، ورور، تمام خاندان او ټول عالَم ورکړے وے، او دهٔ ته نجات ملاؤ شوے وے، یعنی دا به داسے ګڼړئ وی چه چا سره دهٔ په دنیا کښې بے انتهاء محبت کولو، د هغوئ

قربانی به هم ورکوی خو صرف خپل ځان خلاصول به غواړی۔
په دنیا کښې دهٔ ته خامن ډیر محبوب وو نو هغه به اول پیش کوی، او بیا چه څومره نزدے وی هغه به پیش کوی۔ انسان په دنیا کښې طبعي طور سره دا عار ګنړی چه خپله ښځه په فدیه کښې ورکړی، لیکن د قیامت سختی دومره زیاته ده چه مجبوراً به خپله ښځه هم په فدیه کښې ورکولو کوشش کوی خو چه دهٔ نه عذاب لرے شي۔
او ښځه په دنیا کښې انسان ته ډیره ګرانه وی په هغې ډیر خفه کیږی، چه د هغې مشقت نشي برداشت کولے لیکن ددے ورکولو ته به هم تیار وی۔
وَاَخِيْهِ: وړور هم سبب د نصرت دے د سختې په وخت کښې۔
وَفَصِيْلَتِهِ: فصیله په اصل کښې ټکړے د بدن ته وئیلے شي (مبرّد)
دلته ترے مراد نزدے خاندان دے چه دهٔ سره په نسب کښې نزدے وی چه دنیا کښې ئے په مصیبتونو کښې دهٔ ته پناهی ورکوله۔ فصیله د قبیلے نه وړه وی۔ یعنی خاندان۔
تُؤْوِيْهِ: په دنیا کښې دهٔ ته ځای ورکوی د تکلیف په وخت کښې، او که څوك دهٔ ته ضرر رسوی نو ددهٔ سره ودریږی، او د دشمن مقابله ئے کوی، او عربو به په قبیلو والو باندے ځانونه هم قربانول، نو په قیامت کښې به دغه قبیله قربانوی خو ځان به خلاصول غواړی۔
ثُمَّ يُنْجِيْهِ: اَیْ ثُمَّ يُنْجِيْ ذٰلِكَ الْفِدَاءُ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ ۔ یعنی بیا خلاص کړی دغه فدیه دهٔ لره د عذاب د الله تعالیٰ نه۔
یا ثُمَّ يُنْجِيْ نَفْسَهٗ بِهٖ۔ بیا ځان بچ کړی پدے سره۔
كَلَّا: دا حرف ردع ده، پدے کښې انکار د نجات دے۔ یعنیٰ هیچرے نجات نشته۔ په دے ورځ به نهٔ څهٔ رشته داری په کار راځی، او نهٔ به څهٔ فدیه قبلیږی۔ هریو کس سره به صرف د هغهٔ ښه یا بد عمل وی، او ددے نتیجے به ددهٔ مخے ته وی۔
او هغه اُور به وی چه د هغے وعده مجرمانو سره شوے وه، د هغے سخت ترینے شغلے به وی چه هغه به د سر او د هر اندام څرمنه ددهٔ نه جدا کوی، چه ددے په جدا کولو سره به انسان مری نهٔ، لیکن په انتهائی مصیبت او تکلیف کښې به وی۔
اِنَّهَا لَظٰى: اِنَّهَا ضمیر دغه عذاب ته راجع دے په تاویل د نار (اُور) سره۔
لظی هغه اُور دے چه د هغے لمبے ډیرے او تیزے وی، او دا د جهنم د یوے طبقے نوم دے۔

نَزَّاعَةً لِّلشَّوٰی: دا منصوب دے حال دے۔
نَزَّاعَةً یعنی ډیر ویستونکے او راخکونکے دے۔
شَوٰی: جمع د شَوَاةٌ ده، لاس او خپے او سر او څرمنے او پلے او پیوندونو ته وئیلے شی نو تولو اندامونو ته شامل دے۔
۱- اَلْاَعْضَاءُ الَّتِیْ لَیْسَتْ بِمَقْتَلٍ۔ یعنی هغه اندامونه چه انسان ترے نهٔ مری کله چه ووهلے شی۔
۲- مَكَارِمُ الْوَجْهِ وَحُسْنُهٗ۔ (حسنؒ وثابت البنانیؒ) د مخ څرمن او ښائست۔
۳- فَرْوَةٌ (/جِلْدُ) الرَّأْسِ۔ د سر څرمنه۔ (سعید بن جبیرؒ)
٤- تَبْرِی اللَّحْمَ وَالْجِلْدَ عَنِ الْعَظْمِ حَتّٰی لَاتَتْرُكَ فِیْهِ شَیْئًا۔ (قتادةؒ)
یعنی توکی به غوښه او څرمن د هډوکی نه تردے چه هیڅ شے به پکښې نهٔ پریدی۔
تَدْعُوْ مَنْ اَدْبَرَ وَتَوَلّٰی: په دے ورځ به جهنم خپل طرفته هر هغه کافر او سرکش رابلی چه هغهٔ په دنیا کښې د الله او د هغهٔ د رسول د حکم نه مخ اړولے وو، او هغه ئے شاته ګذارلے وو۔ یعنی داسے آواز به ورته کوی چه ما طرفته راشه اے مشرکه، ما طرفته راشه اے منافقه !۔ بیا به ئے داسے تیر کړی لکه څنګه چه مارغه دانے تیروی۔

## ادبر وتولی کښې فرق :

۱-اَدْبَرَ عَنِ الْحَقِّ وَتَوَلّٰی عَنِ الطَّاعَةِ۔ د حق نه واوړیدو (زړه ئے خراب شو) او تَوَلّٰی د طاعت (عمل) نه واوړیدو۔ یعنی ظاهر او باطن دواړه ئے خراب وی۔ اَدْبَرَ دا دے چه شا راواړوی، حق طرفته بیخی هیڅ توجه نهٔ ورکوی۔
۲- ادبار په شا ګرزولو سره او تولی په مخ اړولو سره دے۔
۳- ادبر شا ئے راواړوله یعنی په ګناه کښې مشغول شو، او تولی : مخ ئے واړولو یعنی د طاعت نه ئے اعراض وکړو۔
٤- اَدْبَرَ عَنِ التَّوْحِیْدِ وَتَوَلّٰی عَنِ الرَّسُوْلِ وَالْقُرْآنِ ۔ شا ئے واړوله د توحید نه او مخ ئے واړولو د رسول الله ﷺ او د قرآن کریم نه۔
لکه دے معنے ته په راتلونکی آیتونو کښې اشاره شویده (سورة الاسراء (٤٦) او سورة النساء (٦١) او سورة النور (٤٧) آیت کښې۔

وَجَمَعَ فَأَوْعٰى: یعنی مال ئې جمع کړې وو او په بټوو کښې ئې قت په قت بند کړې وو، نۀ ئې ددې زکاۃ اداء کړې او نۀ ئې ددې نه صدقه او خیرات کړې۔

او چا لره چه جهنم را اوبلی، هغۀ له به په ډیکو ډیکو جهنم ته اُورسولې شي۔

لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورتِ طور په (۱۳) آیت کښې فرمایلي دي:

﴿يَوْمَ يُدَعُّوْنَ إِلٰى نَارِ جَهَنَّمَ دَعًّا﴾

(په کومه ورځ چه دوئ له به په ډیکو ډیکو د جهنم اور ته راوستې شي)۔

پدې کښې هم بیا دوه حقونه ضائع کول ذکر شو، یو د توحید نه اعراض په اَدْبَرَ وَتَوَلّٰى سره، او بل د الله تعالیٰ په مخلوق باندې شفقت نۀ کول په جَمَعَ فَأَوْعٰى سره۔

وَجَمَعَ: یعنی مال جمع کوي او په لوښي کښې ئې اچوي او د هغې نه د الله په مخلوق باندې هیڅ صدقه او خیرات نۀ کوي او په مسکینانو ئې هیڅ شفقت نشته۔

| |
|---|
| إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوْعًا ﴿۱۹﴾ إِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ |
| یقیناً انسان پیدا کړې شویدې ډیر حرصناك۔ کله چه اُورسیږي دۀ ته تکلیف |
| جَزُوْعًا ﴿۲۰﴾ وَإِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ |
| بې صبري کونکې وي۔ (فریادونه کوي) او کله چه اُورسي دۀ ته فائده د دنیا |
| مَنُوْعًا ﴿۲۱﴾ إِلَّا الْمُصَلِّيْنَ ﴿۲۲﴾ الَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى |
| منع کونکې وي (د هغې)۔ لیکن مونځ کونکي۔ هغه کسان چه دوي په |
| صَلَاتِهِمْ دَائِمُوْنَ ﴿۲۳﴾ |
| مانځه خپل باندې همیشوالې کونکي دي۔ |

**تفسیر**: اُوس د انسان تعریف بیانوي چه انسان طبعي طور سره داسې پیدا شوې دې چه کله دۀ ته څۀ درونده مصیبت ملاو شي، نو د صبر لمن ددۀ د لاسه اوځي، واویلا کوي، او انتهائي بې آرامي او پریشاني ښکاره کوي، او کله چه د الله له خوا څۀ مال او دولت ورکړې شي، نو اول نمبر بخیل جوړیږي، په خپل ځان باندې د الله احسانات هیروي، او په خپل ځان او په بل چا باندې د یوې پیسې خرچ کولو په تصور سره ددۀ

روح اوخی۔

او دا صفات د اُور والو دی۔ دلیل پرے روستو (اِلَّا الْمُصَلِّیْنَ) دے۔

هَلُوعاً: د هَلَعٌ نـه دے، سخت حرص او سپکوالی ته وائی چه په حالت د خیر او د شر کښې نامناسبه کارونه کوی۔ یا هلوع ضَجُوْر ته وائی۔ یعنی ډیر تنګیدونکے (بور کیدونکے / زړه تنګے) ډیر جزع فزع او فریاد کونکے۔

او د مجموعه تفاسیرو نه ئے تعریف داسے معلومیږی۔ [اَلْهَلَعُ قِلَّةُ اسْتِمْسَاكِ النَّفْسِ لِمَا يَعْتَرِيْهَا]۔ یعنی نفس ته چه کوم مشکلات او مصائب راځی نو د هغے دپاره کلك نهٔ وی بلکه کله یو طرفته غورزیږی او کله بل خوا۔

حاصل معانی ئے مفسرینو په شدتِ حرص، قلتِ صبر (بے صبره) او کمزوری زړه والا سره کړیدی۔

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے چه د هلوع تفسیر روستو دوه آیتونه کوی۔

اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ جَزُوْعاً: کله چه تکلیف ور ورسیږی نو جزع فزع او فریادونه کوی، یعنی کله چه فقر او فاقه او مرض یا نور مصیبتونه پرے راشی نو ډیر پریشانه وی۔

وَاِذَا مَسَّهُ الْخَيْرُ: او کله چه ورته خیر ورسیږی لکه مالداری، فراخی وغیره۔

مَنُوعاً: نو بیا ډیر منع کونکے وی، صحت ورکړے شی، نو د چا خدمت نهٔ کوی، مال ورکړی، چا له ئے نهٔ ورکوی، بادشاهی او عهده ورکړی نو تکبر پکښې کوی، چا ته فائدے نهٔ ورکوی۔

اِلَّا الْمُصَلِّیْنَ: اُوس الله تعالیٰ ددے بیماریٔ نه د خلاصیدو یو علاج خودلے دے چه بنده په دے دنیا کښې د الله تعالیٰ شی، هغهٔ چه کوم فرائض مقرر کړی هغه پابندیٔ سره اداء کړی، او کومو خرابو کارونو اوا خلاقو نه ئے چه منع کړے ده، د هغے نه ډډه اوکړی۔ دے کار کولو سره الله تعالیٰ په خپل فضل او کرم سره په دویٔ کښې دننه داسے روحانی قوت پیدا کوی چه کله په دهٔ کوم مصیبت راشی نو په جزع فزع کښې مبتلا کیږی نهٔ، دے ایمان او یقین سره دا برداشت کوی چه د رب العالمین په تقدیر کښې داسے کیدل لیکلی دی، دے وجے نه همت او عزیمت سره صبر کوی، او الله تعالیٰ نه دعاء غواړی چه ارحم الراحمین ددهٔ د سر نه دا لرے کړی۔

اوکله چه الله تعالیٰ دهٔ له مال او دولت ورکوی نو ددے شکر اداء کوی، په کبر او غرور

کښې مبتلا کیږی نهٔ، د قابو نه بهر کیږی نهٔ، او په دے مال کښې چه د الله او د بندګانو کوم حق وی، هغه انتهائی د زړهٔ په خوشحالئ سره اداء کوی، بلکه ددهٔ چه کوم مالی حیثیت وی ددے په لحاظ سره په غریبانو، محتاجانو، بے وسو، یتیمانو او ښځو باندے همیشه لپاره خرچ کوی۔

إِلَّا الْمُصَلِّيْنَ: دا استثناء متصل ده د انسان نه، یعنی هر انسان دغه صفتونه لری، نو فرمائی چه مګر راتلونکی صفاتو والا دغسے نهٔ دی۔ یا استثناء منقطع ده، ګویا که د انسان نه د دوی جنس جدا دے۔

[لٰكِنِ الْمُصَلُّوْنَ اُولٰٓئِكَ فِیْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ]

لیکن مونځ کونکی او دغه نورو صفاتو والا به په جنتونو کښې وی۔

او دا هغه صفات دی چه پدے سره عذابونه دفع کیږی لکه تشریح ئے د سورة المؤمنون په ابتداء کښې ذکر شویده۔

نو ددے (۲۲) آیت نه تر (۳۵) آیته پورے الله تعالیٰ د جزع فزع او سخت حرص او طمع نه د شِفا حاصلولو همدا کیمیائی نسخه بیان کړے ده۔

الله تعالیٰ فرمایلی دی چه د دواړو بیماریانو نه الله تعالیٰ هغه چا له شفا ورکوی:

۱ – چه هغوئ خپل مونځونه پابندئ سره او د هغے د ارکانو او شرائطو او د سننو په رعایت کولو سره اداء کوی۔

دَائِمُوْنَ: یعنی د مانځه نه د دنیا په څیزونو نهٔ مصروفه کیږی۔ او هیڅکله مونځونه نهٔ پریدی، نهٔ اداءً او نهٔ قضاءً یعنی دوی ئے کوی اګرکه قضاء هم شی۔

او عمران بن حصین ﷺ او عقبه بن عامر ﷺ ددے معنیٰ کوی:

[هُمُ الَّذِیْنَ لَا یَلْتَفِتُوْنَ فِیْ صَلَاتِهِمْ] (تفسیر القرآن العظیم للطبرانی)

دا هغه خلق دی چه په مانځه کښې اخوا دیخوا نهٔ ګوری، بلکه مانځه ته متوجه وی۔

| وَالَّذِیْنَ فِیْٓ اَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَّعْلُوْمٌ ﴿۲۴﴾ لِّلسَّآئِلِ |
|---|
| او هغه کسان دی چه په مالونو د دوی کښې برخه وی معلومه۔ دپاره د غوښتونکی |
| وَالْمَحْرُوْمِ ﴿۲۵﴾ وَالَّذِیْنَ یُصَدِّقُوْنَ بِیَوْمِ الدِّیْنِ ﴿۲۶﴾ وَالَّذِیْنَ هُمْ |
| او بے نصیبه۔ او هغه کسان چه تصدیق کوی د ورځے د جزاء۔ او هغه کسان چه دوی |

| مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ ﴿۲۷﴾ إِنَّ عَذَابَ رَبِّهِمْ غَيْرُ مَأْمُوْنٍ ﴿۲۸﴾ |
|---|
| د عذاب د رب خپل نه ویره کونکی دی۔ یقیناً عذاب د رب د دوی نهٔ دے امن کړے |
| وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حَافِظُوْنَ ﴿۲۹﴾ إِلَّا عَلٰى |
| شوے (د هغینه)۔ او هغه کسان چه دوی د عورتونو خپلو حفاظت کوی۔ مګر په |
| أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ |
| بیبیانو خپلو باندے یا هغه چه مالك وی بنی لاسونه ستاسو نو یقیناً دوی نهٔ دی |
| مَلُوْمِيْنَ ﴿۳۰﴾ فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَآءَ ذٰلِكَ |
| ملامته کړے شوی (د هغے په استعمال)۔ پس چا چه طلب کړو ماسوئ ددے نه |
| فَأُولٰٓئِكَ هُمُ الْعَادُوْنَ ﴿۳۱﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ |
| نو دغه کسان هم دوی د حد نه تیریدونکی دی۔ او هغه کسان چه دوی د امانتونو |
| وَعَهْدِهِمْ رَاعُوْنَ ﴿۳۲﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ |
| خپلو او د لوظونو خپلو لحاظ ساتونکی دی۔ او هغه کسان چه دوی په |
| بِشَهَادَاتِهِمْ قَائِمُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَالَّذِيْنَ هُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ |
| ګواهیانو خپلو کلك ولاړ دی۔او هغه کسان چه دوی په مانځه خپل باندے |
| يُحَافِظُوْنَ ﴿۳۴﴾ أُولٰٓئِكَ فِيْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ ﴿۳۵﴾ |
| ساتنه کونکی دی۔ دا کسان به په جنتونو کښں عزتمند وی۔ |

**تفسیر** : ۲ - دا دویم صفت دے، یعنی د دوئ په مالونو کښں د غوښتونکو او محرومانو چه کوم حق مقرر دے، هغه په خوشحاله زړهٔ سره اداء کوی۔

حَقٌّ مَّعْلُوْم : مجاهدؒ وائی : ددے نه مراد سوئ د زکاة نه دے۔

بعض وائی : ددے نه مراد په مال کښں صله رحمی کول او بوج پورته کول دی۔

ظاهر دا ده چه فرضی او نفلی ټولو صدقو ته شامل دے۔

وَالْمَحْرُوْمِ: یعنی هغه چه سوال نکوی نو خلق ئے مالداره ګنړی، نو محرومه کوی

ئے۔ او ددے نور تفسیرونه په سورة الذاریات (۱۹) آیت کښ ذکر شویدی۔

۳ - وَالَّذِیْنَ یُصَدِّقُوْنَ : یعنی مرګ نه پس په دوباره ژوند، د قیامت په ورځ او ددے ورځے په جزاء او سزا باندے ایمان لری۔

٤ - وَالَّذِیْنَ هُمْ مِّنْ عَذَابِ رَبِّهِمْ مُّشْفِقُوْنَ : یعنی کله چه دوئ د شیطان په وسوسه کښ راشی او کوم واجب کار پریدی، یا کوم حرام کار کوی، نو د الله د عذاب تصور کولو سره د دوئ په جسمونو باندے لرزه راځی، ځکه چه دوئ پو هیږی چه د الله عذاب هر څوك په خپل ګرفت کښ اخستے شی۔ ددے نه صرف کافر او منافق بیغمه ژوندے اوسیدے شی، مومن د خپل رب نه ویرے هر وخت ریږی۔

غَيْرُ مَاْمُوْنٍ: ۱ - اَیْ لَا یَنْبَغِیْ اَنْ یُّؤْمَنَ مِنْهُ۔

یعنی د اللهٔ د عذاب نه بے غمی نهٔ ده پکار۔ ځکه چه د الله د عذابونو نه بے فکری خو د تاوانیانو کار دے۔

۲ - لَا یَاْمَنُهٗ اَحَدٌ عَقَلَ عَنِ اللّٰهِ اَمْرًا، (ابن کثیر)

هغه څوك ترے نهٔ په امن کښ کیږی چه د الله په خبره پو هیږی۔ ځکه چه الله غنی ذات دے که په تا باندے عذاب راولی او یو تن جهنم ته بو ځی نو الله ته به څوك څه ووائی۔ په الله باندے د چا د طاعتونو احسان هم نشته۔

٥ - وَالَّذِیْنَ :

ربط :

څوك چه د عذابونو د الله نه یریږی نو د هغوی شهوات کنټرول وی، نو دا خلق د خپلو شرمګاهونو حفاظت کوی، یعنی زنا او لواطت نه بچ کیږی، او ښځے او خاوند او خپلے وینځے نه سوئ د بل هیچا مخامخ خپله شرمګاه نهٔ ښکاره کوی البته که دوئ خپلو ښځو سره جماع کوی، یا هغه وینځو سره چه هغه د اسلامی جهاد یا په شرعی توګه اخستو سره حاصل شوے وی، نو دوئ د ملامتیا قابل نهٔ دی۔

که څوك ددے دوارو طریقو نه سوئ په بله کومه طریقه سره ښځه حاصلوی، او هغے سره جماع کوی، لکه زناه متعه وغیره نو هغه به د الله د مقرر کړی حد نه تجاوز کونکے شمارلے کیږی۔

٦ - وَالَّذِیْنَ هُمْ لِاَمٰنٰتِهِمْ: او دا خلق د امانتونو او لوظونو اومعاهدو حفاظت

کوی۔ او د تهولو نه اَهَم امانت او د تهولو نه پوخ لوظ خپل رب سره د بنده دا عهد او لوظ دے چه تر څو پورے دا ژوندے وی، د هغهٔ بندگی به کوی، او د هغهٔ د رسول ﷺ خبره به د هر چا په خبره مخکښ کوی۔

اَمَانَاتِ: هره ذمه واری چه په انسان باندے عائد کیږی که د الله د طرف نه وی او که د مخلوق د طرف نه، هغے ته امانت وائی۔

۷ - بِشَهَادَاتِهِمْ قَائِمُونَ: یعنی دوی سره چه کومے گواهیانے وی نو هغه نهٔ پټوی بلکه کله چه ددے ضرورت راشی نو د حاکمانو مخامخ دا بغیر د کمی زیاتی نه اداء کوی۔ کله نا کله دهٔ سره به خلق ورانوی چه ستا د گواهئ په وجه به په ما حد قائمیږی، زما سر به ځی، ما نه به لاس پریکړے کیږی، زما مال او پتے به ځی لیکن بیا به هم تهٔ مضبوط ولاړ ئے، خلق به درسره تعلقات پریدی، لیکن د الله نه سوئ به د هیچا نه یره نکوے، همدغے ته ایمان وائی۔

دارنگه لا اله الا الله او محمد رسول الله گواهی ئے ورکړه نو بیا ددے پابندی کوی، کمے زیاتے نکوی۔ حق بیانول گواهی ده۔

۸ - صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ: مونځ د الله په نیز ډیر قیمت لری، او د نورو نیکو اعمالو په مقابله کښ ددے عظمت او اهمیت دے، پدے وجه ئے دا په اول او په آخر کښ راوړو۔

یعنی دا خلق خپل پنځه وخت مونځونه د شرطونو او ارکانو په التزام سره، او په خشوع او خضوع، اطمینان سره او په رکوع او سجده او قیام کښ د اعتدال په لحاظ سره هغه په مقرر او معلومو وختونو کښ اداء کوی۔

اُولٰٓئِكَ فِیْ جَنّٰتٍ مُّكْرَمُوْنَ: یعنی دغه خلق به د ذکر شوے نفسیاتی بیمارئ نه محفوظ اوسیږی، او کله چه د دنیا نه رخصتیږی، او د خپل رب خواته رسیږی، نو الله به دوئ له عزت او اکرام سره په جنتونو کښ ځائے ورکوی۔

مُكْرَمُوْنَ: اسم مفعول راوړو کښ اشاره ده چه د دوئ کرامت به د الله تعالیٰ او د ملائکو د طرف نه او په کورنئ کښ په هر وخت کښ وی۔

| فَمَالِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ ﴿٣٦﴾ عَنِ الْيَمِيْنِ |
|---|
| نو څه وجه ده هغه کسانو لره چه ستا طرف ته رامنډے وهي۔ د ښي طرف |
| وَعَنِ الشِّمَالِ عِزِيْنَ ﴿٣٧﴾ اَيَطْمَعُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ اَنْ |
| او د گس طرف نه ډلے ډلے دی۔ آیا طمع لری هر یو تن د دوی نه چه |
| يُّدْخَلَ جَنَّةَ نَعِيْمٍ ﴿٣٨﴾ كَلَّا اِنَّا |
| داخل به کړے شي جنت د نعمتونو ته۔ هیچرے داسے نۀ ده، یقیناً مونږ |
| خَلَقْنٰهُمْ مِّمَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿٣٩﴾ |
| پیدا کړیدی دوی لره د هغه څه نه چه دوی ئے پیژني۔ |

**تفسیر** : پدے رکوع کښ په هغه مجرمانو کافرانو باندے رد دے چه بغیر د عمل کولو نه د جنت تمنا کوی، دا صفات چه کله بیان شول، نو کافرانو به وئیل چه (لَوْ يَدْخُلُ هٰؤُلَاءِ الْجَنَّةَ لَنَدْخُلَنَّ قَبْلَهُمْ) که دا غریبان مؤمنان جنت ته داخلیږی نو مونږ به ضرور د دوی نه مخکښ جنت ته څو۔ جنت ئے خپله تیکه گنړله۔

**مناسبت :**

لَيْسَ لَهُمْ رَغْبَةٌ فِى الدِّيْنِ وَيَتَمَنَّوْنَ الْجَنَّةَ ۔ یعنی دوی د دین سره مینه نۀ لری او دغه صفات پکښ نشته او بیا هم د جنت تمنا کوی۔

**فَمَالِ الَّذِيْنَ**: یعنی د نبی کریم ﷺ په زمانه کښ موجودو کافرانو او مشرکانو به هره ورځ هغه لیدلو، د هغهٔ په ذریعه راښکاره کیدونکی معجزات به ئے لیدل، او د هغویٔ مخے ته به د قرآن کریم تلاوت کیدهٔ، لیکن ددے تمامو څیزونو هیڅ اثر به په هغویٔ باندے نۀ کیدهٔ، هغویٔ به د ډلو او جماعتونو په شکل کښ د هغهٔ د دعوت نه تښتیدل۔ الله تعالیٰ ددے کافرانو د همدے سخت زړتیا او بدبختیٔ نه په دے دواړو آیتونو کښ حیرانتیا ښکاره کړے ده،

لکه څنگه چه الله تعالیٰ د سورۃ المدثر په (٤٩/٥٠/٥١) آیتونو کښ فرمایلی دی:

﴿فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ كَاَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنْفِرَةٌ فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ﴾

(دوئ له څهٔ شوی دی چه د نصیحت نه مخ اړوی، ګویاکه دوئ تریدونکی خرونه دی چه د زمري نه تښتي)۔

قِبَلَكَ مُهْطِعِيْنَ: ددے دوه مطلبه دی:

(۱) عوفيؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه ددے دواړو آیتونو مفهوم دا بیان کړے دے چه دے کافرانو له څهٔ شوی دی چه دوئ ستا طرفته ګوری او ستا نه بنی او کس طرفته تا پورے توقے کوی او درنه تښتي۔

(۲) قتادةؒ ددے تفسیر دا بیان کړے چه کافران قصدًا د جماعتونو په شکل کښ د نبی کریم ﷺ ښی او کس اړخ نه وتل او تلل به او د الله کتاب او د هغهٔ د نبی سنت آوریدل به ئے نهٔ غوښتل۔ نو قِبَلَكَ په معنیٰ د (عَنْكَ) سره دے،

او مُهْطِعِيْنَ اَیْ فَارِّيْنَ۔ تښتیدونکی۔ او عزین اَیْ مُتَفَرِّقِيْنَ۔ یعنی جدا جدا۔

یعنی ستا د خوا نه تښتي او حال دا چه د جنت طمع هم لری۔

د دوی پدے عمل کښ څومره تناقض دے؟!۔

(۳) یا کله چه رسول الله ﷺ د جنت صفات او نعمتونه بیان کړل، نو کافران یو اړخ او بل اړخ نه ډله ډله په منډه راغلل، او دا ئے ووئیل چه که داسے نعمتونه چرته وی نو مونږ ته به ضرور دغه نعمتونه راکړے کیږی۔

او پدے کښ ئے مقصد استهزاء وه او همدا ظاهر تفسیر دے۔

(٤) بعض وائی: ددے معنیٰ دا ده:

[مَا بَالُهُمْ يُسْرِعُوْنَ اِلَيْكَ وَيَجْلِسُوْنَ حَوَالَيْكَ وَلَا يَعْمَلُوْنَ بِمَا تَأْمُرُهُمْ]

دوی لره څه شویدی چه تا طرفته په جلتئ راځی او ستا نه ګیر چاپیره کینی لیکن تهٔ چه ورته کومه خبرے بیانوے په هغے باندے عمل نکوی۔

مُهْطِعِيْنَ: منډے وهونکی/ نیغ نیغ نظر کونکی تا ته / قصد کونکی،/ مخ اړونکی ستا نه۔ دا ټولے معانی صحیح دی۔

عِزِيْنَ: جمع د عِزَةٌ ده، ډلے ډلے کیدونکی۔ جابر رضی الله عنه فرمائی: یوه ورځ رسول الله ﷺ په مونږ باندے مسجد ته راننوتو او مونږ حلقے حلقے جدا جدا ناست وو، نو وے فرمایل:

[مَالِیْ اَرَاكُمْ عِزِيْنَ] (مسلم: ۹۹٦)

څه وجه ده چه زهٔ تاسو وینم چه ډله ډله ناست یئ۔ یعنی صفونو کښ کینئ او ډلے مهٔ

جوړوئ۔ دا اختلاف ته اشاره وی۔ او د کافرانو سره مشابهت دے۔

كَلَّا : (۱) هیچرے بے عمله طمع د جنت نهٔ ده پکار۔

(۲) هیچرے دوی جنت ته نشی داخلیدے۔

إِنَّا خَلَقْنَاهُم مِّمَّا يَعْلَمُونَ : انسان چه جنت ته داخلیږی نو په دوه طریقو سره، یو دا چه نیک عملونه ئے کړی وی، نو الله په (كَلَّا) سره هغه رد کړو چه دوی خو کافران دی جنت ته نشی داخلیدے۔ او دویم په زور سره جنت ته داخلیږی نو د دوی زور هم نشته، ځکه چه دوی الله تعالیٰ د هغه نطفے نه پیدا کړیدی چه دوی ته معلومه ده،

[لَا يَمْلِكُونَ لِأَنفُسِهِمْ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا]

د خپلو ځانونو دپاره د نفع او د ضرر اختیار نهٔ لری، دومره کمزورے مخلوق دے، نو دوی ته اُوګوره او په زوره جنت ته ننوتلو ته۔ مطلب دا شو چه د الله نه په زوره جنت ته نشئ ننوتے او عمل درکښ شته دے نهٔ۔

مِّمَّا يَعْلَمُونَ : ددے نه مراد نطفه ده، لیکن د هغے نوم ئے وانخستو بلکه مُبهم ئے ذکر کړو پدے کښ اشاره ده چه دوی خو د هغه ګنده شی نه پیدا شوی دی چه د هغے په ذکر کولو کښ هم حیاء راځی، نو بیا خو دوی لره دومره تکبر نهٔ دے پکار۔ او د دومره کمزورے مادے نه پیدا شویدی نو د الله په مقابله کښ به د دوی طاقت څه وی ؟!۔

| فَلَا أُقْسِمُ بِرَبِّ الْمَشَارِقِ وَالْمَغَارِبِ إِنَّا لَقَادِرُونَ ﴿٤٠﴾ |
| --- |
| نو داسے نهٔ ده، زهٔ قسم کوم په رب د مشرقونو او د مغربونو خامخا مونږ قادر یو۔ |
| عَلَىٰ أَن نُّبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ وَمَا نَحْنُ بِمَسْبُوقِينَ ﴿٤١﴾ |
| پدے چه بدل کښ راولو غوره د دوی نه او نهٔ یو مونږ عاجز (او کمزوری)۔ |
| فَذَرْهُمْ يَخُوضُوا وَيَلْعَبُوا حَتَّىٰ يُلَاقُوا |
| پس پریده دوی لره چه بکواس کوی او لوبے کوی تردے چه ملاؤ به شی |
| يَوْمَهُمُ الَّذِي يُوعَدُونَ ﴿٤٢﴾ يَوْمَ يَخْرُجُونَ مِنَ |
| د هغه ورځے سره چه دوی سره ئے وعده کیدیشی۔ په هغه ورځ چه را اُوځی به د |

| الْأَجْدَاثِ سِرَاعًا كَأَنَّهُمْ إِلَىٰ نُصُبٍ |
|---|
| قبرونو نه منډې وهونکی به وی ګویا که دوی باباګانو (معبودانو خپلو) ته |
| يُوفِضُونَ ﴿٤٣﴾ خَاشِعَةً أَبْصَارُهُمْ تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ |
| ورزغلی۔ ذلیله به وی سترګې د دوی، دپاسه به راغلې وی په دوی باندې ذلت۔ |
| ذَٰلِكَ الْيَوْمُ الَّذِي كَانُوا يُوعَدُونَ ﴿٤٤﴾ |
| دا هغه ورځ ده چه دوی سره ئې وعده کیدیشی۔ |

**تفسیر**: نو سوال پیدا شو چه هرکله دا کافران دومره ناکاره مخلوق دې، نو الله تعالیٰ دې ئې د مخ د زمکې نه ورك كړی، او عذاب دې پرې راولی؟ نو الله جواب كوی چه زهٔ پرې قادر یم، لیکن ما دوی ته مهلت ورکړیدې دپاره د امتحان۔

حافظ ابن کثیرؒ ددې آیت تفسیر داسې کړې چه په هغه رب مې دې قسم وی چه هغهٔ آسمانونه او زمکه پیدا کړې، مشرق او مغرب ئې جوړ کړې، او نمر او سپوږمۍ او ستورې ئې داسې تابع کړی چه هغه روزانه د یو مشرق نه را اوځی او په بل مغرب کښې ډوبیږی (یعنی هر کال د درې سوه شپیتو مشرقونو نه راخیژی، او په درې سوه شپیتو مغربونو کښې ډوبیږی) خبره داسې نهٔ ده څنګه چه تاسو ګمان کوئ چه مرګ نه پس ژوند، قیامت، حساب او جزاء او سزا نشته، بلکه دا ټولې خبرې رشتینې او یقینی دی۔

او په دې کښې د حیرانتیا کومه خبره ده؟، دوئ خو د الله د عظیم قدرت لیدنه کتنه د قیامت واقع کیدو نه په لوی څیز کښې کوی، یعنی د زمکې او آسمانونو پیدائش، او په دې کښې موجود تمام مخلوقات او موجودات په یو مخصوص نظام باندې پابند جوړول۔ یعنی کائنات پیدا کول او بیا دا په یو مخصوص نظام باندې چلول خو د قیامت د قائمولو نه ډیر لوی دی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه د مشرق او د مغرب په رب مې دې قسم وی! مونږ په دې قادر یو چه د قیامت په ورځ به انسانان د موجوده جسمونو نه په بنهٔ جسم کښې پیدا کوو، او مونږ ددې کار کولو نه عاجزه نهٔ یو۔

لکه څنګه چه الله تعالیٰ د سورة القیامة په (٣/٤) آیتونو کښې فرمایلی دی:

﴿ أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ بَلَىٰ قَادِرِينَ عَلَىٰ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُ ﴾

(آیا انسان دا خیال کوی چه مونږ به ددهٔ هډوکی جمع نهٔ کړو، هاؤ، خامخا به ئے جمع کوو، مونږ خو قادر یو چه مونږ به ددهٔ یو یو جوړ درست کړو).

(١) نو د (نُبَدِّلَ خَيْرًا مِّنْهُمْ) نه په آخرت کښې ښائسته جسمونه ورکول مراد دی.

(٢) یا ددے تبدیلئ نه مراد دا چه مونږ پدے قادر یو چه ددے موجوده کافرانو نه غوره صفاتو والا خلق پیدا کړو،

یعنی ددے کافرانو نه به زیات طاعت کونکی او ایمان لرونکی وی، او همدغسے وشوه چه د منکرینو په ځای ئے صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین او تابعین عظام رحمة الله علیهم اجمعین پیدا کړل.

نو پدے کښې موجوده کافرانو ته سخته زورنه ده چه که تاسو بے ایمانی او توقے ددے رسول پورے نهٔ پریدئ نو الله تعالیٰ به تاسو ختم کړی او ستاسو په ځای به نور خلق راپیدا کړی چه هغوی به د الله تعالیٰ ډیر منونکی وی.

او هر کله چه د انسانانو بدنونه ډیر دی، او هر یو لره فناء کولے شی (لکه د غروب په شان) او هر یو لره پیدا کولے شی لکه د طلوع په شان، نو ددے وجه نه ئے دلته مشارق او مغارب جمع هم ذکر کړل. (احسن الکلام)

**فَذَرْهُمْ**: یعنی زمونږ مشیئت او زمونږ مخکنے علم ددے تقاضا کوی چه دا خلق ډیے اُوس پریخودے شی، او په دوی ډے اُوس عذاب رانشی، او دوی ډے په بل شکلونو کښې بدل نکړے شی، بلکه اے زما نبی ! تهٔ دوئ په خپل حال پریده، چه په دنیا کښې په فاسدو عقائدو او په باطلو خبرو کښې مشغول پاتے شی، خوراك څښاك اوکړی، او مزے پورته کړی، او شرك او ګناهونه کوی، تردے پورے چه د قیامت ورځ راشی په کومه ورځ چه دوئ سره د عذاب وعده شوے ده. نو هلته به ورله الله تعالیٰ سزا ورکوی او اُوس دنیا کښې په دوی باندے امتحان دے.

**يَخُوضُوا**: ددے نه د عقیدے خرابی ته اشاره ده، او **يَلْعَبُوا** کښې د دوی دنیا پرستئ ته اشاره ده چه عمل نهٔ کوی.

**يَوْمَ يَخْرُجُونَ**: په دے ورځ به د دوئ حال دا وی چه دوئ به د خپلو قبرونو نه راوځی، د رابلونکی آواز طرفته به دومره تیزئ سره منډے وهی لکه یو لاره ورك کونکے سړے چه

د لارے نښه اووینی او هغے طرفته په تیزیٔ سره زغلی۔
د دویٔ نظرونه به د ذلت او رسوائی په وجه ښکته وی، او د دویٔ پوره وجود به د ذلت د بوج لاندے دباؤ روان وی، سترگے به ئے ښکته وی، د جسم او روح هر یو حرکت به ئے بند شوے وی، او ژبه به ئے گونگه وی۔ او دویٔ ته به وئیلے کیږی چه همدا هغه ورځ ده چه ددے وعده تاسو سره کیدلے شوه۔
مِنَ الْاَجْدَاثِ: جمع د جَدَث ده، قبر ته وئیلے شی۔
سِرَاعاً: جمع د سَرِیْعٌ ده حال د فاعل د یَخْرُجُوْنَ نه۔
اِلٰی نُصُبٍ: ۱- په پیښ د نون سره، جمع ئے اَنْصَاب راځی۔ په معنیٰ د هغه بت چه د عبادت دپاره ودرولے شوے وی۔
۲- یا نُصُب جمع د نَصْبٌ ده۔ لکه رُهُنٌ جمع د رَهْنٌ ده او سُقُفٌ جمع د سَقْفٌ ده۔
نو نصب هغه معبودان دی سویٰ د الله نه چه دوی به سهار وختی هغوی طرفته منډے وهلے او سرونه به ئے خکته کړی وو چه کوم به وریاندے اول لاس راکاږی او سجده به ورته لگوی، پدے کار کښ به دوی د یو بل نه مخکښ کیدل او دا به ئے برکت گنړلو۔
نو دلته الله تعالیٰ د مشرکانو یو خاص حالت بیان کړو چه لکه څنگه چه دوی دنیا کښ باباگانو ته منډے وهی نو دغه شان به په قیامت کښ هم منډے وهی۔
۳- ابن عباس رضی الله عنه وائی: اِلٰی عَلَمٍ یَسْتَبِقُوْنَ۔ گویا کښ دوی یوے نخے ته منډے وهی۔
٤- اِلٰی شَیْءٍ مَنْصُوْبٍ کَعَلَمٍ اَوْ رَایَةٍ۔ (کلبیؒ)
یو ودرولے شوے شی ته لکه نخه او جنډه ده۔ (فتح البیان والقرطبی)
لکه پخوانو جنگونو کښ به خلقو جنډے طرفته منډه وهله او کله چه به جنډه پریوته نو افراتفری به جوړه شوه۔ خو چه بیا به جنډه پورته شوه نو خلقو به هغے طرفته رامنډه کړه۔
یُوْفِضُوْنَ: اَیْ یُسْرِعُوْنَ اِسْرَاعَ مَنْ ضَلَّ عَنِ الطَّرِیْقِ اِلٰی اَعْلَامِهَا۔
یعنی داسے په جلتیٔ باندے ورزغلی لکه یو تن نه چه لاره ورکه شی او بیا د هغے نخے پیدا کړی او ورمنډه کړی۔
تَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ: دپاسه به پرے راغلے وی۔ په اِرْهَاق کښ معنیٰ د احاطے ده سره د تنگسیا نه۔ او دوی باندے دا ذلت ځکه راځی چه دوی به په دنیا کښ د حق نه ځان عزتمند گنړلو

او د هغې په وجه به ئې د قرآن کریم نه مخ اړولو۔
نو الله تعالیٰ په آخرت کښې ذلیله کړل او څوك چه په دنیا کښې حق ته ځان ذلیله کړی نو په آخرت کښې به عزتمند شی۔
وبالله التوفیق۔ وصلی الله وسلم علی نبینا محمد واله وصحبه اجمعین

## امتیازات د سورة المعارج

۱- پدے کښې د قیامت د ورځے اندازه پنځوس زره کاله ذکر شوه چه دا نور قرآن کښې نهٔ ده ذکر شوے۔
۲- د انسان تعریف پکښې په ناشنا انداز شوے چه إِنَّ الْإِنسَانَ خُلِقَ هَلُوعًا۔
۳- او ددے خبرے رد هم شویدے چه بے عمله انسان جنت ته نشی تللے۔
٤- او د جنت دوه اسباب دے سورت خودلی دی چه یو عمل دے او بل زور۔

ختم شو تفسیر د سورة المعارج په رحم د رحمن او رحیم سره۔ رمضان (۷) جون (۱۲)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آیاتها (۲۸) | (۷۱) سُوْرَةُ نُوْحٍ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (۲) |
| --- | --- | --- |

سورهٔ نوح مکی دے، په دے کښې اتیشت آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة نوح

**نوم :** په اولنی آیت کښې د نوح ؑ نوم راغلے، دارنګه په دے سورت کښې د نوح ؑ تفصیلی دعوت ذکر دے، دے وجے نه ددے نوم سورهٔ نوح کیښودلے شو۔

**د نازلیدو زمانه :** دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ ابن مردویهٔ او نورو د عبد الله بن زبیر ؓ نه روایت کړی دی چه ﴿ إِنَّا أَرْسَلْنَا نُوحًا ﴾ په مکه کښې نازل شوے وو۔

په دے مبارك سورت کښې صرف د نوح ؑ واقعه بیان شوے، ځکه چه دا یواځے هغه نبی دے چه هغهٔ نهه نیم سوه کالو پورے خپل قوم ته د توحید دعوت ورکولو، او دوئ نے د شرك نه ویرول۔

ددهٔ د نبوت د مودے ذکر د سورهٔ العنکبوت په (۱٤) آیت کښې تیر شوے دے۔

ابن ابی شیبهٔ، ابن ابی حاتمٔ، حاکمٔ او ابن مردویهٔ وغیره د ابن عباس ؓ نه نقل کړی دی چه الله تعالیٰ کله نوح ؑ رسول جوړ کړو او راوے لیږلو نو په دے وخت کښې ددهٔ عمر څلویښت کاله وو۔ دے نه پس هغهٔ خپل قوم نهه نیم سوه کالو پورے الله طرفته رابلل، او د طوفان نه پس شپیته کاله ژوندے وو، تردے چه د خلقو شماره زیاته شوه او څلور وارو طرفونو ته خوارهٔ شول۔

### مناسبت

۱- مخکښې د مجرمانو تذکره وشوه نو دلته دَعْوَةُ الْمُجْرِمِیْنَ دے۔ یعنی مجرمانو ته دعوت ورکړے شویدے، او طریقه د دعوت ذکر شویده۔

۲- هلته تهديد وو (يره وه) په عذاب اُخروى نو دلته تهديد دے په عذاب دنيوى سره۔ (اِنِّیْ لَكُمْ نَذِیْرٌ مُّبِیْنٌ)
۳- مخکښ سورت کښ تقابل وو د صفتونو د مؤمنانو او د کافرانو نو پدے سورت کښ د هغوى سبب د اختلاف ذکر کوى۔
٤- مخکښ سورت کښ اثبات د توحيد او د رسالت ذکر شو نو پدے سورت کښ دليل نقلى ذکر کوى د نوح عليه السلام نه۔

## د سورت مقصد او موضوع

درے خبرے دى چه د يو بل سره ترلى دى: (۱) اَلْاِنْذَارُ لِلْغَافِلِیْنَ۔
(غافلانو ته يره ورکول) او هغوى بيدارول چه اے خلقو! ويرېږئ د الله عذاب درته متوجه دے، غافلان هغه خلق دے چه د الله بندگى نهٔ کوى او د پيغمبرانو خبره نهٔ منى۔
(۲) ورسره: وَطُرُقُ الْاِنْذَارِ۔ يعنى د يرے ورکولو طريقے چه دا د نبى سره لګيږى چه نبى به په څه طريقه انذار کوى۔
يعنى داعى به څنګه انذار ورکوى؟ نو طريقه به ښائى۔
(۳) اَلْاِنْذَارُ بِالْعِبَادَةِ وَالتَّقْوٰى وَالْعَذَابِ وَالشِّرْكِ۔
انذار په درے خبرو دے، يو دا چه د الله بندگى وکړه او د هغه نه تقوىٰ وکړه ګنے فلانے عذاب به درباندے راشى۔ او انذار ئے په شرك هم ورکړيدے۔
(۲) زمونږ شيخ محترم (رستمى) رحمه الله تعالىٰ فرمائى: بيان د طريقے د دعوت الى الله او تشجيع ده په دعوت باندے سره د تخويف دنيوى نه په واقعه د نوح عليه السلام سره۔
پدے سورت کښ بيا پنځه پنځه خبرے ذکر شويدى۔
لکه نوح عليه السلام په پنځه طريقو دعوت کړيدے، پنځو خبرو ته ئے ترغيب ورکړيدے، او پنځه بشارتونه ئے ورکړيدى، او قوم په پنځه طريقو سره مخالفت کړيدے، دهٔ په پنځه طريقو سره د الله عظمت بيان کړيدے، بيا په پنځو باباګانو ئے رد کړيدے،
او بيا په پنځو طريقو په قوم باندے عذاب راغلے دے۔ تفصيل ئے په احسن الکلام کښ وګوره۔

| إِنَّا أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ أَنْ أَنذِرْ قَوْمَكَ |
|---|
| يقينا مونږ ليږلے وو نوح (عليه السلام) قوم د هغهٔ ته چه اُويروه قوم خپل |
| مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١﴾ قَالَ يَا قَوْمِ |
| مخکښې ددے نه چه راشي دوی ته عذاب دردناك. اُووئيل هغه اے قومه زما ! |
| إِنِّي لَكُمْ نَذِيرٌ مُّبِينٌ ﴿٢﴾ |
| يقيناً زهٔ تاسو لره يره درکونکے ښکاره يم. |

**تفسیر** : په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ خبر ورکړے چه هغهٔ نوح لره د هغهٔ قوم باندے د رحم کولو دپاره رسول جوړ کړو او هغوئ ته ئے ور اوليږهٔ، او هغهٔ ته ئے حکم اوکړو چه هغه خپل قوم ته د توحيد دعوت ورکړی، شرك نه ئے اُويروی، او هغوئ ته اوښائی چه که دوئ د شرك نه منع نشول نو د الله دردناك عذاب به دوئ ته راشي.

پدے کښې زمونږ دے امت ته هم تنبيه ده چه تاسو ته هم محمد رسول الله ﷺ راغے او تاسو د الله تعالیٰ د عذابونو او د شرکونو نه يروی ځکه چه د الله تعالیٰ عذاب درباندے راروان دے.

أَنذِرْ قَوْمَكَ: انذار يره ورکول دی د عذاب نه په سبب د انکار د توحيد سره.

عَذَابٌ أَلِيمٌ: دا دنيوی او اخروی دواړو عذابونو ته شامل دے.

قَالَ: دا د هغه د انذار تشريح ده.

او پدے کښې اعلان د رسالت خپل دے.

مُّبِينٌ: ښکاره انذار دا دے چه ستاسو په ژبه دے، او په اخلاص سره دے.

او دارنګه په صفا الفاظو سره دے.

يا د مُبين معنیٰ ده زهٔ بيانونکے يم د هغه څيز چه په هغے کښې ستاسو نجات دے.

يا زما انذار ښکاره دے چه هر چا ته دے، خپلوان او پردو ټولو ته.

| |
|---|
| أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ وَأَطِيْعُوْنِ ﴿٣﴾ يَغْفِرْ |
| چه بندګی اوکړئ د الله او اُویریږئ د هغهٔ نه او تابعداری اوکړئ زما۔ ویه بخی |
| لَكُمْ مِنْ ذُنُوْبِكُمْ وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلٰى أَجَلٍ مُّسَمًّى إِنَّ أَجَلَ |
| تاسو ته ګناهونه ستاسو او روستو به کړی تاسو لره نیتے مقررے پورے، یقیناً نیته |
| اللّٰهِ إِذَا جَآءَ لَا يُؤَخَّرُ لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿٤﴾ |
| د الله کله چه راشی، نهٔ به شی روستو کیدے که چرته تاسو پو هیږئ۔ |

**تفسیر**: پدے کښ ئے د انذار درے مقصدونه بیان کړیدی چه هغه د الله یواځے بندګی کول، او دویم د شرك او کفر او مخالفت کولو نه بچ کیدل، او دریم خپل اطاعت ته دعوت ورکول۔ معلومه شوه چه غټ مقاصد د انبیاء علیهم السلام دوه دی، یو توحید او دویم اتباع د سنت۔

أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاتَّقُوْهُ: عبادت اعمالو ته وائی، او تقویٰ ګناهونو پریخودو ته وائی۔

وَأَطِيْعُوْنِ: یعنی زما په طریقه د الله بندګی وکړئ۔

يَغْفِرْ لَكُمْ: پدے کښ د توحید او د سنت دوه فائدے ذکر شویدی، یوه اُخروی او دویمه دنیوی۔

مِنْ ذُنُوْبِكُمْ : مِنْ تبعیضیه دے، او مِنْ ئے پکښ ولے راوړو؟ نو یو دا اشاره ده هغه ګناهونو ته چه د اسلام راوړو نه مخکښ شوی وی، نهٔ روستنی ګناهونه کوم چه د اسلام نه روستو کیږی۔

یا (مِنْ ذُنُوْبِكُمُ الَّتِیْ تُبْتُمْ مِنْهَا) هغه ګناهونه چه تاسو ترے توبه ویستلی وی۔

حدیث کښ دی: (وَمَنْ أَسَاءَ فِي الْإِسْلَامِ أُخِذَ بِالْأَوَّلِ وَالْآخِرِ)

بخاری (٦٩٢١)

او که چا ایمان راوړو او په اسلام کښ هم همغه پخوانئ ګناه کوی، نو په مخکنئ او روستنئ دواړو باندے به رانیولے کیږی، بیا اسلام دهٔ ته دغه مخکنئ ګناه نهٔ معاف کوی۔

وَيُؤَخِّرْكُمْ إِلٰى أَجَلٍ مُّسَمًّى: ددے مطلب دا دے چه تاسو به یوے نیتے مقررے پورے

روستو کړی، یعنی تاسو باندې به عذابونه نهٔ راولی، دا داسې دې لکه ﴿ یُمَتِّعْکُمْ مَتَاعًا حَسَنًا﴾ (سورة هود: ۳) او (۵۲) کښې. یعنی څه وخته پورې به درله ښکلې فائدې درکړی، پریشانی به نهٔ درکوی.

دې کښې دا اشاره هم ده چه په نیکئ او په عبادت کښې د عمر ډیریدل هم شته، څوک چه د الله بندګی او نیکیانې کوی نو الله ورله عمر هم ډیر ورکوی، او دا په طریقه د تقدیر معلق سره دی لکه چه ابن کثیرؒ ذکر کړیدی.

إِنَّ أَجَلَ اللهِ: یعنی کله چه د الله تعالیٰ مقرر کړې نیټه د مرګ تاسو له راشی، یا ستاسو د عذاب وخت راشی، نو هغه بیا نشی روستو کیدې، بیا که تهٔ توبه وباسې نو د هغې به هیڅ فائده نهٔ وی، مخکښې نه د هغې دپاره تیاری وکړه.

لَوْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ: ددې لو جزاء پټه ده [لَآمَنْتُمْ وَتُبْتُمْ] که چرې تاسو پوهیدې نو تاسو به الله طرفته انابت/ رجوع کړې وې. او د خپلو ګناهونو نه به مو توبه کولې او د هغه نه به مو بخنه غوښتلې.

یا (لَعَبَدْتُمُ اللَّهَ) که تاسو پوهیدې نو د دغه یو الله تعالیٰ عبادت به مو کولې.

| قَالَ رَبِّ إِنِّیْ دَعَوْتُ قَوْمِیْ لَیْلًا وَّنَهَارًا ﴿۵﴾ |
|---|
| اُووئیل هغه اې ربه زما! یقیناً ما دعوت ورکړو قوم خپل ته شپه او ورځ. |
| فَلَمْ یَزِدْهُمْ دُعَائِیْ إِلَّا فِرَارًا ﴿۶﴾ وَإِنِّیْ كُلَّمَا |
| نو زیات نهٔ کړو دوی له بلنې زما مګر تیختنه. او یقیناً زهٔ هرکله چه |
| دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوْا |
| ما بللی دی دوی (توحید ته) دې دپاره چه تهٔ بخنه اُوکړې دوی ته کرځولی ئې دی |
| أَصَابِعَهُمْ فِیْ آذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِیَابَهُمْ |
| ګوتې خپلې په غوږونو خپلو کښې او څانونه ئې پټ کړیدی په جامو خپلو کښې |
| وَأَصَرُّوْا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ﴿۷﴾ |
| او کلک شویدی په ضد (همیشوالې کوی په کفر) او لوئی ئې کړیده ډیره لوئی. |

**تفسیر** : قَالَ رَبِّ إِنِّیْ دَعَوْتُ : لیکن د هغهٔ قوم د ډیر زیات کوشش باوجود د هغهٔ دعوت قبول نهٔ کړو، هغه ورسره نهه نیم سوه کاله دعوتی زندګی تیره کړه، نو اُوس آخری زمانه شوه چه د نوح علیه السلام زړه هم تنګ شو، او پوهه شو چه یو تن هم ایمان نهٔ راوړی نو هغهٔ د خپل رب په حضور کښې شکایت وکړو او تر آخر د سورت پورې ئے دعاء کړیده، او د الله تعالیٰ سره ئے مناجات کړیدے،

او پدے کښې د دعاء طریقه هم خودلے شویده. چه د الله نه دعا غواړے نو هغه ته به وړے وړے خبرے هم کوے، لکه یو ماشوم بچے چه مور ته شکایت کوی چه دا څای مے خوږیږی او داسے راباندے وشو او فلانی راته داسے ووئیل نو نوح علیه السلام هم خپل محبوب الله تعالیٰ ته دغه شان شکایتونه وکړل، او پدے دعا کښې هغهٔ خپل قوم ته دعوت کړیدے، په پنځه طریقو سره، په پنځه اوقاتو کښې ئے دعوت ذکر کړیدے.

نوح علیه السلام وفرمایل : چه زما ربه ! ما خپل قوم شپه او ورځ توحید او نیک عمل طرفته را اوبللو، لیکن دوئ د حق نه لرے شو، او زما حق دعوت دوئ ته هیڅ فائده ونهٔ رسوله، بلکه ما چه کله هم دوئ په الله تعالیٰ باندے ایمان طرفته دعوت کړل، دے دپاره چه تهٔ دوئ ته مغفرت (بخنه) وکړے، نو د دوئ نفرت او تکبر نور زیات شو، او دوئ په خپلو غوږونو کښې خپلے ګوتے ورکړے، دے دپاره چه د حق آواز چرته په دوئ باندے اثر ونهٔ کړی. او دوئ مانه او زما د دعوت نه د سخت نفرت په وجه په خپلو مخونو جامے واچولے، دے دپاره چه په ما باندے د دوئ نظرونه ونهٔ لګی، او دوئ خالص د عناد د وجه نه په خپل کفر او شرك باندے ټینګ پاتے شول، او په تکبر کښې راغلل، او د حق نه ئے انکار وکړو، یعنی ما چه څومره خپل دعوت تیز کړو، د هغوئ شر زیات شو، او د خیر صلاحیت او قابلیت قبلول په دوئ کښې ختم شو.

لِتَغْفِرَ لَهُمْ : دے نه معلومه شوه چه سبب د مغفرت ایمان راوړل او توحید قبلول او د الله بندګی ده.

وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ : یعنی په خپلو مخونو باندے جامه واچوی، دے دپاره چه نوح علیه السلام مو ونهٔ وینی او دعوت رانکړی.

وَأَصَرُّوا: یعنی کلك شی په خپل ضد او عناد باندے.

❁ همیشوالے کوی په خپل کفر.

دا د اِصْرَارُ الْحِمَار نه دے چه حمار وحشی (صحرائی خر) غوږونه اُوچت کړی، او د مؤنث په څټ باندے خوله کیدی او چیچی ئے او ورسره منډے وهی۔ نو دغه حال د مشرك دے چه په شرك پوړے کلك انختے وی۔

وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا: یعنی ځان لوی ګنړی د حق د قبلولو نه او د ایمان راوړو نه۔

| ثُمَّ إِنِّيْ دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا ﴿٨﴾ ثُمَّ إِنِّيْ أَعْلَنْتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ |
| --- |
| بیا یقیناً ما را اُوبلل دوی لره ښکاره۔ بیا یقیناً ما اعلان اُوکړو دوی ته او پټے پټے خبرے مے |
| لَهُمْ إِسْرَارًا ﴿٩﴾ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ |
| کړیدی دوی ته په پټو خبرو سره۔ نو ما ونیلی دی بخنه غواړئ د رب خپل نه |
| إِنَّهٗ كَانَ غَفَّارًا ﴿١٠﴾ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا ﴿١١﴾ |
| یقیناً هغه بخنه کونکے دے۔ را اُویه لیږی باران په تاسو باندے شیبے شیبے (ډیر) |
| وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ وَيَجْعَلْ لَّكُمْ |
| (پرله پسے)۔ او زیات به کړی تاسو لره مالونه او ځامن او وبه ګرځوی تاسو لره |
| جَنّٰتٍ وَّيَجْعَلْ لَّكُمْ أَنْهَارًا ﴿١٢﴾ مَا لَكُمْ لَا تَرْجُوْنَ |
| باغونه او وبه ګرځوی تاسو لره نهرونه۔ څه وجه ده تاسو لره چه امید نۀ ساتئ |
| لِلّٰهِ وَقَارًا ﴿١٣﴾ وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ﴿١٤﴾ |
| الله لره د عزت۔ او یقیناً هغۀ پیدا کړی یئ تاسو په مختلفو حالتونو۔ |

**تفسیر**: پدے کښې ئے د دعوت درے طریقے ذکر کړیدی۔

نوح علیه السلام وفرمایل: اے زما ربه! ما دوئ ته په ډاګه د توحید دعوت ورکړو، او د شرك نه مے منع کړل، ما دوئ سره د دعوت مختلفے طریقے اختیار کړے، کله مے ټول راجمع کړل او د خپل دعوت اعلان مے ورته اوکړو، او کله یو یو سره ملاؤ شوم او په پټه توګه مے د دوئ مخے ته خپل دعوت کیښوده، او دوئ ته مے اوونیل چه تاسو د خپلو تیرو شوو ګناهونو نه په رشتینے زړۀ سره د خپل رب نه بښنه وغواړئ،

هغه خپل خان طرفته د رجوع کونکو او په خپل حضور کښې د توبه کونکو خطاګانې ډیر زیات معاف کونکے دے۔ که چرې تاسو داسې اوکړئ نو هغه به ستاسو په زمکو ښۀ باران اُووروی، ستاسو پټی به شنۀ شنۀ شی، ښې ترکاریانې به پیدا شی، او ستاسو په روزئ کښې به ښۀ برکت راشی۔

او هغه به ستاسو په مال او اولاد کښې ډیروالے درکړی، او تاسو له به باغونه درکړی، او ددې باغونو او پټو د خړوبه کولو لپاره به نهرونه روان کړی۔

د دعوت وختونه (۱) لَیْلًا (۲) وَنَهَارًا (۳) جِهَارًا (٤) اعلان (٥) إِسرار۔

او د قوم مخالفت پنځه طریقې دا دی (۱) فرار (۲) جَعَلُوْا اَصَابِعَهُمْ ۔ (۳) وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ (٤) وَاَصَرُّوْا (٥) وَاسْتَكْبَرُوْا۔

جِهَارًا: د جهار (ښکاره) دعوت ورکولو یو صورت دا دے چه دوه او درې یا ډیرو کسانو پسې ورشی، او هغوی ته خبره وکړی۔

او اسرار دا دے چه یو تن پسې پټ د ورځې یا د شپې ورشی او دعوت ورکړی۔

او اعلان دا دے چه غټه مجمعه ناسته وی او هغوی ټولو ته آواز وکړی چه زما دعوت ومنئ۔ د جهار بل صورت دا دے چه کوم کسان نزدې نۀ راځی نو هغوی ته ښکاره واضحه خبره وکړی۔ او ددې درې الفاظو نه معلومه شوه چه دعوت به په هیڅ حالت کښې نشی پریخودے اګر که خلق هر څومره مخالفت وکړی۔

فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا : پدې کښې ئې د دعوت خلاصه ذکر کړیده، یعنی د هر قسم کفر او شرك او ګناهونو نه په زړه او په ژبه او عمل سره بخښنه وغواړئ، بیا ئې ددې پنځه فائدې ذکر کړیدی۔

يُرْسِلِ السَّمَاءَ: د سماء نه مراد باران دے۔

مِدْرَارًا: یعنی پرله پسې باران پداسې طریقه سره چه په مینځ کښې سوکړه نۀ راځی، او چه د باران ضرورت وی، نو د ضرورت مطابق وریږی او تباهی ورسره نۀ وی۔

ابن کثیرؒ او قرطبیؒ وغیره د امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه نه روایت راوړیدے چه هغه یوه ورځ استسقاء کوله، نو صرف استغفار ئې وکړو او واپس شو نو ورته ووئیل شو چه تاسو استسقاء ونکړه نو هغه وفرمایل : چه ما خو باران په حقیقی اسبابو سره وغوختو او بیا ئې دا آیت ولوستلو (فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ).

او حسن بصریؒ ته یو تن راغے د قحط شکایت ئے وکړو، نو هغه ورته ووئیل: چه استغفار وکړه۔ بل راغے چه غریب یم هغه ته ئے هم ووئیل: استغفار وکړه۔ بل ورته د نسل د کمی (بچی نهٔ کیدو) شکایت وکړو نو هغه ته ئے هم په استغفار حکم وکړو، بل ورته د فصلونو د کموالی شکایت وکړو، نو دهٔ ته ئے هم د بخښنے غوښتو حکم وکړو، نو ربیع بن صبیحؒ ورته ووئیل چه تا دے مختلفو تولو کسانو ته څنګه د یو استغفار حکم وکړو؟ نو هغه دا آیت ولوستلو او وے وئیل چه استغفار سره دا ټول فوائد حاصلیږی۔

او دا واقعی خبره ده چه استغفار او توبه کښې داسے نور ډیر فوائد شته چه عذابونه پرے دفع کیږی، الله تعالیٰ پدے باندے ډیر زیات خوشحالیږی۔

حدیث کښې دی: [طُوْبٰى لِمَنْ وَجَدَ فِيْ صَحِيْفَتِهٖ اسْتِغْفَارًا كَثِيْرًا]

د هغه چا دپاره خوشحالی ده چه په خپله عملنامه کښې ډیر استغفار ومومی۔

(ابن ماجه: ۳۸۱۸) وسنده صحیح)

شهابؒ وائی: د استغفار نه صرف اَسْتَغْفِرُ الله وئیل مراد نهٔ دی بلکه د ګناهونو نه رجوع کول او خپله ژبه او زړهٔ پاکول دی۔

وَيُمْدِدْكُمْ: یعنی استغفار د برکاتو د نازلیدو دپاره ښکلے سبب دے لکه دا خبره په سورة الاعراف (۹۶) آیت او سورة المائده (۶۶) آیت او سورة الجن (۱۶) آیت کښې راغلے ده۔

د مفسر قُشیریؒ نه روایت دے چه د چا څه حاجت وی الله تعالیٰ ته نو استغفار دِے وړاندے وکړی نو حاجت به ئے پوره کیږی۔

او پدے آیتونو کښې پنځه حاجات ئے په طبعی ترتیب سره ذکر کړیدی، اول هر انسان باران ته محتاج دے، بیا مالونو ته بیا ځامنو ته بیا باغاتو ته، بیا نهرونو ته۔

او ددے آیت نه صاحب الهدایه کمزورے فائده اخستے ده، او دا ئے وئیلی دی چه په استسقاء کښې مونځ نشته، ځکه چه قرآن کښې د استسقاء دپاره استغفار راغلے دے۔ نو دا خبره صحیح نهٔ ده، وجه دا ده چه قرآن کریم کښې استغفار راغے او زمونږ رسول الله ﷺ په استسقاء کښې مونځ هم کړیده، نو په آیت سره ولے د الله د رسول ﷺ عمل رد کړو۔ تیك ده د استسقاء ډیرے طریقے دی، یو د هغے نه صرف بخښنه غوښتل دی لکه د عمر فاروق رضی الله عنه په واقعه کښې ذکر شو، او بله طریقه مونځ کول دی لکه په همغه واقعه کښې

هم راغلي دي.

**فائده** : انبياء عليهم السلام چه به کله د دين دعوت کولو نو پدے کښ به ئے خلقو ته دنياوي لالچ هم ورکولو، او دا ورکول پکار دي ځکه چه کله انسانانو ته د دنيا لالچ ورنکړے شي، او صرف د آخرت غيبي خبرے او زيري ورته بيانوي، نو عام انسانان ظاهر بين او دنيا پرست دي، لکه قرآن کريم کښ هم دا طريقه اختيار وي فرمائي :

﴿لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا فِيْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ﴾ څوك چه نيك عمل وکړي نو پدے دنيا کښ ورته نيکي الله ورکوي) (النحل : ٣٠). او لکه مخکښ ﴿وَيُؤَخِّرْكُمْ اِلٰى اَجَلٍ مُّسَمًّى﴾ کښ هم ذکر شو. د قرآن کريم نه دا طريقه د دعوت زده کول پکار دي.

مَا لَكُمْ لَا تَرْجُوْنَ: ربط :

کله چه بنده د الله سبحانه وتعالیٰ نه استغفار نۀ غواړي نو ددے وجه دا وي چه هغه ورته لوي نۀ ښکاره کيږي نو دلته دعوت ورکوي د الله تعالیٰ عظمت ته. او چا ته چه خپل رب لوي ښکاره کيږي نو هغه نه زر بخنه غواړي چه اے الله ! ما ستا حقوق برباد کړيدي ما ته بخنه وکړه.

نوح ﷺ چه کله وکتل چه ددے تولو نصيحتونو هيڅ مُثبت اثر ددۀ په قوم باندے ونشو، نو د خبرو انداز ئے بدل کړو، او وے وئيل چه تاسو څنګه خراب خلق يئ چه ستاسو په زړونو کښ د الله تعالیٰ د عظمت او قدرت او د هغۀ د لويئ هيڅ اثر نشته، حالانکه ستاسو رب هغه دے چه هغۀ تاسو د مختلفو پړاوونو (حالتونو) نه تيرولو سره پيدا کړيئ، دے وجے نه هم هغه يواځے د عبادت حقدار دے.

مَا لَكُمْ : ١ - اَيْ مَا لَكُمْ لَا تَعْتَقِدُوْنَ لِلّٰهِ عَظَمَةً . (ابن عباس ﷺ)

يعني څه وجه ده تاسو لره چه تاسو د الله تعالیٰ د عظمت عقيده په زړه کښ نۀ لرئ.

٢ - دے ته نزدے حاصل معنیٰ حسن بصريؒ کړيده :

[لَا تَعْرِفُوْنَ لِلّٰهِ حَقًّا، وَلَا تَشْكُرُوْنَ لَهُ النِّعْمَةَ]

د الله حق نۀ پيژنئ او د هغه د نعمتونو شکر نۀ کوئ.

٣ - مجاهدؒ وئيلي دي : (لَا تَرَوْنَ لِلّٰهِ عَظَمَةً). تاسو نۀ ګنړئ د الله دپاره عظمت.

٤ - رجاء دلته په معنیٰ د خوف سره هم صحيح ده.

[اَيْ لَا تَخَافُوْنَ اللّٰهَ عَظَمَةً اَيْ لَا تَخَافُوْنَ حَقَّ عَظَمَتِهٖ فَتُوَحِّدُوْنَهٗ وَتُطِيْعُوْنَهٗ]

یعنی تاسو نهٔ یریږئ د الله تعالیٰ د لائق عظمت نه چه د هغهٔ توحید ومنئ او د هغهٔ اطاعت وکړئ۔

او خپله معنیٰ ئې دا ده چه: تاسو امید نهٔ لرئ د الله تعالیٰ د عزت۔ یعنی دا اُمید مو نشته چه الله تعالیٰ یو عزتمند ذات دے، ځکه چه د چا امید وی نو د هغه څه نا څه گمان وی، نو ستاسو دا گمان نشته چه د الله تعالیٰ عزت او عظمت شته۔

او دارنګه ځوك چه د الله تعالیٰ د عزت امید ولری چه هغه عزتمند ذات دے، نو بیا په هغهٔ باندے ایمان راوړی، او د هغهٔ خبره منی، دے دپاره چه هغه دهٔ ته عزت ورکړی۔

٥- لکه ددے بله معنیٰ بعضو مفسرینو داسے لیکلے ده:

[مَا لَكُمْ لَاتُؤَمِّلُوْنَ مِنَ اللّٰهِ تَوْقِیْرًا لَكُمْ بِأَنْ تُؤْمِنُوْا بِهٖ فَتَصِیْرُوْا مُوَقَّرِیْنَ عِنْدَهٗ]۔

یعنی تاسو لره څه شویدی چه تاسو د الله نه د خپل عزت امید نهٔ لرئ پدے طریقه چه په هغهٔ باندے ایمان راوړئ نو د هغه په نیز به عزتمند شئ۔ قرطبیؒ ددے دولس معانی لیکلی دی۔ (فتح البیان)

خطیب شربینیؒ لیکلی دی: چه د الله تعالیٰ توقیر دا دے چه تهٔ خپل حق په الله باندے نهٔ گنړے، او د هغهٔ په اختیاراتو کښې دخل او اعتراض نهٔ کوے، او د هغهٔ د امر او نهی سره معارضه نهٔ کوے، (بلکه هغے ته ډیر غاړه ایخودے وی)۔

او وقار دا هم دے چه بنده د الله تعالیٰ نه په هر حال کښې حیاء وکړی۔ لکه د امیر المؤمنین علی بن ابی طالب رضی الله عنه نه روایت دے چه رسول الله ﷺ څه کسان ولیدل چه په برېنډه ئې لامبل چه په هغوی باندے لنگوټه نهٔ وو، نو ودریدو او په اُوچت آواز ئې ووېل: (مَا لَكُمْ لَا تَرْجُوْنَ لِلّٰهِ وَقَارًا) اے خلقو تاسو د الله د عزت خیال ولے نهٔ ساتئ۔

(اخرجه عبد الرزاق: ١١٠٢) باسناد فیه مجهول)

دارنګه د هغهٔ وقار دا هم دے چه بنده د هغهٔ د عِقاب نه ویریږی او د هغهٔ د ثوابونو امید وساتی، او د هغهٔ طاعات ادا کړی۔

وَقَدْ خَلَقَكُمْ: دا بیان د وقار د الله تعالیٰ دے۔ یعنی د الله وقار به زمونږ زړونو کښې څنګه راشی؟ نو ددے طریقه دا ده چه د خپل پیدائش په حالاتو باندے سوچ وکړه نو د الله عظمت به ډیر زړه کښې راشی۔

أَطْوَارًا: جمع د طَوْرٌ ده، مختلفونو حالتونو ته وئیلے شی۔ پدے کښې مرتبو او حالاتو

د پیدائش ته اشاره ده، اول عناصر، بیا مرکباتِ غذائیه بیا اخلاط (بدن کښې ګډیدل) بیا نطفه، بیا علقه، بیا مُضغه، بیا هډوکي او غوښې او پلې او وینې، بیا روح اچول بیا دنیا ته راویستل، بیا وړوکوالے، بیا ځوانی، بیا بوډا والے، او دارنګه کله روغ او کله بیمار، کله مالدار او کله غریب۔

دارنګه د اخلاقو او کارونو اختلاف ته هم اشاره ده۔ نو دا د الله تعالیٰ د توحید او د هغهٔ د قدرت ښکاره دلیل دے۔ او دا مخکښې دلیل عقلي اَنفسي دے۔

| |
|---|
| أَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقاً ﴿١٥﴾ |
| آیا نهٔ ګورئ تاسو چه څنګه پیدا کړیدي الله تعالیٰ اُوه آسمانونه لاندے باندے۔ |
| وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُوراً وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجاً ﴿١٦﴾ |
| او ګرځولے ئے دے سپوږمۍ په دے کښې رڼا او ګرځولے ئے دے نمر چراغ بلیدونکے۔ |
| وَاللّٰهُ أَنبَتَكُم مِّنَ الْأَرْضِ نَبَاتاً ﴿١٧﴾ ثُمَّ يُعِيدُكُمْ |
| او الله راززرغون کړي یئ تاسو د زمکے نه په راززرغون کولو سره۔ بیا به واپس کوی |
| فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجاً ﴿١٨﴾ وَاللّٰهُ جَعَلَ لَكُمُ |
| تاسو په دے کښې او را اُویاسي به تاسو په بیا راویستو سره۔ او الله ګرځولے ده تاسو لره |
| الْأَرْضَ بِسَاطاً ﴿١٩﴾ لِتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلاً فِجَاجاً ﴿٢٠﴾ |
| زمکه خوره۔ دے دپاره چه روان شئ تاسو ددے نه په لارو فراخو۔ |

**تفسیر**: دا بل دلیل عقلي آفاقي دے۔ دلته نوح علیه السلام د الله تعالیٰ په عظمت او لوئ باندے د زمکے او آسمانونو او د نمر او سپوږمۍ د پیدائش په ذریعه استدلال اوکړو او وے وئیل: اے خلقو ! آیا تاسو ګورئ نهٔ چه الله تعالیٰ څنګه آسمانونه د یو بل دپاسه د ګنبد غونتې پیدا کړی دی۔

**أَلَمْ تَرَوْا**: دا ورسره د تنبیه او د متوجه کولو او د فکر او د علم د طلب دپاره وائی، او یواځے د سترګو لیدل مراد نهٔ دی۔

**طِبَاقاً**: یعنی لاندے باندے، بعضِ د بعضو دپاسه دی، او په مینځ کښې ئے ډیره فاصله

ده. تشریح ئے په سورة الملك کښې ذکر شوه.
وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِیهِنَّ نُورًا: یعنی الله تعالیٰ سپوږمۍ د دنیا په آسمان کښې ایښے ده چه ددے په رڼرا سره زمکه روښانه وی. او نمر له ئے د زمکے والو لپاره د چراغ حیثیت ورکړے، دے دپاره چه خلق د ورځے په رڼرا کښې د معاش حاصلولو کوشش وکړی.
نوراً: کله هغے ته وائی چه د بل شی نه اخستلے شوے وی، او سراج هغه دے چه د هغه نه نور اخستے شی، ددے وجه نه ئے په سورة الاحزاب کښې رسول الله ﷺ ته سراج وئیلے دے.
وَاللهُ أَنْبَتَكُم: دا بل دلیل عقلی دے چه پدے سره د الله تعالیٰ وقار په زړونو کښې راځی. او پدے دلیل کښې ئے مرګ او دوباره ژوند ذکر کړیدے دپاره د اثبات د قدرت د الله تعالیٰ.
یعنی او الله تعالیٰ تاسو د زمکے نه رازرغون کړی یئ، پدے کښې د آدم ﷺ حالت ته اشاره ده، یعنی ستاسو اصل خاوره ده، آدم ﷺ د خاورے نه پیدا شوے، او نطفه هم د هغه غِذاء (خوراك) نه تیاریږی چه هغه د خاورے نه پیدا کیږی، او ستاسو پیدائش د بوټو سره بیخی یوشان دے، په همدے طریقه تاسو ته ژوند ملاویږی، ستاسو غټیدل کیږی، بیا مړۀ کیږئ، نو په همدے طریقه دفن کولے شئ، او کله چه قیامت راشی، نو الله تعالیٰ به تاسو دوباره ژوندی کوی، او ددے خاورے نه به مو راؤباسی.
أَنْبَتَكُم: یعنی تاسو ئے د زمکے نه رازرغون کړئ. ددے نه مراد د انسان پیدائش او نشو ونما ده چه د زمکے نه ئے پیدا کړیدے، او د وړوکوالی نه پس ئے لوئی کړیدے، او د پست قدر نه روستو ئے دنګ قد وقامت ورکړیدے.
دویم قول دا دے چه أَنْبَتَكُم په اصل کښې أَنْبَتَ لَكُمْ دے، او مطلب دا دے چه ستاسو دپاره ئے بوټی د زمکے نه رازرغون کړیدی.
لیکن اوله توجیه د روستو جملو سره زیاته مناسبه ده.
إِخْرَاجًا: مفعول مطلق ئے د ناشنا والی دپاره راوړو، یعنی تاسو به په ناشنا راویستو سره د زمکے نه راوباسی.
وَاللهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا: دا بل دلیل عقلی دے. یعنی الله تعالیٰ ستاسو دپاره زمکه د فرش غوندے برابره جوړه کړے ده، دے دپاره چه تاسو په دے باندے ژوند وکړے

شيئ، او په دے کښې جوړے شوے فراخه لارو باندے آسانئ سره تلل وکړئ. که چرے الله تعالىٰ زمکه برابره نهٔ وے جوړه کړے، نو په دے باندے به ژوند تیرول ناممکن وے. پټې جوړول، بوټې کرل، کورونه جوړول، او د یو ځائے نه بل ځائے ته سفر کول. که دائے سخته جوړه کړے وے، نو د ژوند نور کارونه کول به نا ممکن وے.

فِجَاجاً: که لارے نهٔ وے نو انسانانو ته به څو مره تکلیف وے، لږ مزل به ورته اُوږدیدے لکه د غرونو مزلونو والو ته ددے نعمت معلومات زر کیږی، کله چه لاره ورکه شی نو بیا مزل څو مره اُوږد شی. او د موټروے نعمت ته وګوره چه په لږ وخت کښې مقصد ته ورسیږی.

پدے دلیلونو کښې نعمتونه هم دی، او د الله د معرفت دلیلونه هم دی، او پدے سره د الله تعالىٰ عظمت او وقار هم راځی، او دا د استغفار او د الله د بندګئ اسباب هم دی.

| قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا |
|---|
| ووئیل نوح (علیه السلام) اے ربه زما یقیناً دوی نافرمانی کړیده زما او تابعداری ئے |
| مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا ﴿٢١﴾ |
| کړیده د هغه چا چه نهٔ دے زیات کړے هغه لره مال د هغهٔ او بچی د هغهٔ مګر تاوان. |
| وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا ﴿٢٢﴾ وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ |
| او چلونه جوړ کړل دوی چلونه لوئی. او ووئیل دوی مهٔ پریدئ معبودان خپل |
| وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا ﴿٢٣﴾ وَقَدْ |
| او مهٔ پریدئ ود او سواع او یغوث او یعوق او نسر لره. او یقیناً |
| أَضَلُّوا كَثِيرًا وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا ﴿٢٤﴾ |
| دوی ګمراه کړیدی ډیر خلق او مهٔ زیاتوه ظالمانو لره مګر ګمراهی. |

**تفسير**: د نوح ﷺ داعیانه تقریر او د هغهٔ وعظ او نصیحت په دے کافر قوم باندے هیڅ اثر ونهٔ کړو، او د دوئ عناد زیات شو. نو هغهٔ خپل رب ته د دوئ بیا شکایت وکړو او وے وئیل چه اے زما ربه! ما چه دوئ ته د کومو خبرو حکم وکړو، په دے ټولو کښې

دوئ زما نافرمانی وکړه، او د هغه عیش پرستو او مالدارانو پسے روان شول چه د هغوئ مال او دولت او د هغوئ اولاد هغوئ لره د تاوان نه سوئ هیڅ ورنهٔ کړل، یعنی د دوئ په کفر او سرکشئ کښ اضافه وشوه، او د حق په مخالفت او دشمنئ کښ د دوئ سازش آخری سرته اورسیدهٔ۔

وَاتَّبَعُوا مَنْ لَّمْ يَزِدْهُ: اَیْ وَاتَّبَعُوا الْاَغْنِيَاءَ الْمُتَكَبِّرِيْنَ۔ یعنی دوی د متکبرو مالدارو پسے روان شول، او زما تابعداری ئے پریخوده، او دا قانون دے چه څوك د رسول تابعداری پریدی نو د بل گمراه مشر پسے به روانیږی۔ یعنی ضرور به د یو لیډر او مشر پسے ځی۔

او پدے کښ اشاره ده چه ددهٔ په قوم کښ دوه قسمه خلق وو،

یو قسم غټان وو چه خلق به ئے خپل تقلید ته رابلل، هغوی خو ډیر ضدیان او عنادیان وو، او د هغوی حال په (۷) آیت کښ ذکر شو۔

دویم قسم د هغوی تابعدار مقلدین وو چه هغوی دلیل ته نهٔ کتل ځکه چه د مشرانو سره ئے دلیل نهٔ وو بلکه د هغوی مالدارئ او ډلے ته ئے کتل چه د دوی په نیز دا سبب د حق پرستئ وو، حال دا چه هغه مال او اولاد خو د هغوی د تاوان سبب وو په طریقه د استدراج سره،

نو پدے آیت کښ اشاره ده چه په دوی کښ شرك فی التشریع والحكم موجود وو۔

لَّمْ يَزِدْهُ: مال او اولاد انسان لره تاوان په هغه وخت زیاتوی چه هغهٔ کښ تکبر او د حق خلاف راشی۔

وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا: د لوی مکرونو نه مراد: اَلتَّحْرِيْضُ عَلٰى قَتْلِهٖ وَتَكْذِيْبِهٖ۔

یعنی یو بل ته ئے تیزی ورکوله ددهٔ په قتل او ددهٔ په دروغجن گنړلو۔ او د دعوت په بندولو۔ لکه ظالمانو ته شیطانان ناشنا چلونه ښائی۔

وَقَالُوا: یو چل د هغوی دا وو چه د قوم دے سردارانو عوامو خلقو لره په شرك باندے را پارولو لپاره وویل چه د کومو معبودانو چه زمونږ او ستاسو پلرونو عبادت کولو، هغه هیڅ کله پریے نهٔ دئ، او د هغوئ په عبادت باندے په سختئ سره ټینګ پاتے شئ۔

خاصکر تاسو خپل معبودان وَد، سُوَاع، یغوث، یعوق او نسر په هیڅ حال کښ هیر نهٔ کړئ۔

امام بخاریؒ په کتاب التفسیر کښ د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت کړی دی چه د نوح علیه السلام

قوم چه د کومو معبودانو عبادت کولو، عربانو هم د هغے عبادت کولو۔ وَد، سُواع، یغوث، یعوق او نسر په قوم نوح کښې د نیکانو خلقو نومونه وو، کله چه دا خلق وفات شو نو شیطان د دوئ د قوم په زړونو کښې دا خبره واچوله چه د دوئ د ناستے په ځیونو بانديے د دوئ د نومونو مجسمے جوړے کړئ او ورے لګوئ۔ نو هغوئ داسے اوکړل۔ او کله چه دا خلق مړهٔ شول، او د دوئ د مینځ نه علم پورته شو، نو ددے مجسمو عبادت اوکړے شو۔

(یعنی شیطان ورسره دا چل وکړو چه دے مجسمو ته کتلو سره به ستاسو د مشرانو قدر په زړه کښې پاتے وی، او الله به درته یادیږی، بیا څه موده روستو ئے پدے مجبوره کړل چه خپلو عبادت خانو ته ئے هغه مجسمے راوړے او لږ وخت روستو د هغوی عبادت شروع شو، کشرانو ته ئے ورله وویل چه مشرانو به ددے عبادت کولو)۔

او ابن کثیرؒ د ابن ابی حاتمؒ په روایت سره ذکر کړیدی چه دا خلق به د وَد په قبر راجمع کیدل، بیا شیطان ورله د هغه تصویر جوړ کړو دپاره د یاداشت، بیا څه زمانه روستو د هغه تصویر عبادت شروع شو۔

معلومه شوه چه شرك اول د اولياؤ د قبرونو د محبت نه شروع شویدے۔

او امام بخاریؒ ذکر کړیدی چه ددے پنځه معبودانو عبادت شیطان مشرکینو د عربو ته هم رانقل کړو۔ (او هغه پدے طریقه چه عمرو بن عامر بن لحی الخزاعی د عربو یو لوی مشرك تیر شویدے، د هغهٔ یو جنی تابع وو، هغهٔ ورته ددے بتانو ځایونه وخودل، او دا ئے راویستل او عربو ته ئے راوړل او په قبائلو ئے تقسیم کړل)

وَدًّا: د کلب قبیلے وو په دومة الجندل مقام کښې د زمکے د شام نه چه نزدے ده عراق ته۔ او سواع د هذیل قبیلے وو په رُهَاط مقام کښې چه دا په زمکه د حجاز کښې دے په جهت د ساحل کښې مکے ته نزدے دے۔

او یغوث د مُراد او غطفان قبیلے وو په جرف مقام کښې د سبأ سره۔

او یعوق د همدان قبیلے وو په بلخ کښې او په خیوان کښې چه دا یو کلے دے په یمن کښې۔

او نسر د حمیر آل ذی کلاع قبیلے دپاره وو په زمکه د حمیر کښې۔

(الرحیق المختوم)

او په عربو کښې دوی ته نومونه منسوب شوی وو لکه عبد وَدّ او عبد یغوث۔

او شاه عبد العزیز دهلویؒ په تفسیر فتح العزیز کښې ذکر کړیدی چه همدا پنځه بتان د هندوستان هندوانو ته هم رانقل شویدی لیکن هغوی ئې نومونه بدل کړیدی، د ود نوم ئې بَرْهَما ایخې دے، او د سواع نوم بشن او د یغوث نوم اَنْدر، او د یعوق نوم ئې شیوجی او د نسر نوم ئې هنومان ایخې دے۔

بیا تفسیر قاسمیؒ لیکی چه مشهوره دا ده چه دا ټول د انسانانو په شکلونو وو۔ ځکه چه دوی عبادت د خپلو مشرانو کولو، نهٔ د نورو شکلونو۔

او نور مفسرین وائی چه ود د کلب قبیلے وو او د سړی په شکل وو، او دا مَظْهَرُ الْمَحَبَّة وو۔ یعنی دهٔ باندے به محبت رابنکاره کیدو، که چا به د چا سره مینه کوله نو دهٔ له به ورتلل۔

او سواع: د ښځے په شکل وو او د قیومیت معنیٰ ورکوی۔ یعنی د دوی په نیز قیوم زمان وو، د زمانے د کارونو تدبیر او پروګرام کونکے وو۔

یَغُوث: دا په شکل د زمری وو او دا د نصرت (مدد) دپاره وو، چه په کار کښې به ئې مدد غوښتو نو دے له به ورتلل۔ د غوث نه وو (مدد ته وائی)۔

او یعوق د آس په شکل وو او دا دَافِعُ الْبَلَاءِ وَالْوَبَاء وو، یعنی د مصیبتونو او ویاګانو د لرے کولو دپاره وو۔ او نسر د نسر مارغه په شکل وو۔

او بعض وائی د خرهٔ په شکل وو او دا د اِمْتِدَادُ الزَّمَان دپاره وو، یعنی د عمر د ډیرولو دپاره۔ (ذکره الواقدیؒ)

او علامه بقاعیؒ وائی چه ددے دواړو خبرو تعارض نشته ځکه چه دا به په اول کښې د نیکانو شکلونه وو، لیکن بیا د هغوی د نومونو نه د هغوی معانی منتزع شوے او د هغے مطابق شکلونه ئې جوړ کړے شول۔

او دا بتان یا خو حقیقةً عربو ته رانقل شوی وو، او په زمانه د طوفان نوح کښې دا طوفان د جدے په ساحل (غاړه) کښې دفن کړی وو، بیا شیطان لعین د عربو مشرکانو ته راویستل۔

لکه سیرت کښې راغلی دی چه د عمرو بن لحی خزاعی یو شیطان پیرے تابع وو، هغه ورته دا وخودل چه د نوح علیه السلام د قوم بتان د جدے په ساحل کښې پراتهٔ دی نو هغه ورته راغے او هغه ئې راویستل او عمرو بن لحی هغه د عربو په مختلفو قبائلو

تقسيم کړل نو چا يو بت وې وړو او چا بل.
پدې وجه په عامو عربو کښې ددې بتانو عبادت شروع شو. او بيا ئې ددې دپاره کوټې جوړې کړې وې چه د هغې تعظيم به ئې هم کولو. (الرحيق المختوم)
او بعض وائي چه عربو ته د دوی نو مونه رانقل شوي وو، او د نوح عليه السلام بچو به د هغوی تاريخ بيانولو او روستو زمانو والو د هغوی شکلونه جوړ کړل، او عبادتونه به ئې ورله کول. (روح البيان)
وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا: يعنی دې بتانو او باباګانو ❁ او مشرکانو مشرانو ډير خلق ګمراه کړل.
كَثِيرًا: نه معلومه شوه چه په ټول عالَم کښې د بتانو شرك په هره زمانه کښې زيات راروان دې. اوُس هم فکر وکړه ټوله دنيا کښې دا قسم شرك زيات دې، هندوان، چينيان، روسيان، او اکثر يورپ والا او استريليا او افريقه وغيره کښې بت پرستی زياته ده.
وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا: يعنی اې ربه! دا ظالمان نور هم ګمراه کړه. او دا ښيرې ئې ورته د الله تعالیٰ په امر باندې کړې وې ځکه چه ډير سخت عناديان ضديان وو.
ضَلَال: دلته خذلان (شرمولو) او استدراج ته وائي.
يعنی ښهٔ ئې ګمراه کړه چه دوی ګمان کوی چه مونږ په نيکئ روان يو، اُوکوره الله نعمتونه راکوی او په مينځ کښې ئې تهٔ هلاکوې. نو دا دعاء الله تعالیٰ قبوله کړه لکه روستو آيت کښې راځي.
ضَلَالًا: ددې نه معنیٰ معلومه شوه چه لکه څنګه چه په ايمان کښې زيادت راځي نو په ګمراهئ او کفر کښې هم زياتے راځي.
يا د ضلال نه مراد خسران (تاوان) دې.

| مِمَّا خَطِيئَاتِهِمْ أُغْرِقُوا فَأُدْخِلُوا نَارًا |
| --- |
| د وجې د ګناهونو د دوی نه غرق کړې شو دوی نو داخل کړې شول اُور ته |
| فَلَمْ يَجِدُوا لَهُمْ مِنْ دُونِ اللهِ أَنْصَارًا ﴿٢٥﴾ وَقَالَ نُوحٌ |
| نو مونده نکړو دوی د ځانونو دپاره سویٰ الله نه مددګاران. ووېل نوح عليه السلام |

| رَّبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ﴿٢٦﴾ |
|---|
| اے ربه زما! مهٔ پریده په زمکه باندے د کافرانو نه هیڅ آباد کور۔ (هیڅ گرزیدونکے) |
| إِنَّكَ إِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ |
| یقیناً تهٔ که چرے پریدے دوی لره گمراه به کړی بندگان ستا |
| وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا ﴿٢٧﴾ رَبِّ اغْفِرْ لِي |
| او نهٔ زیګوی دوی مگر بدکاره لوئی کافر۔ اے ربه زما! بخښنه اُوکړه ما ته |
| وَلِوَالِدَيَّ وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ مُؤْمِنًا |
| او مور او پلار زما ته او هغه چا ته چه داخل شی کور زما ته ایماندار |
| وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا تَبَارًا ﴿٢٨﴾ |
| او ټولو مؤمنانو سړو او مؤمنو ښځو ته او مهٔ زیاتوه ظالمانو لره مگر تباهي۔ |

**تفسیر**: الله تعالیٰ د نوح علیه السلام دعاء قبوله کړه، او ددهٔ قوم ئے د طوفان په ذریعه هلاك کړو۔ او د دوئ دا انجام د دوئ د هغه گناهونو په سبب شو چه د هغے د بد انجام نه دوئ نوح علیه السلام ویرولی وو، لیکن دوئ د هغهٔ خبره نهٔ وه منلے، نو د الله عذاب دوئ را گیر کړل، او ټول د سیلمے هلاك کړے شول، او همیشه لپاره جهنم ته اورسیدل، او د الله د عذاب نه دوئ هیڅوا بچ نهٔ کړے شول۔

مِـمَّا: دے کښې مِنْ اجلیـه دے او مَا زیاتـی ده۔ یعنی دوی ددے هلاکت مستحق د گناهونو په وجه شو۔

فَأُدْخِلُوا: یعنی د غرقیدو سره سمدست اُور ته ورسیدل۔

فَلَمْ يَجِدُوا لَهُم: پدے کښې تعریض دے په دغه مشرکانو چه دوی کوم پنځه معبودان (بتان) د خپل مدد دپاره نیولی وو نو هغوی ورسره هیڅ مدد ونکړو او همدغسے نامراده لاړل۔

وَقَالَ نُوحٌ رَّبِّ: اُوس پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ د نوح علیه السلام هغه دعاء ذکر کړے ده چه د هغے په سبب طوفان راغے، او تمام کافران هلاك شول۔

گناهونـه ئې مـخـکـښې ذکـر کـړل د هـغـوی د شرك سره یو ځای، او سبب د هلاکت مخکښې ذکر شو نو اُوس بنیرے ذکر کیږی۔
هـغهٔ وویـل : اے زما ربه ! اُوس په اُوچه زمکه باندے هیڅ یو کافر هم پرے نهٔ دے، ځکه چه کـه تـهٔ دوئ پـریـدے نو دوئ به ستا بندګان ګمراه کړی، او دوئ به د توحید د لارے نه واړوی او د شـرك په لاره به ئې روان کړی، او د دوئ په نسل کښې هم کافران او فاجران خلق پیدا کیږی۔
نوح ؑ دا خبره په خپـل قـوم باندے د اُوږدے تجربے نه پس کړے وه، هغهٔ ته د دوئ د اخـلاقو او کردار پوره پته وه، او یقین ئې راغلے وو چه اُوس دا قوم هیڅ کله نهٔ سمیږی، او نـهٔ د دوئ پـه نسل کښې ښهٔ خلق پیدا کیږی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ د هغهٔ دعاء قبوله کړه او تمام کافران ئې هلاك کړل، او نوح ؑ او د هغهٔ مومنانو ملګرو له ئې نجات ورکړو۔
او دغسے د الله تعالیٰ دپاره غیرتی دعاء موسیٰ ؑ هم کړے وه کله چه د فرعونیانو د ایمان نه نا امیده شو۔
دَيَّاراً : اَیْ اَحَدًا یَدُوْرُ۔ هیڅ یو تن چه ګرځی۔
وَلَا یَلِدُوْا : یـعـنـی د دوی اولاد چه پیدا کیږی پدے نهه نیم سوه کالو کښې نو هغه هم کافر کیږی، او اُوسه پورے یو هم پکښې ایمان رانهٔ وړو۔
مفسرین لیکی چه یوه ورځ د یو سړی په غیږ کښې یو ماشوم وو نو پلار ئې دغه ماشوم تـه ویـل چـه دا روان سړے زمـونـږ د پلارانو نیکونو د دین مخالف دے، نو هغه ماشوم ویل چه ما کوز کړه، هغه ئې چه کوز کړو نو هغه کانړی راواخستل او نوح ؑ ئې پرے ویشتلو۔ انا لله وانا الیه راجعون ولا حول ولا قوة الا بالله العظیم۔
**سوال : اولاد د هغوی خو ګناهګار نهٔ وو نو هغوی ولے غرق شول ؟**
**جواب :** د هـغـوی غـرق کـیـدل د هغوی دپاره عذاب نهٔ وو بلکه د هغوی د مرګ دپاره یـو سـبـب وو لـکـه چـه پـه نـورو اسبابو سره الله تعالیٰ په هغوی باندے مرګ راولی، او هلاك کیدل د اولاد زیادت د عذاب وو د مور او پلار دپاره چه د هغوی په وړاندے ئې اولاد غرق شول، نو د هغوی زړونو ته ښه درد اُورسیدو۔
رَبِّ اغْفِرْ لِیْ : کـافـرانـو تـه د ښیرو کولو نه پس نوح ؑ پـه آخـر کښې خپـل ځان له، خپل مور پلار لپاره، او هغه تمامو نارینه او زنانه مومنانو لپاره د مغفرت دعاء وغوښته

چه هغوئ د دهٔ په کور کښې داخل شی۔

او د آیت په آخر کښې ئې بیا کافرانو ته ښیرے وکړے او وے وئیل چه اے الله! ته د ظالمانو او کافرانو هلاکت او بربادی او نقصان او خساره نوره هم زیاته کړه۔

امام شوکانیؒ لیکی چه د نوح علیه السلام ښیرے قیامته پورے هر کس ته شاملے دی، لکه څنګه چه د هغهٔ دا نیکه دعاء قیامته پورے راتلونکی نارینه او زنانه مومنانو ته شامله ده۔ نو دا ډیره مفیده دعاء ده چه الله ئې قبلوی، او دا زیرے دے د ټولو مؤمنانو او زمونږ دپاره چه مونږ کښې کله ایمان وی۔

او د ایمان یوه فائده دا هم ده چه مستجاب الدعوة پیغمبران به درته دعاء کوی۔

اغْفِرْ لِيْ: ځان ته د مغفرت دعاء کول ګناه لره مستلزم نهٔ دی بلکه پدے کښې د الله په حق د عبدیت کښې د قصور اقرار دے دپاره د تضرع۔

وَلِوَالِدَيَّ: مفسرینو لیکلی دی چه د نوح علیه السلام په پلارانو کښې تر آدم علیه السلام پورے هیڅوك کافر نهٔ وو۔ د پلار نوم ئې لامك یا لمك بن متوشلخ وو او مور ئې شمخا بنت انوش وه۔

وَلِمَنْ دَخَلَ بَيْتِيَ: دے بیت کښې ډیر احتماله دی: کور د نوح علیه السلام، مسجد د هغهٔ، کشتئ د هغهٔ، دین د هغهٔ او دا ټول صحیح دی۔

مؤمنًا کښې اشاره ده چه صرف داخلیدل کافی نهٔ دی بلکه چه په حالت د ایمان کښې وی نو پدے سره د هغه یو ځوی (کنعان) او د هغه ښځه ددے دعاء نه بهر دی ځکه چه هغوی مؤمنان نهٔ وو۔

وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِيْنَ: مخکښې خاص ښیرے وے د هغه قوم ته اُوس عامے ښیرے دی ټولو کافرانو مشرکانو ته په هره زمانه کښې۔

تَبَارًا: هلاکت او تاوان۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورت

۱- دے سورت کښې د نوح علیه السلام پوره واقعه۔

۲- او پنځه پنځه خبرے۔

۳- او د دعوت طریقے۔ ختم شو تفسیر د سورة نوح۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

| آیاتها (۲۸) | (۷۲) سُوۡرَةُ الۡجِنِّ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (۲) |
| --- | --- | --- |

سورة الجن مکی دے، په دے کښې اتیشت آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة الجن

**نوم :** (۱) په اولنی آیت کښې [جِنّ] لفظ راغلے۔ دارنګه په دے سورت کښې د ایمان د ستائنے او د کفر د بدئ په باره کښې د پیریانو تفصیلی خبرے راغلی، دے وجے نه ددے نوم [سورة الجن] کیښودے شو۔ (۲) او دے ته سُوۡرَتِ قُلۡ اُوۡحِیَ هم وائی۔

**د نازلیدو زمانه :** قرطبیؒ لیکلی دی چه دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ ابن مردویهؒ او بیهقیؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړی دی چه سورة الجن په مکه کښې نازل شوے۔ ابن مردویهؒ د عائشے او عبد الله بن زبیر رضی الله عنهم نه هم دا روایت نقل کړے۔ د سورتِ احقاف د (۲۹) آیت نه تر (۳۲) آیتونو پورے الله تعالیٰ بیان کړی دی چه د پیریانو یوے ډلے نبی کریم ﷺ ته د قرآن آوریدو دپاره غوږ کیښودۀ، او د هغۀ د تلاوت نه متاثره شول او اسلام ئے قبول کړو، او خپل قوم خواته واپس لاړل او د هغوئ مخے ته ئے د اسلام دعوت پیش کړو۔

### مناسبت :

۱- مخکښې سورت کښې په توحید او انذار باندے دلیل نقلی د نوح ﷺ نه بیان شو نو پدے سورت کښې دلیل نقلی د جناتو نه راوړی په توحید او رسالت باندے۔ چه دا حق پیریان هم منی۔

۲- په مخکښې سورت کښې هم د توحید بیان او رد د شرك وشو نو دلته هم رد د شرك دے په بیل انداز سره۔ ﴿قُلۡ اِنَّمَاۤ اَدۡعُوۡا رَبِّیۡ﴾

۳- مخکښې سورت کښې تشجیع او تیزی په دعوت باندې په واقعه د نوح ﷺ سره نو دلته تشجیع او تیزی ده په دعوت باندې په واقعه د پیریانو سره۔

## د سورت مقصود

۱- اَلدَّلِیْلُ النَّقْلِیُّ مِنَ الْجِنِّ عَلٰی صِدْقِ الرَّسُوْلِ ﷺ۔

یعنی د رسول الله ﷺ او د هغهٔ د دعوت په رشتینوالی باندې د جناتو نه دلیل نقلی۔

یعنی د رسول الله ﷺ په ټولو خبرو باندې پیریانو تصدیق کړیدې، نو دلیل دې چه د هغهٔ ټولې خبرې حقې دی۔

د رسول الله ﷺ یو دعوت دا دې چه قرآن حق کتاب دې۔

بل دا دې چه شرك مهٔ کوئ۔ بل دا چه آخرت شته۔

۲- یا رد د شرك دې په واقعه د جناتو سره، او دلیل وحیې سره د نبی کریم ﷺ نه، او پدې کښې رد د شرك دې عموماً، او خصوصًا رد دې په اتخاذ الولد او په شرك فی العلم او فی الدعاء او فی التصرف او فی الاستعاذه۔ (احسن الکلام)۔

په سورت کښې ټول د پیریانو بیان دې او په مینځ کښې د رسول الله ﷺ لږ شان بیان دې۔

| قُلْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ |
|---|
| تهٔ اُووایه ! وحی کړې شویده ما ته چه یقیناً غوږ ایښې دې څه کسانو د پیریانو نه |
| فَقَالُوا إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا ﴿۱﴾ |
| نو اُووئیل دوی یقینا مونږ آوریدلې دې قرآن ناشنا۔ |

**تفسیر:** شانِ نزول

رسول الله ﷺ په مکه کښې دعوت وکړو لیکن مشرکانو ونهٔ منلو، نو هغه بهر ته لاړو لکه دا واقعه امام احمدؒ، بخاریؒ، مسلمؒ او ترمذیؒ او داسې نورو د ابن عباس ﷺ نه روایت کړیده چه نبی کریم ﷺ د صحابه کرامو رضی الله عنهم اجمعین د یوې ډلې سره د عُکاظ میلې طرفته روان شو (چه دا طائف ته نزدې یو بازار دې) هغه وخت شیطانان په پټه باندې د آسمان خبر آوریدو ته د غوږ کیښودو نه منع شوی وو، او ددې خبرې

کوشش کونکی شیطانان به په شغلو سره ویشتلے کیدل۔

کله چه شیطانان نا مراده واپس راغلل، نو د دویٔ ملګرو د دویٔ نه تپوس اوکړو چه قصه څهٔ ده؟ نو هغویٔ ووئیل چه اُوس مونږه د آسمان د خبر آوریدو نه په قطعی توګه منع شوی یو، او مونږ په بلو لمبو سره ویشتلے کیږو۔ شیطانانو ووئیل: خامخا څهٔ نوے خبره راغلے ده چه د هغے په وجه مونږ د آسمان د خبرو آوریدو نه منع شوی یو۔ دے وجے نه تاسو په مشرق او مغرب کښ هر طرفته لاړ شئ او حقیقتِ حال معلوم کړئ۔

چنانچه کوم شیطانان چه تهامه طرفته لاړل، هغویٔ د رسول الله ﷺ خواته وادئ نخله ته اُورسیدل۔ نبی ﷺ د عکاظ بازار ته تلل غوښتل، او دغه وخت ئے صحابه کرامؓ سره د صبا مونځ کولو۔ پیریانو د هغهٔ تلاوت په غور سره د آوریدو نه پس اوونیل چه همدا هغه قرآن دے چه هغهٔ اوس مونږه د آسمان د خبرونو آوریدو نه منع کړی یو، او هغویٔ مسلمانان شول۔ کله چه دا پیریان خپل قوم خواته راغلل، نو هغویٔ ته ئے ووئیل:

(يَا قَوْمَنَا: اِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا يَهْدِیْ اِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهٖ وَلَنْ نُّشْرِكَ بِرَبِّنَا اَحَدًا)

اے زمونږه قومه! مونږ یو عجیب قرآن آوریدلے چه هغه نیغه لاره ښائی، دے وجے نه مونږ په دے ایمان راوړو، او اوس مونږ د خپل رب سره هیڅوک شریك نهٔ جوړوو۔ په دے موقعه الله تعالیٰ په خپل نبی ﷺ باندے ﴿قُلْ اُوْحِيَ اِلَيَّ اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ﴾ نازل کړو۔

او رسول الله ﷺ لا تر اُوسه د دوی د حال نه خبر نهٔ دے تردے چه قرآن کښ د هغوی ایمان او د هغوی دعوت خپل قوم ته نازل شو۔ نو نبی کریم ﷺ بیا خپل قوم ته بیان کړه۔ او د پیریانو بیان ډیر مزیدار دے پدے وجه الله تعالیٰ د امت دپاره رانقل کړیدے۔

او دا د ابتداء زمانے خبره ده، بیا روستو زمانه کښ به پیریان راتلل او د رسول الله ﷺ سره به ملاویدل او د هغهٔ نه به ئے د مسئلو تپوسونه کول، او کله به ئے هغه تقریرونو له بوتللو۔ او کله به ئے ترے څیزونه غوښتل۔ خو پدے موقعه ورسره نهٔ وو ملاؤ شوے۔

ملاعلی القاریؒ په مرقات کښ لیکلی دی چه د جناتو واقعه شپږ کرته راغلے ده، بعض په مکه کښ، او بعض په بطنِ نخله کښ، او بعض په مدینه کښ، دوه کرته ورسره ابن مسعود ﷺ وو او څلور کرته ورسره نهٔ وو۔

جنات د مسلمانانو او د تولو حقو شرائعو والو په نیز موجود دی، او مکلف مخلوق

دے، او یو هوائی مخلوق دے چه په سترګو نهٔ ښکاره کیږی، مګر هله چه د یو شی په شکل راشی، او الله ورله طاقتونه ورکړیدی.
فلاسفه او معتزله د پیریانو نه انکار کوی او دے زمانه کښې ترے دهریه خلق منکر دی. څوك چه پیریان نهٔ منی نو دے د هیڅ حقیقت نه خبر نهٔ دے.
د پیریانو وجود د الله تعالیٰ د وجود دلیل دے.
قُلْ اُوْحِیَ: دا دلیل دے چه نبی کریم ﷺ د قرآن د آوریدو په وخت کښې دا پیریان نهٔ وو لیدلی، او نهٔ د هغوی نه خبر وو بلکه الله تعالیٰ ورته روستو په وحی سره خبر ورکړو، نو دا دلیل دے چه رسول الله ﷺ په غیبو نهٔ پوهیدو مګر که وحی به ورته وشوه.
نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ : دا جنات د نینویٰ علاقے وو اوه کسان وو یا نهه وو.
بعض وائی چه درے تنه د اهل حران او څلور د اهل نصیبین وو.
ماوردیؒ وَغیره ددے واقعے ډیر فوائد ذکر کړیدی لکه :
۱ - په ظاهره کښې پیریانو د نبی ﷺ د ژبے نه قرآن آوریدو سره سَم اسلام قبول کړے وو.
۲ - نبی کریم ﷺ د انسانانو غونته پیریانو لپاره هم رسول جوړ شوے او رالیږل شوے وو.
۳ - قریشو ته وئیلی شوی دی چه پیریانو قرآن واوریدهٔ او ددے د معجزانه شان اقرار ئے اوکړو، او په رسول کریم ﷺ باندے ئے فورًا ایمان راوړو. یعنی پیریان سره د سرکشئ نه د قرآن په وجهِ ایمان ته مجبوره شول.
٤ - د انسانانو غونته پیریان هم د احکامِ شرعیه وُ مکلف (پابند) دی.
٥ - پیریان زمونږ خبرے آوری، او زمونږه ژبے پیژنی.
نَفَرٌ : دا اسم جمع ده د دریو نه تر لسو پورے کسانو دپاره استعمالیږی.
فَقَالُوْا: یعنی هغوی خپل قوم ته وویل کله چه واپس شول.
قُرْاٰنًا: دلته مصدر دے یعنی قِرَاءَةً جَامِعَةً. یعنی مونږ جامع لوستل واوریدل.
یا قرآن په خپله معنیٰ دے، او دوی د قرآن نوم هم زده کړو.
یا دا چه د مخکنو آسمانی کتابونو د علم په سبب ئے د قرآن نوم پیژندلو لکه سورة احقاف (۳۰) آیت کښې دی: ﴿اِنَّا سَمِعْنَا كِتٰبًا اُنْزِلَ مِنْۢ بَعْدِ مُوْسٰى﴾.

عَجَباً: قرآن د اعلیٰ درجې فصاحت او بلاغت او ډیر علم او زور والی د معانیو په وجه ناشنا کتاب دے۔

❁ یا نصیحتونه ئې ډیر ناشنا دی۔

❁ یا ناشنا کتاب پدې وجه سره دے چه پدے کښې ناشنا مسئله د توحید وه چه دوی په دغه زمانه کښې د یهودیانو او نصاراو نه نهٔ وه آوریدلے لکه مشرکانو هم ورته ﴿ لَشَیْءٌ عُجَابٌ ﴾ وئیلے وو په سورة ص (۵) آیت کښې۔

| |
|---|
| یَهْدِیْ اِلَی الرُّشْدِ فَاٰمَنَّا بِهٖ وَلَنْ نُّشْرِكَ |
| هدایت کوی کامیابۍ ته نو ایمان راوړو مونږ په دے، او هیچرے برخه دار نهٔ جوړه وو |
| بِرَبِّنَا اَحَدًا ﴿۲﴾ وَّاَنَّهٗ تَعٰلٰی جَدُّ رَبِّنَا |
| مونږ د رب خپل سره هیڅوك۔ او یقیناً اُوچت دے شان د رب زمونږ، |
| مَا اتَّخَذَ صَاحِبَةً وَّلَا وَلَدًا ﴿۳﴾ وَّاَنَّهٗ كَانَ یَقُوْلُ سَفِیْهُنَا عَلَى اللّٰهِ |
| نهٔ ئې دے نیولے ښځه او نهٔ بچے۔ او یقیناً وئیل به بیوقوف زمونږ نه په الله باندے |
| شَطَطًا ﴿۴﴾ وَّاَنَّا ظَنَنَّآ اَنْ لَّنْ تَقُوْلَ الْاِنْسُ |
| د حد نه زیاته خبره۔ او یقیناً مونږ گمان کوو چه هیڅکله به نهٔ وائی انسانان |
| وَالْجِنُّ عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا ﴿۵﴾ وَّاَنَّهٗ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْاِنْسِ یَعُوْذُوْنَ |
| او پیریان په الله باندے دروغ۔ او یقیناً وو سړی د انسانانو نه پناهي به ئې طلب کوله |
| بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوْهُمْ رَهَقًا ﴿۶﴾ |
| په سړو د پیریانو نو زیاته ئې کړه دوی لره سرکشي۔ |

**تفسیر**: کله چه الله تعالیٰ پیریانو له (د قرآن آوریدو نه پس) د توحید او ایمان توفیق ورکړو، او د ایمان راوړو نه مخکښې چه د توحید د عقیدے خلاف په کومو غلطیو کښې پراتهٔ وو، د هغے احساس ورته اوشو،

او ورته معلومه شوه چه الله تعالیٰ د خپل هیڅ یو مخلوق سره مشابه نهٔ دے، او نهٔ د

هغهٔ څهٔ ښځه شته او نهٔ اولاد، نو د الله تعالیٰ پاکي او عظمت ئے بيان کړو.
او وے وئیل چه زمونږ رب عظمت او لویئ والا دے، هم هغه د ټولو رشتینے پالونکے دے، او تمام پاکیزه نومونه هم هغهٔ لپاره دی، هغهٔ ځانله نهٔ څهٔ ښځه نیولے، ځکه چه د ښځے محتاج کمزور او عاجز انسان وی، دے دپاره چه په خپل بدن کښې را پورته کیدونکے شهوت د هغے سره د جوختیدو په ذریعه پوره کړے شی، او نهٔ د هغهٔ څوك اولاد شته، ځکه اولاد د ښځے او خاوند د ملاویدو په نتیجه کښې پیدا کیږی، او د الله تعالیٰ هیڅ ښځه نشته.
يَهْدِىٓ إِلَى الرُّشْدِ : یعنی لاره ښائی د کامیابئ خبرو ته. رُشد هغه هدایت ته وائی چه سړے پکښې کامیابئ ته ورسیږی.
په بل تعبیر: رشد هغه حق دے چه په عمل کولو کښې مقصد ته رسیدل او کامیابی وی. یا لاره ښائی د پوهے او عقل خبرو ته.
د رشد نه مراد حق، کامیابی، ایمان، او د الله معرفت او توحید دے.
وَلَن نُّشْرِكَ: دے نه معلومیږی چه دا پیریان مشرکان وو.
بعض وائی: دوی یهودیان وو، او بعض وائی نصاراؤ وو، او ځینی وائی چه دوی مجوسیان او مشرکان وو.
او دا دلیل دے چه دوی د قرآن په مقصد پوهه شو چه د هدایت او د قرآن مقصد دا دے چه بنده د شرکیاتو نه لاس واخلی او یواځے د الله بندګی وکړی.
وَأَنَّهُ تَعَالَىٰ جَدُّ رَبِّنَا : (۱) دا یا د (أُوحِيَ إِلَيَّ) لاندے دے، نو دا به بیا د رسول الله ﷺ وینا شی. یعنی ما ته دا وحی هم شویده چه زمونږ د رب شان ډیر لوی دے.
(۲) ظاهر دا ده چه دا د آمَنَّا بِهِ د لاندے دے. او دا هم د پیریانو خبره ده. اَیْ آمَنَّا بِأَنَّهُ تَعَالَىٰ. یعنی زمونږ پدے هم ایمان دے چه زمونږ د رب شان ډیر اُوچت دے.
جد په معنیٰ د عظمت او شان او جلال سره دے.
كَانَ يَقُولُ سَفِيهُنَا : ددے نه مراد ابلیس او د پیریانو مشران دی چه دوی ته به ئے د شرك دعوت ورکولو. مطلب دا چه په مونږ کښې کومو ناپوهه کسانو به مونږ ګمراه کولو، هغوئ به د یهودو او نصاریٰ او مشرکانو خبره منله او د الله تعالیٰ په باره کښې به ئے دا دروغژنه خبره کوله چه د هغهٔ ښځه او اولاد شته دے.

او د نبی کریم ﷺ په ژبه د قرآن د آوریدو نه مخکښ پورے مونږ همدا گنړله چه پیریان او انسانان به د الله په باره کښ دروغ نهٔ وائی۔
**شَطَطاً**: په اصل کښ بُعد (لرے والی) ته وئیلے کیږی، نو کومه خبره چه د صدق او د عدل نه لرے وی هغے ته شطط وئیلے کیږی، نو عدوان او دروغ او ظلم او د حد نه تیریدو ته شامل دے۔ یعنی د حد نه تیروتے خبره۔ چه هغه نسبت د ولد او شریك دے هغهٔ ته۔
او ددے نه دا هم معلومه شوه چه څوك د قرآن کریم علم حاصل کړی نو هغهٔ ته د مخلوق حقیقت معلوم شی چه سفیه دے او که رشید۔
**أَن لَّن تَقُولَ الْإِنسُ**: ددے خلقو ذهن خالی او پاك وو چه پیریان او انسانان به په الله باندے دروغ نهٔ وائی، لکه د بعض عوامو ذهن صفا وی نو هغوی وائی چه ملا ولے په الله دروغ ووائی، او ولے ملا گنے قرآن نهٔ دے وئیلے، ولے هغه گنے د آخرت نه نهٔ یریږی۔ د هغهٔ خپله زړه صفا وی نو د هغهٔ دا گمان وی چه ټول به دغسے وی، او دے ته نهٔ گوری چه په ملیانو کښ هم لوی گمراهان شته۔
د کذب نه مراد نسبت د شریکانو او د ولد او صاحبے الله تعالیٰ ته دے، یعنی زمونږ دا گمان وو چه نسبت د شریکانو به الله تعالیٰ ته صحیح وی، او الله به پدے شرك کښ اجازه ورکړی وی، او خلق به دروغ نهٔ وائی خو چه مونږ ته پته ولگیده چه دا خو به انسانانو او پیریانو په الله باندے دروغ وئیلے۔
او دا هم دلیل دے چه د قرآن کریم د علم نه بغیر انسان ته هر څوك حق پرست او رشتینی ښکاره کیږی او د حق او د باطل تمیز نشی کولے، او دا مرتبه د تقلید جامد ده۔
**رَهَقاً**: طغیان (سرکشی) او جرأت ته وائی۔ پدے کښ رد دے په شرك فی الاستعاذه باندے چه مخکښ به انسانانو د پیریانو نه پناهی طلب کوله۔
په جاهلیت زمانه کښ به چه د یو تن په یوه صحراء کښ شپه راغله نو هلته به ئے داسے وویل: (اَعُوْذُ بِسَیِّدِ هٰذَا الْوَادِیْ مِنْ سُفَهَاءِ قَوْمِهٖ) زهٔ ددے علاقے په سردار باندے پناهی غواړم چه د هغه د قوم کم عقلان ما ته ضرر رانکړی۔
نو پدے کښ به مشران پیریان راولگیدل او نورو ته به ئے وویل چه دهٔ ته څه مهٔ وایئ دا زما گاونډی دے، نو هغهٔ به په امن کښ شپه تیره کړه۔ نو ددے په وجه د پیریانو څان ته طمعه پیدا شوه چه مونږ نه خو انسانان یریږی، او مونږ پورے پناهی غواړی۔ (ابن جریر

وابن مردویة عن ابن عباس ﷺ)

یو صحابی (عکرمه بن ابی السائب انصاری ﷺ) وائی چه زهٔ د پلار سره مدینے طرفته په یو حاجت کښې روان وم او دا اول هغه دور وو چه د رسول الله ﷺ په مکه کښې خبره ښکاره شوے وه، نو په مونږ باندے شپه راغله نو مونږ د ګډو بزو یو شپونکی خواته ورغلو نو کله چه نیمه شپه شوه، یو شرمخ راغے او د ګډو بزو نه ئے یو بچے وتښتولو نو شپونکی توپ کړو او دا ئے وویل : (یَا عَامِرَ الْوَادِیْ اَنَا جَارُكَ)

اے ددے علاقے آبادونکے (مشره) ! زهٔ ستا ګاونډے یم۔ (زما حفاظت وکړه) نو پدے کښې یو آواز کونکی آواز وکړو : (یَا سَرْحَانُ اَرْسِلْهُ)

اے سرحانه ! دا پریده۔ نو بچے په منډه راغے او په ګډو بیرو کښې ننوتو، او الله تعالیٰ په خپل رسول باندے (وَاَنَّهٗ کَانَ رِجَالٌ) الآیة نازل کړو۔ دا پیریانو تښتولے وه۔

(المعجم الکبیر للطبرانی ۱۵۷۶۲) معجم الصحابة (۲۰۲۹) وفیه عبد الرحمن بن اسحاق الکوفی ضعیف)

بعض اهل علم ددے صحابی نوم کردم بن ابی السائب ﷺ ذکر کوی۔

مقاتل بن حیانؒ وائی : په پیریانو پورے اول پناهی د یمن والو نه یو قوم غوختله، بیا بنو حنیفه ؤ، بیا دا په عربو کښې خوره شوه۔ چه کله به کوم سړی په کومه کنده کښې پړاؤ اچولو نو وئیل به ئے : زهٔ ددے کندے د سردار په ذریعه پناه غواړم۔ خو کله چه اسلام راغے نو خلقو به د الله په ذریعه پناه غوښتله، او پیریان ئے پریښودل۔ (فتح البیان)

او عامو اوقاتو کښې هم خلق د پیریانو نه مددونه غواړی او په هغوی باندے کارونه کوی، او کارونه ورته سپاری هم، تعویذ ګر خلق په تعویذونو کښې ایاها او شراحا باندے پناهی حاصلوی، د شیطانانو او پیریانو نومونه پکښې لیکی، او د هغوی نه پناهی طلب کوی او مددونه ترے غواړی او پدے باندے ځانله صحتونه کوی۔

امام مسلمؒ په (کتاب الذکر والدعاء) کښې د خوله بنت حکیم رضی الله عنها روایت نقل کړے دے چه رسول الله ﷺ فرمائی :

[مَنْ نَزَلَ مَنْزِلًا ثُمَّ قَالَ : أَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللّٰهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ، لَمْ يَضُرُّهُ شَيْءٌ حَتّٰى يَرْتَحِلَ مِنْ مَنْزِلِهٖ ذٰلِكَ]

کوم کس چه په کوم ځی کښې پړاؤ واچوی بیا داسے ووائی : ﴿ أَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ

مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ﴾ (زهٔ د الله د کلمات تامه په ذریعه د هغهٔ د مخلوق د شر نه پناه غواړم). نو دهٔ ته به هیڅ شے نقصان ورنهٔ کړی، ترڅو چه دا د هغهٔ ځی نه لاړ شی. (مسلم: ۷۰۵۳)

ددے حدیث نه د پورتنی آیت کریمه په تفسیر باندے رڼرا چولے کیږی چه د پیریانو په ذریعه د انسانانو پناه غوښتل شرك دے.

فَزَادُوهُمْ رَهَقًا: فاعل ضمیر انسانانو ته راجع دے او مفعول ضمیر پیریانو ته. یعنی زیات کړو انسانانو پیریانو لره سرکشی. نو د پیریانو سردارانو وویل: سُدْنَا الْإِنْسَ وَالْجِنَّ. مونږ د انسانانو او د پیریانو دواړو مشران جوړ شولو. پدے باندے خوشحاله شو. یا دواړه ضمیرونه برعکس راجع دی.

او ابن کثیرؒ وائی چه رهق جرأت ته هم وائی، یعنی اول به پیریان د انسانانو نه یریدل، بیا چه کله دوی ترے پناهی طلب کړه نو پیریان زړه ور شو چه دوی خو مونږ نه یریږی. اوله معنیٰ ظاهره ده.

| وَأَنَّهُمْ ظَنُّوا كَمَا ظَنَنتُمْ أَن لَّن يَبْعَثَ |
|---|
| او یقیناً دوی گمان کوو لکه څنګه چه گمان کوئ تاسو چه هیچرے به راونهٔ لیږی |
| اللَّهُ أَحَدًا ﴿٧﴾ وَأَنَّا لَمَسْنَا |
| الله هیڅوك. (الله به دوباره ژوندے نهٔ کړی هیچا لره). او یقیناً مونږ مسه کړو |
| السَّمَاءَ فَوَجَدْنَاهَا مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيدًا وَشُهُبًا ﴿٨﴾ |
| آسمان نو اُوموندو مونږ دا چه ډك شوے وو د څوکیدارانو سختو او شغلو نه. |
| وَأَنَّا كُنَّا نَقْعُدُ مِنْهَا مَقَاعِدَ لِلسَّمْعِ |
| او یقیناً مونږ به کیناستو د هغے نه په ځائے د کیناستو دپاره د غوږ کیخودو |
| فَمَن يَسْتَمِعِ الْآنَ يَجِدْ لَهُ شِهَابًا رَّصَدًا ﴿٩﴾ |
| نو څوك چه غوږ کیدی اُوس مونده به کړی ځان لره شغله (لمبه) تیاره. |

**تفسیر:** وَأَنَّهُمْ ظَنُّوا: (۱) یعنی دے پیریانو خپل قوم ته دا هم اُوویل چه انسانان هم ستاسو پشان په دے گمان کښ مبتلا وو چه الله تعالیٰ خلقو ته د توحید د دعوت

ورکولو او هغویٔ د شرك نه د ویرولو لپاره هیڅ یو کس خپل رسول نهٔ رالیږي۔
(۲) د آیت دویمه معنیٰ دا کیدے شي چه انسانان هم ستاسو پشان په دے گمان کښې اخته وو چه الله تعالیٰ به هیڅ یو کس ژوندے نهٔ کړي د قیامت په ورځ۔
لیکن د قرآن په آوریدو سره دا ظن باطل ښکاره شو۔ عربو ته رسالت ډیر ناشنا ښکاره کیدو، دا وجه ده چه چا به د رسالت دعوه هم نهٔ کوله۔ دے خبرے ته د چا فکر نهٔ وو۔ اول احتمال غوره دے، د سیاق مناسب دے۔
وَاَنَّا لَمَسْنَا السَّمَاءَ: دا هم د پیریانو اقوال دي، درے جملے دي، په اوله کښې د دوی حال ذکر دے په وخت د نزول د قرآن کریم کښې، او په دویمه کښې د دوی حال ذکر دے مخکښې د نزول د قرآن نه، او دریمه جمله د اولے جملے سره متعلق ده۔
یعنی هغویٔ دا هم ویل چه مونږ آسمان ته نزدے شو او د ملائکو خبرے مو آوریدل وغوښتل، نو هغه مو ډیرو زیاتو ساتونکو قوی ملائکو نه ډك اوموندلو، او د لمبو سره مخامخ شو۔ او مونږ به مخکښې په خپلو خاصو ځایونو کښې کیناستو او د ملائکو خبرو آوریدو کوشش به مو کولو،
لیکن اُوس حال دا دے چه څوك په پټه باندے آوریدل غواړي، هغه به د لمبو سره مخامخ کیږي کومے چه ددهٔ د سوزولو دپاره تیارے شوی دي۔
لَمَسْنَا: د التماس نه دے په معنیٰ د طلب د خبر په سبب د مخکني عادت سره۔
یا لمس او مس په یوه معنیٰ دے گوتے وروړولو ته وئیلے شي، او څوك چه یو شي له گوتے وروړل غواړي نو هغهٔ طلب کوي نو پدے کښې معنیٰ د طلب پرته ده۔
حَرَسًا: جمع د حارس ده، څوکیدارو ته وائي۔ مراد ترے نه جماعت د ملائك دے چه ډیر قوي وي چه هغوی آسمان د شیطانانو د غوږ کیخودو نه ساتي۔
یا حرس مفرد دے په معنیٰ د جمع سره، نو پدے وجهٔ شَدِیْدًا صفت مفرد راوړو۔
وَشُهُبًا: جمع د شهاب ده، هغه شعله او لمبه چه د ستوری د اُور نه راخستے شوی وي۔
وَاَنَّا کُنَّا نَقْعُدُ: یعنی مونږ به د ملائکو د خبرو د آوریدو دپاره په خاصو ځایونو کښې کیناستو، نو ملائکو به مونږ ته څه نهٔ وئیل،
لیکن کله چه الله تعالیٰ خپل نبي مبعوث کړو نو بیا به شیطانان ډیر ویشتلے کیدل، دے دپاره چه د ملائکو خبرے وانهٔ وري او د کاهنانو او د رسول په خبره کښې فرق راشي۔

ځکه چه کاهن د شیطانانو په واسطه خبره کوي، او رسول الله ﷺ د جبریل علیه السلام په واسطه حقه خبره کوي، نو بیا به التباس راشي نو الله تعالیٰ د کاهنانو لاره بنده کړه.

فَمَنْ يَسْتَمِعِ الْآنَ : اَیْ بَعْدَ مَا جَاءَ الرَّسُوْلُ ـ یعني اوس چه کله رسول راغے او ددے نه روستو څوك ملائکو ته غوږ کیږدي نو تیاره لمبه وربورے ونخلي.

رَّصَدًا: یعني تیاره. په انتظار کښې.

**فائده** : د علماؤ پدے کښې اختلاف دے چه د قرآن کریم د نزول نه مخکښې د شیطانانو د ویشتلو دپاره څوکیداران ملائك وو او که نهٔ ؟ (۱) یو قول دا دے چه نهٔ وو.

(۲) مګر غوره دا ده چه مخکښې هم داسے حالت وو لیکن لږ وو، دلیل پرے مخکښې د سورة الملك آیت دے ﴿ وَجَعَلْنَاهَا رُجُوْمًا لِّلشَّيَاطِيْنِ ﴾ چه الله ستورې د شیطانانو د ویشتلو دپاره پیدا کړیدی. او په وخت د نزول د قرآن کښې دا ویشتل ډیر شول لکه چه لفظ د مُلِئَتْ حَرَسًا شَدِيْدًا پرے دلیل دے.

او د عبد الملك بن سابورؒ نه نقل دی چه د عیسیٰ علیه السلام او د محمد ﷺ ترمینځ د فترت زمانه کښې به آسمان ملائکو نهٔ ساتلو خو کله چه محمد ﷺ مبعوث شو نو آسمان وساتلے شو او شیطانان په لمبو ویشتلے شول، او آسمان ته د نزدے کیدو نه منع شول. او دغه شان خبره نافع بن جبیرؒ هم کړیده.

دارنګه اختلاف دے چه آیا پدے زمانه کښې د شیطانانو ویشتل کیږي او که نهٔ ؟ نو د سورة الشعراء د آیتونو (۲۲۲/۲۲۳) نه معلومیږي چه اوس هم دوی استراق السمع کوي، او اکثر خو په شعله قتل شي یا زخمي شي، او بعض بچ شي، نو د کاهن په غوږ کښې یوه خبره واچوي او هغه ورسره د ځان نه سل خبرے یو ځای کړي لکه دا خبره په صحیح حدیث کښې راغلے ده او مخکښې بار بار ذکر شویده.

دارنګه د سورة الملك وغیره آیت پرے دلیل دے.

| وَاَنَّا لَا نَدْرِیْٓ اَشَرٌّ اُرِيْدَ بِمَنْ فِي الْاَرْضِ اَمْ |
|---|
| او یقیناً نهٔ پوهیږو چه آیا د شر اراده شویده په هغه چا چه په زمکه کښې دي یا |
| اَرَادَ بِهِمْ رَبُّهُمْ رَشَدًا ﴿۱۰﴾ وَاَنَّا مِنَّا الصّٰلِحُوْنَ |
| اراده کړے په دوی باندے رب د دوی د هدایت. او یقیناً بعض زمونږ نه نیکان دي |

| وَمِنَّا دُونَ ذٰلِكَ كُنَّا طَرَائِقَ قِدَدًا ﴿١١﴾ |
|---|
| او بعض ز مونږ نه سوئ دی ددے نه، وو مونږ جماعتونه مختلفو لارو والا۔ |
| وَأَنَّا ظَنَنَّا أَنْ لَنْ نُعْجِزَ اللّٰهَ فِي الْأَرْضِ |
| او يقيناً مونږ گمان كولو چه هيڅرے به عاجز نكړو مونږ الله لره په زمكه كښ |
| وَلَنْ نُعْجِزَهُ هَرَبًا ﴿١٢﴾ وَأَنَّا لَمَّا |
| او هيڅرے به عاجز نۀ كړو هغۀ لره په تختيدو سره۔ او يقيناً مونږ هركله چه |
| سَمِعْنَا الْهُدٰى آمَنَّا بِهٖ فَمَنْ يُؤْمِنْ |
| واوريدو هدايت نو ايمان راوړو مونږ په هغه باندے نو څوك چه ايمان راوړى |
| بِرَبِّهٖ فَلَا يَخَافُ بَخْسًا وَلَا رَهَقًا ﴿١٣﴾ |
| په رب خپل نو نۀ به يريږى د كموالى (د نيكو) او نۀ د زياتى نه۔ |

**تفسير**: هر كله چه پيريانو دپاره په پټه باندے د آسمانونو خبرے آوريدل ممكن پاتے نشوے، نو دوئ تـه يـقـين راغـے چه الله تعالىٰ به خامخا په زمكه باندے واقع كيدونكے د څۀ لوى حادثے فيصله كړے وى، برابره خبره ده كه هغه بنه وى اوكه بده۔ دے وجے نه هغوئ ووئيل: مونږ نۀ پيژنو چه په زمكه باندے د اوسيدونكو دپاره څۀ بده فيصله شوے ده، يا د دوئ رب خير طرفته د دوئ لاربنوونه كول غوښتلى دى۔

**وَأَنَّا لَا نَدْرِيْ**: يعنى مخكښ د ملاقات زمونږ نه ددے رسول سره او ددۀ د كلام آوريدو نه، مونږ نۀ پو هيدو چه د شر اراده شويده۔

**أَشَرٌّ أُرِيْدَ**: مفسرين ليكى: دے مسلمانانو پيريانو د خپل رب دا بنۀ ادب اوكړو چه هغوئ د (شر) نسبت هغۀ طرفته ونۀ كړو، او كله چه د خير ذكر راغے نو هغه ئے هغۀ طرفته منسوب كړو۔

**رَشَدًا**: د شر په مقابله كښ ئے رشد راوړو څكه چه په رُشد كښ د كاميابئ او د هدايت دواړو معنىٰ پرته ده۔ او دا دواړه خيرونه دى۔

**وَأَنَّا مِنَّا الصَّالِحُوْنَ**: پيريانو د خپل قوم په باره كښ دا خبر وركړو چه د نبى كريم ﷺ

په ژبه باندے د قرآن کریم آوریدو نه پس په مونږ کښې څینو ایمان راوړو، او څینے په کفر باندے باقي پاتے شول۔
دویمه معنیٰ دا بیان شوے ده چه د ایمان راوړو نه پس په مونږ کښې بعضِ نیك او د شریعت پابند مسلمانان دي، او د بعضو ایمان کمزورے او په عمل کښې کوتاه دي۔ او زمونږ ترمینځه د مختلفو مذهبونو او نظریاتو منونکي خلق شته دے۔
صَالِحُوْنَ : نه مراد مؤمنان او د دُوْنَ ذٰلِكَ نه مراد کافران او مشرکان دي۔ یا صالحون کامل مؤمنان او دُوْنَ نه مراد فاسقان دي۔
طَرَائِقَ : جمع د طریقت ده په معنیٰ د مذهب او مسلك سره، او ددے نه مراد اهل طرائق دي په حذف د مضاف سره، یا طرائق په معنیٰ د طَوَائِف (ډلے) سره دے۔
قِدَدًا: جمع د قِدَّةٌ ده، ټکړے ته وئیلے شي، او تفرق (جدا جدا) کیدو ته هم وائي۔
عرب وائي : صَارَ الْقَوْمُ قِدَدًا اَیْ تَفَرَّقَتْ اَحْوَالُهُمْ۔ وګرزیدو قوم قدد یعنی احوال ئے مختلف شول۔ نو دلته معنیٰ ده : ډلے مختلفے۔
او قِدَدًا ئے تاکید د طرائق راوړو پدے کښې اشاره ده چه دا ډلے د یو بل نه منقطع شویدی د وجه د ضد او تعصب نه۔
د سعید بن مسیبؒ وینا ده چه په پیریانو کښې مسلمانان، یهودیان، نصرانیان او مجوسیان ټول شته دے۔ او د حسن بصریؒ وینا ده چه په دویٔ کښې د انسانانو په شان قدریه، مُرجئه، خوارج او رافضي شیعه ګان او سنیان هم شته۔
او تر اُوسه پورے په دوی کښې د انسانانو په شان نوے نوے فرقے هم شته۔
ابن کثیرؒ د اعمشؒ نه روایت راوړیدے چه زمونږ خوا ته به یو پیرے راتللو، چه کله به ئے مونږ سره روټۍ هم خوړله چه لاس به ئے ښکاره کیدو او نور به نۀ ښکاره کیدو، نو ما ترے تپوس وکړو چه تاسو کښې ډلے شته ؟ هغه ووئیل : آؤ، تاسو کښې ډیر ناکاره څوك دي ؟ نو هغه ووئیل : روافض (شیعه ګان)۔
نو ددے پیریانو مطلب دادے چه ډیرے ډلے نۀ دي جوړول پکار بلکه همدغه یو قرآن او حدیث کافي دے، نورو ډلو کښې هیڅ کامیابي نشته۔ دا کلام د دوی د دعوت دپاره ذکر شویدے۔ نۀ د هسے خبر ورکولو دپاره۔ یعنی د دوی اتحاد به هله راځي چه دوی ټول د حق تابع شي نو پکار ده چه دوی هم حق طلب کړي چه بیا په هغے باندے متفق شي۔

(التحریر والتنویر)

وَّاَنَّا ظَنَنَّا: ظن دلته هم په معنیٰ د یقین دے۔ یعني پیریانو دا هم ووېل چه اُوس زمونږ یقین راغے چه الله تعالیٰ په هر شئ قادر دے، او مونږ خالص عاجزه اوے وسه یو، زمونږ تندی د الله په اختیار کښ دی، مونږ په زمکه باندے په هیڅ حال کښ هغهٔ لره عاجزه نشو جوړولے، او د هغهٔ نه هیچرته تښتیدلے نشو۔ نو بیا ولے مونږ ددهٔ طاعت نهٔ کوو، ولے د هغهٔ د نبی تابعداری نهٔ کوو۔ خامخا به ئے طاعت کوے۔

او د علم نه په ظن سره تعبیر کولو کښ خطیب شربینیؒ دا نکته ذکر کړیده چه په علم باندے د ظن اطلاق پدے وجه سره شویدے چه عاقل لره پکار دی چه په څه څیز کښ د ضرر او د نقصان گمان وی د هغے نه دِ دے ځان بچ وساتی۔

وَّاَنَّا لَمَّا سَمِعْنَا الْهُدٰى : د هدی نه مراد قرآن کریم دے۔ ځکه دا د هدایت کتاب دے۔ یعني او مونږ چه کله هغه قرآن واوریدهٔ کوم چه نیغه لاره ښائی نو زمونږه سمدس یقین راغے چه دا د الله له اړخه نازل شوے کتاب دے، نو څوك چه په خپل رب ایمان راوړی، د هغهٔ په نیکیو کښ به د قیامت په ورځ هیڅ کمے نهٔ کیږی، بلکه هغهٔ ته به ددے پوره پوره بدله ورکړے کیږی، او د هغهٔ په عملنامه کښ به څهٔ داسے گناه نهٔ زیاتیږی چه هغه دهٔ په دنیا کښ نهٔ وی کړی۔

فَمَنْ يُّؤْمِنْ: دا ترغیب دے خلقو ته د ایمان راوړلو۔ چه ایمان کښ ډیرے فائدے دی۔

بَخْسًا وَّلَا رَهَقًا: بخس په اجر کښ کمی ته او رهق سپکاوی ته وئیلے شی۔ نو دا دلیل دے چه څوك ایمان نهٔ راوړی نو په عذاب سره به د هغه سپکاوے کولے شی۔

(التحریر)

یا بخس نقصان ته او رهق عدوان او ظلم ته وئیلے شی۔ یعني ددهٔ په نیکیو کښ به کمے او ددهٔ په گناهونو کښ به زیاتے نشی کیدے۔

| وَّاَنَّا مِنَّا الْمُسْلِمُوْنَ وَمِنَّا الْقَاسِطُوْنَ فَمَنْ |
|---|
| او یقیناً بعض زمونږ نه مسلمانان دی، او بعض زمونږ نه ظالمان دی، نو چا چه |
| اَسْلَمَ فَاُولٰٓئِكَ تَحَرَّوْا رَشَدًا ﴿۱۴﴾ وَاَمَّا الْقَاسِطُوْنَ فَكَانُوْا |
| اسلام راوړو نو دغه کسانو سوچ کړیدے د هدایت۔او هرچه ظالمان دی نو دوی به وی |

| لِجَهَنَّمَ حَطَباً ﴿۱۵﴾ وَأَلَّوِ اسْتَقَامُوْا عَلَى الطَّرِيْقَةِ |
|---|
| د جهنم دپاره خشاك (لرګی)۔ او كه چرې دوی روان شوی وې په نیغه لاره باندې |
| لَأَسْقَيْنَاهُمْ مَّاءً غَدَقاً ﴿۱۶﴾ |
| خامخا څکولې به وو مونږ په دوی باندې اوبه ډیرې۔ (غتو څاڅکو والا) |
| لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ وَمَنْ يُّعْرِضْ |
| دې دپاره چه ازمینښت اوکړو په دوی باندې پدې (اوبو) کښې او چا چه مخ واړولو |
| عَنْ ذِكْرِ رَبِّهٖ يَسْلُكْهُ عَذَابًا صَعَدًا ﴿۱۷﴾ |
| د ذکر د رب خپل نه داخل به کړی دۀ لره عذاب سخت ته۔ |

**تفسیر** : پیریانو د خپل قوم کسانو په باره کښې دوباره دا خبره وکړه چه په مونږ کښې ځینې مسلمانان شوی دی، او ځینې اوسه پورې د اسلام د ښکاره لارې نه لرې دی، دوئ د نبی کریم ﷺ دعوت قبول کړې نۀ دې۔

نو کومو خلقو چه اسلام قبول کړو، او خپل خښتن الله دپاره ښکته کړو، دوئ په هغه لاره روان شو، چه هغه به دوئ جنت او د هغې نعمتونو ته اورسوی۔ او چا چه کفر اوکړو، هغه به د جهنم خشاك جوړیږی څنګه چه کافر انسانان د جهنم خشاك جوړیږی۔

**اَلْمُسْلِمُوْنَ** : یعنی د رسول الله ﷺ تابعدار۔

**تَحَرَّوْا رَشَدًا** : تحری د یو شی په ډیر فکر او کوشش سره طلب کولو ته وئیلې وشی، او اکثر په خیر کښې استعمالیږی۔

ابن عاشورؒ وائی : تحری په اصل کښې طلب الحرا ته وائی۔ او دا هغه شې دې چه لائق ددې وی چه وکړې شی۔

لکه عرب وائی : بِالْحَرِيِّ اَنْ تَفْعَلَ۔ وَاَحْرٰی اَنْ تَفْعَلَ۔

لائق ده چه تۀ وکړې۔(معنی دا ده : دوی غوره تالاش کړیدې د هدایت)

رشدا : هدایت او حق پرستی۔ او عظیم خیر یا نجات او ثواب۔

**اَلْقَاسِطُوْنَ** : دا د قَسْطٌ او قُسُوْطٌ نه دې د باب د ضرب نه۔ په معنیٰ د ظلم او د حق نه اوړیدو او باطل طرفته ورګکیدو سره دې۔

او اَقۡسَطَ په معنیٰ د انصاف کولو سره دے۔ نو قاسطون جَائِرُوۡن (ظالمانو) ته، او مقسطون : انصاف کونکو ته وئیلے شی۔ (التحریر والقرطبی ولسان العرب)

**فائده** : زمخشری په کشاف کښې لیکلی دی چه حجاج سعید بن جبیرؒ ته وویل کله ئے چه د هغه د قتل اراده وکړه چه ته زما په باره کښې څه وائے؟ نو هغه وویل : (قَاسِطٌ عَادِلٌ) نو خلقو وویل چه ډیره ښه خبره ئے وکړه۔

د دوی دا خیال وو چه دا د قِسۡط نه دے انصاف ته وائی۔ او عادل د عدل نه دے هم انصاف ته وائی۔ خو حجاج وویل : [يَا جَهَلَةُ اِنَّهٗ سَمَّانِیۡ ظَالِمًا مُشۡرِكًا]

اے جاهلانو ! دهٔ ما ته ظالم او مشرك ووئیلو، بیا ئے دا آیت ولوستلو (وَاَمَّا الۡقَاسِطُوۡنَ) او بل اول آیت د سورة الانعام ﴿ثُمَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا بِرَبِّهِمۡ يَعۡدِلُوۡنَ﴾۔

کافران د خپل رب سره نور خلق برابروی۔ (یعنی مشرکان دی)۔ (التحریر وغیره)

لِجَهَنَّمَ حَطَبًا : پدے کښې ئے د کافرانو جهنم ته غورزول مشابه کړیدی د غورزولو د لرګو نه اُور ته، پدے کښې د دوی تحقیر او سپکاوی ته اشاره ده۔ یعنی دوی په جهالت کښې د هغه لرګو مشابه دی چه په هغوی کښې هیڅ عقل نشته۔ (التحریر)

## سوال وجواب

پیریان خو د اُور نه پیدا دی نو په اُور ورته څنګه عذاب ورکیدے شی؟

**جواب** : اګر که د دوی ماده د اُور نه پیدائش دے، لیکن الله تعالیٰ دوی له داسے بدنونه ورکړیدی چه اُور وربانديے اثر کولے شی لکه چه انسان د ختے نه پیدا دے لیکن کله چه د ختے ګوزار پرے وکړے شی نو بدن ئے درد کوی۔

(او ما د پیریانو د دمونو د یو ماهر نه آوریدلی دی چه پیریان په اُور باندے سوزی لیکن د هغوی په سوزیدو او ایره کیدو باندے د انسانانو په نسبت وخت ډیر لګی۔ یعنی پیریان زر نهٔ سوزی -ابوز هیر)۔

او خطیب شربینیؒ جواب کړیدے چه کیدے شی چه الله تعالیٰ په قیامت کښې د دوی بدنونه د غوښے او وینے نه جوړ کړی نو اُور به په هغوی اثر کوی (الله تعالیٰ په هر شی باندے قادر دے)

پدے آیتونو کښې تخویف او بشارت دواړه ذکر شو او تردے ځای پورے د پیریانو کلام

ختم شو۔

وَاَلَّوِ اسْتَقَامُوا: دا آیت د پیریانو د کلام برخه نهٔ ده، بلکه په اول آیت کښې په :

﴿اَنَّهٗ اسْتَمَعَ نَفَرٌ مِّنَ الْجِنِّ﴾ باندِ عطف دے، دے وجے نه دا د الله کلام دے، او د (اُوْحِیَ اِلَیَّ) د لاندے دے، او ددے بیا دوه تفسیرونه دی :

(۱) یو مطلب دا دے چه اے زما نبی ! تهٔ اووایه چه په ما باندِے دا وحی هم نازله شوے ده چه که د مکے مشرکان د حق او انصاف په لاره روان شی نو مونږ به دوئ دپاره ښهٔ باران اُوورووُ، چه ددے په نتیجه کښې به د دوئ مالونه زیات شی، او د دوئ په روزئ کښې به فراخی راشی، بیا به مونږ په دوئ آزمائش کوو چه دوئ ز مونږ شکر اداء کوی یا نا شکری کوی۔ دا یو تفسیر شو۔

اسْتَقَامُوا: دے کښې ضمیر انسانانو او پیریانو دواړو ته راجع کیدل هم صحیح دی۔

الطَّرِيْقَةِ: د طریقے نه مراد سمه لاره ده چه هغه لاره د اسلام ده۔

غَدَقًا: یعنی غټو غټو څاڅکو والا۔ یعنی داسے بارانونه به کیدلے چه دوی ته به پکښې هیڅ ضرر نهٔ وے بلکه تو له فائده به وے۔

دلته ذکر د باران شویدے او مراد ترے نه د دنیا فراخی او د رزق فراخی ده۔ ځکه چه خیرونه او رزقونه تول په باران سره فراخه کیږی۔

باران کښې ډیر برکات دی، او قریشو ته ئے اُوبه ځکه ذکر کړے چه دوی نه اُوه کاله بارانونه بند شوی وو۔ نو دوئ ته د ایمان دعوت ورکوی چه سم شئ دنیا به هم درله فراخه کړم۔

دارنگه د عربو په زمکه بارانونه ډیر کم دی نو د هغوی بارانونو ته ډیر ضرورت وو۔

لکه الله تعالیٰ تمامو انسانانو دپاره دا شرط کړے وعده د قرآن کریم په ګڼرو آیتونو کښې بیان کړے ده۔ د سورهٔ اعراف په (۹۶) آیت کښې ئے فرمایلی دی :

﴿وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْقُرٰۤى اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَفَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَرَكٰتٍ مِّنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ وَلٰكِنْ كَذَّبُوْا فَاَخَذْنٰهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ﴾ (اوکه چرے د کلو اوسیدونکی خلق ایمان راوړی، او پرهیزګاری اختیار کړی نو مونږ به په دوئ باندے د آسمان او زمکے برکتونه راپرانیزو، لیکن دوئ تکذیب اوکړو نو مونږ د دوئ د اعمالو له وجے دوئ را اونیول)۔

او د سورهٔ نوح په (۱۰/۱۱/۱۲) آیتونو کښې فرمائی :

﴿ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا يُّرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا وَّيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَّبَنِيْنَ ﴾
(نو ما اووئيل چه تاسو د خپل رب نه د گناهونو مغفرت اوغواړئ، هغه يقيناً ډير زيات بښونكے دے، هغه به تاسو دپاره آسمان نه شيبے شيبے باران را اووروی، او تاسو له به مال او دولت او اولاد دركړی).
او په حديث كښې هم دی : [وَلَمْ أُسْمِعُهُمْ صَوْتَ الرَّعْدِ] كه خلق چرته نيكان شی نو ما به دوی ته د وريځے آواز هم نهٔ آورولے او د شپے به باران كيدے او د ورځے به نمر راختلے.
(احمد والطيالسی والحاكم : ۳۳۳۱) وفی اسناده صدقه بن موسی واه)
او په باران كښې به كره زارے نهٔ وے خو دا د گناهونو د وجه نه كيږی.
(۲) تفسير : د آيت دويمه معنىٰ دا بيان شوے ده چه (اے زما نبی ! كه چرے د مكے كافران په خپل شرك او كفر باندے ټينګ پاتے كيږی، نو مونږ به په دوئ باندے رسئ ورسسته كړو، او د دوئ په روزئ كښې به فراخی وركړو).
لكه څنګه چه الله تعالىٰ د سورهٔ انعام په (٤٢) آيت كښې فرمايلی دی :
﴿ فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتّٰى إِذَا فَرِحُوْا بِمَآ أُوْتُوْا أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ﴾
(بيا چه كله دے خلقو هغه څيزونه هير كړل چه د هغے نصيحت دوئ ته كيدلو نو مونږ په دوئ باندے د هر شئ دروازے پرانستے، تردے چه دوئ په هغه څيزونو باندے كوم چه دوئ ته وركړے شوی وو ښهٔ غاوره شو، نو مونږ دوئ يكدم را اونيول، بيا خو هغوئ بيخی نا اميده شول).
دا تفسير د كلبیؒ، ربيع بن انسؒ، زيد بن اسلمؒ او د هغه خوی عبد الرحمنؒ او يمان بن ربانؒ او ابن كيسانؒ او ابو مجلزؒ نه نقل دے.
حافظ ابن كثيرؒ ليكی چه ددے رائے تائيد د الله تعالىٰ د وينا : ﴿ لِنَفْتِنَهُمْ فِيْهِ ﴾ نه كيږی، چه ددے معنىٰ ده : (دے دپاره چه مونږ ددے په ذريعه په دوئ امتحان اوكړو).
ليكن اول تفسير د ظاهر سره ډير برابر دے، او غوره دے څكه چه استقامت په نيغه لاره باندے روانيدو ته وئيلے شی، او په نيكئ كښې استعماليږی او د شرك دپاره نهٔ استعماليږی.
لِنَفْتِنَهُمْ : په اول تفسير سره د فتنے نه مراد امتحان كول دی چه دوی كښې څوك شكر

کوی، او څوك ناشکری کوی. او فِیۡهِ ضمیر باران او د دنیا فراخی ته راجع دے. نو معلومه شوه چه د دنیا فراخی امتحان دے.
او د دویم تفسیر په بناء د فتنے نه مراد عذاب ورکول دی په طریقه د استدراج سره.
وَمَنۡ یُّعۡرِضۡ: دا تخویف دنیوی او اُخروی دے.
یعنی چه څوك د قرآن او د هغهٔ د دعوت نه مخ اړوی، او د شرك او نورو بدو اعمالو نه نهٔ بچ کیږی، الله تعالیٰ به دے په دنیا کښ په ذلت او رسوائی او په فقر او لوږه کښ مبتلا کړی، او په آخرت کښ به ددهٔ استوګنه جهنم وی چرته چه به دهٔ ته سخت عذاب ورکړے کیږی.
عَنۡ ذِکۡرِ رَبِّهٖ: ۱- یعنی د الله یادول په توحید سره. ۲- یا قرآن مراد دے. ۳- یا عبادت.
٤- یا نصیحتونه. ٥- یا داټول مراد دی.
عَذَابًا صَعَدًا: یعنی سخت عذاب. د مشقتونو والا عذاب. چه راحت پکښ نهٔ وی. (ابن عباس رضی الله عنه). صعد په اصل کښ مشقت ته وئیلے شی، او پدے کښ معنیٰ د پورته کیدو او ختلو ده. یعنی داسے عذاب به وی چه په دهٔ باندے راپورته شی، او دے به په خپل ځان کښ پټ کړی. (فتح البیان)
عکرمة وائی: صعد په جهنم کښ سخته او خوئیه ګټه ده، (یا غر دے) چه جهنمی به د هغے په ختلو مجبوره کولے شی کله چه بره سر ته وخیژی نو بیرته به خکته جهنم ته راوړغورولے شی. لکه د ﴿سَاُرۡهِقُهٗ صَعُوۡدًا﴾ (مدثر: ۱۷) په آیت کښ راغلی دی. نو صعد او صعود یو شے دے.
او ددے نه دنیاوی عذاب هم مراد کیدے شی یعنی قحط او مصیبتونه وغیره لکه چه د مکے په مشرکانو راغلے وو. او اُوس هم د قحطونو او د ګرانئ او د مصیبتونو او سیلابونو او زلزلو سبب د قرآن کریم نه اعراض کول دی.

| وَّاَنَّ الْمَسٰجِدَ لِلّٰهِ فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا ﴿۱۸﴾ وَّاَنَّهٗ لَمَّا |
|---|
| او یقیناً جماتونه تول د الله دی نو مهٔ رابلئ د الله سره هیڅوك. او یقیناً هرکله چه |
| قَامَ عَبْدُ اللّٰهِ یَدْعُوْهُ كَادُوْا |
| اُودریدو بنده د الله، رابللو ئے الله لره (یعنی مونځ ئے کولو) نزدے وو دوی (پیریان) |
| یَكُوْنُوْنَ عَلَیْهِ لِبَدًا ﴿۱۹﴾ |
| چه شی په هغه باندے راپنډ. |

**تفسیر** : وَاَنَّ الْمَسٰجِدَ : دا هم د (وَاَنْ لَّوِ اسْتَقَامُوْا) په شان په (اَنَّهُ اسْتَمَعَ نَفَرٌ) باندے عطف دے، او د (اُوْحِیَ اِلَیَّ) د لاندے دے. یعنی اے زما نبی ! تهٔ اووایه چه په ما باندے دا وحی هم نازله شوے ده چه جوماتونه د الله د بندګئ دپاره خاص دی، دے وجے نه کله چه تاسو دیته داخلیږئ نو د الله نه سوئ بل هیڅوك مهٔ رابلئ.

په دے آیتِ کریمه کښ د قریشو د مشرکانو واقعی احوالو طرفته اشاره شوے ده چه دوئ په مسجدِ حرام کښ (چه دا صرف د الله تعالیٰ د عبادت دپاره جوړ شوے وو) بتان او شکلونه ایخودی وو او د هغے عبادت به ئے کولو، او اهلِ کتابو ته هم اشاره ده چه هغوئ به په خپلو عبادت خانو کښ د عُزیر او عیسیٰ علیهما السلام عبادت کولو، حالانکه مسجدونه خو دے دپاره جوړیږی چه هلته صرف د الله نوم واخستے شی.

دے وجے نه علماؤ لیکلی دی چه (لَا یَجْتَمِعُ مَسْجِدٌ وَّقَبْرٌ فِیْ دِیْنِ الْاِسْلَامِ اَبَدًا)

د الله په دین کښ مسجد او قبر دواړه په یو ځائے کښ نشی راجمع کیدے، او په دے کښ چه هر یو روستو جوړ شی هغه به نړولے شی.

او په هغه مسجد کښ مونځ نهٔ کیږی چه په هغے کښ قبر وی لکه دے آیت ﴿فَلَا تَدْعُوْا مَعَ اللّٰهِ اَحَدًا﴾ سره ئے منافات دے. دارنګه په مسجد کښ به د شرك دعوت او د شرك خبرے نهٔ کیږی، کوم مسجد کښ چه د شرك او د بدعت دعوت کیږی او د اهل حقو پسے پکښ خبرے کیږی نو هغه مسجدِ ضرار دے.

اَلْمَسٰجِدَ : نه تول مساجد مراد دی، مسجد حرام، مسجد نبوی، بیت المقدس او نور مساجد، او الله تعالیٰ ته معلومه وه چه روستو زمانه کښ به دغه نور مساجد جوړیږی

اګر که په دغه وخت کښې صرف مسجد حرام وو.

(۲) حسن بصريؒ وئيلي دي چه شرك يوازې په مساجدو کښې نا روا نهٔ دے بلکه په نورو ځايونو کښې هم ناروا دے، نو د مساجد نه مراد ټوله زمکه ده، لکه حديث کښې دي :

[وَجُعِلَتْ لِيَ الْأَرْضُ مَسْجِدًا وَطَهُورًا] (بخاري: ۳۳۵)

نو د مسجد نه مراد معنیٰ لغوي ده چه ځاې د سجدے چه هغه ټوله زمکه ده.

او دا ددے امت خصوصيت دے چه ټوله زمکه ورله الله تعالیٰ جومات جوړ کړے دے.

اګر که د مسجد او د عامے زمکے فرق شته. د مسجد عزت زيات دے، او د عامے زمکے دومره نشته. دارنګه کله چه يو ځاې د مانځه دپاره منتخب شو، او مسجد پرے جوړ شو نو فرض مونځونه او جماعت به صرف په هغے کښې کولے شي، بيا په هر ځاې کښې يا بيټهکونو کښې کول صحيح نهٔ دي. بيا د مسجد د جوړولو معنیٰ څه شوه ؟.

(۳) سعيد بن المسيبؒ او طلق بن حبيبؒ وائي چه د مساجدو نه اعضاء السجود مراد دي، يعني د سجدے اندامونه. دواړه قدمونه، دواړه زنګنان، دواړه لاسونه او تندے او پوزه. يعني تا باندے الله تعالیٰ پدے اندامونو احسان کړيدے نو پدے سره د الله نه سوئ بل هيچا ته سجده مهٔ کوه، د الله تعالیٰ د نعمت ناشکره به شے.

(وكذا قال عطاءؒ - فتح البيان)

دا درے واړه تفسيرونه صحيح دي، ليکن اولنے تفسير غوره دے.

لِلّٰهِ : اضافت د مساجدو الله تعالیٰ ته اضافت د تشريف او د تکريم دپاره دے.

وَأَنَّهُ لَمَّا قَامَ عَبْدُ اللهِ : دا آيت هم بعض تفاسيرو د ډيرو توجيهاتو په وجه ګران کړيدے. دوه توجيهات پکښې وګوره.

(۱) يو دا چه دا قول د الله تعالیٰ دے، او د پيريانو حال بيانوي کله ئے چه د رسول الله ﷺ نه قرآن آوريدو. او دا هم په (اِسْتَمَعَ نَفَرٌ) باندے عطف دے نو دا څلورمه وحي ده.

معنیٰ دا ده : او اے زما نبي ! تهٔ اُووايه چه په ما باندے دا وحي نازله شوے ده چه کله د الله بنده او رسول محمد (ﷺ) په بطنِ نخله کښې اودريدهٔ او د خپل رب عبادت ئے کولو، يعني مونځ ئے کولو، نو د هغهٔ د عبادت طريقے ليدلو او د قرآن کريم د تلاوت کولو نه پيريان متاثره شول او ګير چاپيره را تو ئے شول، او سخت بهيړ ئے پيدا کړو، ديو بل په

اُوګو کیناستل او هغهٔ ته ئے کتل او د ډیر محبت د وجه نه ورته ډیر نزدے راغلل او غوږ ئے کیخودو۔

او پدے کښ اشاره ده چه پیریان د الله تعالیٰ کتاب (قرآن کریم) په ډیر محبت سره آوری او اے مشرکانو! تاسو ترے مخ اړوئ حال دا چه دا نبی ستاسو د جنس نه دے۔

عَبْدُ اللهِ : نه مراد محمد رسول الله ﷺ دے۔

یَدْعُوهُ : الله تعالیٰ ئے رابللو او عبادت ئے کولو۔ یعنی مونځ ئے کولو۔ او قرآن ئے لوستلو۔ ځکه چه مونځ تول له دعاء او عبادت دے۔

لِبَداً: اَیْ مُتَرَاکِمِیْنَ یَرْکَبُ بَعْضُهُمْ بَعْضًا۔ یعنی پنډ چه د یو بل دپاسه سوارهٔ وو۔

لبد جمع د لِبْدَةٌ ده، د وړئ لمخی ته وئیلے شی چه خلق په هغے باندے تارونه د یو بل دپاسه راتاووی۔ مراد ترے نه په ګنړه سره راپنډ کیدل دی۔ او لِبْدَة هغه وینتو ته هم وائی چه د زمری په شا باندے ګنړ ولاړ وی۔

ابن عباس ﷛ پدے آیت کښ فرمایلی دی: (هرکله چه پیریانو ولیدل چه رسول الله ﷺ خپلو ملګروته مونځ کوی، او هغوی د هغه په رکوع باندے رکوع او د هغهٔ په سجده باندے سجده کوی، نو دوی د هغه د ملګرو تابعدارئ نه تعجب وکړو او په هغه باندے راپنډ شول۔ ((ترمذی :۳۳۲۳) والحاکم) بسند صحیح)

(۲) تفسیر : د یَدْعُوهُ نه مراد دعوت الی الله دے۔ او کَادُوْا کښ ضمیر د مکے مشرکانو ته راجع دے۔

یعنی هر کله چه نبی کریم ﷺ د مکے د مشرکانو د عبادت د طریقے خلاف صرف د یو الله بندګی کوله یا یو الله طرفته ئے خلق رابلل، یا مونځ به ئے کولو نو نزدے ده چه د مکے مشرکان د هغهٔ په دشمنئ کښ د هغهٔ نه ګیر چاپیره به راجمع شو او د ضرر رسولو کوشش به ئے کولو۔

دا تفسیر صحیح دے، لیکن د ظاهر د قرآن سره ډیر سمون نهٔ خوری۔

او پدے کښ د پیریانو صفت او د مشرکانو او د هر هغه چا بدی ده چه قرآن کریم د نبی ﷺ نه یا د هغهٔ د نائبانو نه نهٔ آوری، او د الله د خبرو نه غفلت کوی۔

| قُلْ إِنَّمَا أَدْعُوْ رَبِّیْ وَلَا أُشْرِكُ بِهٖ أَحَدًا ﴿۲۰﴾ |
| --- |
| ته اُووايه ! يقيناً زهٔ رابلم رب خپل او برخه دار نهٔ جوړوم د هغه سره هيڅوك۔ |
| قُلْ إِنِّیْ لَا أَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا ﴿۲۱﴾ قُلْ إِنِّیْ |
| ته اُووايه ! يقيناً زهٔ اختيار نهٔ لرم تاسو لره د ضرر او نهٔ د هدايت۔ اُووايه ! يقيناً زهٔ، |
| لَنْ يُّجِيْرَنِیْ مِنَ اللّٰهِ أَحَدٌ وَّلَنْ أَجِدَ مِنْ دُوْنِهٖ |
| هيچرے پناهي نشي راكولے ما لره د الله نه هيڅوك او هيچرے به موندہ نكړم سوئ |
| مُلْتَحَدًا ﴿۲۲﴾ إِلَّا |
| د هغه نه ځائے د پناهئ۔ مگر (بچ كوى به ما) رَسُول (تبليغ) (مگر زه اختيار مند |
| بَلَاغًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِسَالَاتِهٖ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ |
| يم) د رَسُولو) د طرف د الله نه او پيغامونه د هغهٔ، او چا چه نافرمانى وكړه د الله |
| وَرَسُوْلَهٗ فَإِنَّ لَهٗ نَارَ جَهَنَّمَ خَالِدِيْنَ فِيْهَا |
| او د رسول د هغهٔ، نو يقيناً دهٔ لره به اُور د جهنم وى همیشه به وى په هغے كښ |
| أَبَدًا ﴿۲۳﴾ حَتّٰى إِذَا رَأَوْا مَا يُوْعَدُوْنَ |
| همیشه۔ تردے چه اُووينى دوى هغه عذاب چه دوى سره ئے وعده كيديشى |
| فَسَيَعْلَمُوْنَ مَنْ أَضْعَفُ نَاصِرًا |
| نو زردے چه دوى ته به پته اُولگى چه څوك دے ډير كمزورے په اعتبار د مددگار |
| وَّأَقَلُّ عَدَدًا ﴿۲۴﴾ |
| او كم دے په اعتبار د شمار۔ |

**تفسير**: دے ركوع كښ د رسول الله ﷺ بيان دے۔ ربط :

مخكښ د رسول الله ﷺ صدق بيان شو اُوس د هغهٔ دعوت بيانيږى۔

## شان نزول

د (۲۰) آیت نـه تـر (۲۳) آیته پورے د نازلیدو سبب دادے چه د قریشو کافرانو نبی ﷺ تـه وویـل چـه تـا دیو ے لوئے خبرے دعویٰ کړے ده، او د خپـل ځان لپاره دِے د تمامو خلقو دشـمـنـی اخستے ده، تهٔ د خپل دے دعوت نه منع شه، او مونږ به ستا حفاظت وکړو۔ نو الله تعالیٰ هغهٔ ته د هغه خبرو وئیلو حکم کړے چه د هغے ذکر په دے آیتونو کښ راغلے:

الله تعالیٰ وفرمایل :

اے زما نبی ! تـهٔ اووایـه چـه زهٔ د خپـل رب عبادت کوم، او صرف هغه رابلم، او د هغهٔ سـره هیـڅـوك برخه دار نهٔ جوړوم۔ او دا څهٔ داسے خرابه خبره نهٔ ده چه ددے په وجه تاسو ټول زما په دشمنئ باندے متفق شوی یئ۔

اُدْعُوْ رَبِّیْ: دعاء په معنیٰ د عبادت سره هم صحیح ده، او په معنیٰ د دعوت سره هم۔ او مـطـلب دا دے چه زما کار خو د الله تعالیٰ عبادت او هغهٔ طرفته دعوت دے، نور اخوا ستـاسـو خپله خوښه ده، که منئ ستاسو فائده، او که نهٔ ئے منئ نو زما ذمه واری فارغه ده۔

قُلْ اِنِّیْ : یـعـنـی اے زمـا نبی ! تـهٔ قـریشـو کـافرانو ته داهم اووایه چه زهٔ نهٔ تاسو ته په نـقصان رسولو باندے قادر یم، نهٔ زهٔ تاسو په سمه لاره راوړلے شم۔ داسے قدرت خو صرف الله تعالیٰ ته حاصل دے، دے وجے نه تاسو زما نه د عذاب د زر راوړو مطالبه مهٔ کوئ۔

ضَرًّا: پدے کښ یو یو جانب پټ دے تقدیر داسے دے :

ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا وَّلَا رَشَدًا وَّلَا غَیًّا۔

یـعـنـی زهٔ تـاسـو تـه د ضـرر درکـولـو یا دفـع کـولو او د فائدے رسولو او د هدایت او د ګمراهئ هیڅ اختیار نهٔ لرم۔ زما کار صرف دعوت کول دی۔

یا ضـرر ئے د رشـد (هـدایـت) په مقابله کښ پدے وجه راوړیدے چه رشد کښ معنیٰ د کـامیـابـئ پرته ده، او په ضر کښ دینی او دنیوی ضرر داخل دے، او ګمراهی دینی ضرر دے۔

قُـلْ اِنِّیْ لَنْ یُّجِیْرَنِیْ : مشـرکـانو رسول الله ﷺ تـه وویـل چـه دا دعـوتونه پریده (نَحْنُ نُجِیْرُكَ) مونږ به تا له پناهی درکړو، تا ته به هیڅوك څه نهٔ وائی خو زمونږ ملګرتیا وکړه

نو رسول الله ﷺ د الله په خودنه دا خبره رد کوی۔ فرمائی :
اے زما نبی ! تهٔ کافرانو ته دا هم اووایه چه که الله ماته تکلیف راکول غواړی، نو هیڅوك ما نشی بچ کولے، او که هغه ما هلاکول غواړی، نو ماته به د پناه هیڅ ځائے ملاؤ نشی۔
مخکښې ئے وویل چه زهٔ د بل کارونو کولو نه عاجز یم، نو دلته وائی چه زهٔ د خپلو کارونو نه هم عاجز یم۔ دا هر څه د الله تعالیٰ په اختیار کښې دی۔

لَنْ يُّجِيْرَنِیْ او مُلْتَحَدًا کښې فرق

۱- د اولے جملے مطلب دا دے چه په غیر د طلب نه پناهی څوك نشی ورکولے، او د دویمے مطلب دا دے چه سره د طلب او کوشش نه هم څوك پناهی نشی ورکولے۔
۲- دویم دا چه کوم مصیبت د الله تعالیٰ د طرفنه مقرر وی نو هغه هیڅوك نشی واپس کولے۔ او د دویم مطلب دا چه کوم مصیبت راغلے وی نو د هغے نه د بچ کیدو هیڅ ځای نشته۔
۳- د اولے جملے مطلب دا دے چه د روح والا مخلوق هم ما ته پناهی نشی راکولے، او د دویمے مطلب دا چه غیر ذی روح شے هم پناهی نشی راکولے، لکه مکان، غار، قبر، بت وغیره۔
مُلْتَحَداً : اَیْ مَلْجَأً۔ (ځای د پناهیٔ)۔ دا د لحد نه ماخوذ دے، مائل کیدو ته وائی۔ یعنی هغه ځای چه هغے ته میلان کیدے شی دپاره د بچ کیدو د مصیبتونو نه۔
اِلَّا بَلَاغاً : دا استثناء منقطع ده چه د عموم دپاره راغی، یعنی هیڅ ځای نشته او هیڅوك بچ کونکے نشته۔

لٰكِنْ يُنْجِيْنِیْ اَنْ اُبَلِّغَ بَلَاغًا مِنَ اللّٰهِ وَرِسَالَاتِهٖ۔

لیکن ما به خلاصوی دا خبره چه زهٔ تبلیغ وکړم د الله د طرفنه او د هغه پیغامات ورسوم۔ یعنی تاسو ما پدے مهٔ مجبوره کوئ چه زهٔ دعوت پریدم ځکه چه زما د بچاؤ شے سویٔ ددے نه بل نشته۔ او دا هم راباندے خرابویٔ۔
او بلاغًا مفعول مطلق د اُبَلِّغَ دے۔
وَرِسَالَاتِهٖ : اَیْ اَعْمَلَ بِرِسَالَاتِهٖ۔ یعنی عمل وکړم په پیغامونو د هغهٔ۔

وَمَن يَعْصِ اللّٰهَ: یعنی که تاسو راته دا ووایئ چه دعوت پریده او د الله خلاف وکړه نو فرمائی چه څوك چه د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول نافرمانی کوی او د هغهٔ د رسول دعوت نهٔ قبلوی،/ او د هغهٔ پیغام رَسول پریدی، د هغهٔ استوګنه جهنم دے، چه په هغے کښې به همیشه لپاره سوزی۔

اَبَدًا: دا دلیل دے چه دلته د عصیان نه کفر او شرك مراد دے۔ ځکه چه د عصیان کامل فرد همدغه دے۔

حَتّٰی: ۱- دا حَتّٰی ابتدائیه دے، او متعلق دے د پټ عبارت پورے۔

اَیْ لَایَزَالُوْنَ عَلٰی عِصْیَانِهِمْ وَ کُفْرِهِمْ وَعَدَاوَةِ النَّبِیِّ وَالْمُؤْمِنِیْنَ حَتّٰی۔

یعنی دوی به په خپل عصیان (نافرمانئ) او کفر او د نبی ﷺ او د مؤمنانو په دشمنئ باندے همیشه وی تردے چه دوی ته د الله تعالیٰ عذابونه راشی۔

۲- یا لَایَنْتَهِی الْمُشْرِکُوْنَ عَنِ الشِّرْكِ۔

مشرکان د خپل شرك نه نهٔ منع کیږی تردے چه عذابونه ورته راشی۔

یعنی دا مشرکان به د قیامت په ورځ کله چه د الله تعالیٰ د وعدے مطابق عذاب په خپلو سترګو اووینی، هغه وخت به ښهٔ پوهه شی چه د مددګارانو په لحاظ څوك زیات کمزورے دے، او د چا د مددګارانو شماره ډیره کمه ده، د محمد (ﷺ) او د هغهٔ د ایمان والو صحابه کرامؓ، یا د مکے د مشرکانو چه هغوئ په توله زندګئ کښې الله تعالیٰ او د هغهٔ رسولان دروغژن ګڼړلی دی۔

لکه مشرکانو به دا خبره کوله چه ﴿اَیُّ الْفَرِیْقَیْنِ خَیْرٌ مَّقَامًا وَّاَحْسَنُ نَدِیًّا﴾ (مریم:۷۳)

د چا مرتبه غوره ده او د چا مجلس ښائسته دے۔

فَسَیَعْلَمُوْنَ: یعنی زر به دوی پوهه شی۔ دے کښې یا بدر ته اشاره ده چه لنډه زمانه کښې دوئ ته پته ولګیده چه د مسلمانانو مددګار الله تعالیٰ دے چه هغه ډیر قوی دے، او زمونږ مددګار چه بتان او باباګان دی دا ډیر کمزوری دی۔

یا ددے نه مراد قیامت دے۔

مَنْ اَضْعَفُ نَاصِرًا: صاحب د فتح البیان لیکی: د رسولانو خبرے څومره لوی کمال او ادب والا وی چه خپل ځانونه کمزوری ګڼړی، او خپل قوت په اعتبار د خپل مولیٰ سره ذکر کوی چه زمونږ مولیٰ ډیر قوی دے چه د هغهٔ په لاس کښې بادشاهی ده، او د

هغهٔ دپاره د آسمانونو او د زمکے لبنکرے دی،

په خلاف د جبابره ؤ نه چه د هغوی بله خبره نهٔ وی مکر دا چه د خپل ځانونو لوی بیانوی (لکه فرعون وئیلی وو ﴿ اَیُّنَآ اَشَدُّ عَذَابًا وَّاَبْقٰى ﴾ (طه: ۷۱) کوم یو زمونږ نه سخت او همیشه عذاب ورکونکے دے۔ ﴿ اَلَیْسَ لِیْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِیْ ﴾۔ (زخرف: ۵۱) آیا زما دپاره د مصر بادشاهی نهٔ ده، او دا نهرونه زما نه لاندے روان دی)۔

| قُلْ اِنْ اَدْرِیْٓ اَقَرِیْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ |
|---|
| تهٔ اُووایه! نهٔ پو هیږم زهٔ آیا نزدے دے هغه عذاب چه تاسو سره ئے وعده کیدیشی |
| اَمْ یَجْعَلُ لَهٗ رَبِّیْٓ اَمَدًا ﴿۲۵﴾ عٰلِمُ الْغَیْبِ فَلَا یُظْهِرُ عَلٰى |
| یا به اُوګرځوی هغے لره رب زما موده۔ پو هه دے په پټو خبرو نو نهٔ خبروی په |
| غَیْبِهٖٓ اَحَدًا ﴿۲۶﴾ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ |
| غیبو خپلو باندے هیڅ یو تن۔ مګر هغه څوک چه غوره ئے کړی د رسول نه |
| فَاِنَّهٗ یَسْلُكُ مِنْۢ بَیْنِ یَدَیْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ﴿۲۷﴾ |
| نو یقیناً روانوی مخکښ د هغهٔ نه او روستو د هغهٔ نه تیارے ملائکے۔ (انتظار |
| لِّیَعْلَمَ اَنْ قَدْ اَبْلَغُوْا |
| کونکے ملائک) دے دپاره چه الله راښکاره کړی (خلقو ته) چه رسولی دی دوی |
| رِسٰلٰتِ رَبِّهِمْ وَاَحَاطَ بِمَا لَدَیْهِمْ |
| پیغامات د رب د دوی او راګیر کړیدی الله هغه څه چه دوی سره وو |
| وَاَحْصٰى كُلَّ شَیْءٍ عَدَدًا ﴿۲۸﴾ |
| او شمارلے ئے دے هر شے په پوره شمارلو سره۔ |

**تفسیر** : هر کله چه الله تعالیٰ مشرکانو ته د نبی ﷺ په ژبه عذابونه او یرے ذکر کړے نو د مکے مشرکانو د تبوقو او دروغژن ګنړلو په طریقه د نبی کریم ﷺ نه تپوس وکړو چه د کوم عذاب نه تهٔ مونږ ویروے هغه به کله راځی۔

الله تعالیٰ نبی ﷺ ته ووئیل: ته دوی ته اووایه چه زهٔ نهٔ پوهیږم چه د کوم عذاب وعده چه د الله تعالیٰ له خوا تاسو سره کیږی د هغې وخت نزدې دې، یا به زما رب په راتونکی لرې زمانه کښې ددې وخت مقرر کړی، د غیبو علم خو صرف هغهٔ سره دې، هغه د خپلو غیبو خبر هیچا له نهٔ ورکوی، سویٰ د خپل رسول نه چه هغه د خپل پیغام رسولو لپاره خوښوی۔ برابره خبره ده که هغه رسول د ملائکو نه وی، یا د انسانانو نه۔

داسې رسول چه هغه بعضِ داسې غیبی خبرونه ښائی چه د هغې تعلق د هغهٔ د پیغام رسوونې سره وی، لکه هغه معجزې چه هغه د نبی په رشتین والی باندې دلالت کوی، احکامِ شرعیه، د ښو او بدو اعمالو بدله، او د آخرت ځینې حالات۔

د کومو غیبی خبرو تعلق چه د هغهٔ د رسالت سره نهٔ وی، لکه د قیامت د راتلو وخت، د هغې خبر الله تعالیٰ خپلو رسولانو ته هم نهٔ ورکوی۔

فَلَا يُظْهِرُ: اَیْ فَلَا يُطْلِعُ وَلَا يُخْبِرُ۔ یعنی اطلاع نهٔ ورکوی او نهٔ خبروی۔ مطلب دا چه د عذابونو علم الله تعالیٰ سره دې، ما ته ددې علم نشته۔ ځکه چه دا د غیبو علم دې، او د غیبو علم ما ته نشته۔

عَلٰى غَيْبِهٖ: یعنی په خپلو غیبی امورو باندې هیڅوك نهٔ خبروی، د غیبو علم د الله تعالیٰ د خصوصیاتو نه دې۔ د انسان علم کښې که د غیبو علم راشی، نو د هغې نه فساد پیدا کیږی۔ بله دا چه انسان سره دومره طاقت نشته چه په هر شی پوهه شی، ددهٔ دماغ ددې استعداد نهٔ لری۔ بله دا چه د انسان ژوند تنګیږی۔ او ملائکو سره هم دا طاقت نشته چه په ټولو خبرو د غیبو خبر شی پاتې لا انسان۔

إِلَّا مَنِ ارْتَضٰى: **سوال** پیدا شو چه پیغمبران چه د بعض غیبو خبرې بیانوی نو هغوی ته خود غیبو علم ورکړې شو؟ نو د هغې استثناء کوی، دا استثناء متصل هم جوړیږی، او منقطع هم۔

(۱) د متصل صورت دا دې: اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَيُخْبِرُهٗ بِبَعْضِ الْمُغَيَّبَاتِ۔

یعنی مګر هغه څوك چه الله تعالیٰ ئې د رسولانو نه غوره کړی نو هغهٔ ته د بعض غیبی خبرو خبر ورکړی۔ ځکه چه په هغې کښې د انسانانو دپاره فائده ده، ځکه که ټول غیب د الله تعالیٰ سره شی او بنده ته هیڅ خبر ورنکړی، نو بنده ګان به د ډیرو خیرونو نه محرومه شی، د قیامت نه به خبر نهٔ وی، د جنت او جهنم او د الله د صفاتو وغیره نه۔ نو

اجمالًا خبرول پکار دی نو دغه خبرونه الله تعالیٰ خپل رسول ته ورکوی۔

(۲) یا الا استثناء منقطع ده۔ لٰكِنْ مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا) یعنی لیکن هغه څوك چه الله تعالیٰ ئے د رسولانو نه غوره کړی نو روانوی د هغهٔ مخے او شا ته ملائك۔

یعنی د غیبو علم چا ته نشته لیکن د رسولانو مخے او شا ته ملائك رالیږی د هغوی د حفاظت دپاره نو په هغوی باندے عذابونه نهٔ راځی۔ او عذابونه به په کافرانو راځی او د هغے علم هیچا ته نشته چه کله به راځی۔

دا آیت د متشابهاتو نه دے چه محکماتو ته ددے رجوع د اهل حقو کار دے، او بعض اهل زیغ لکه تفسیر نعیمی کښ ئے لیکلی دی چه

((بعض گروه ددے آیت نه دلیل نیسی چه پیغمبران په غیبو نهٔ پو هیږی، مونږ وایو چه پیغمبران لا څه اولیاء کرامو ته الله تعالیٰ علم تام ورکړیدے))۔ (یعنی پوره علم)۔

بیا ئے وئیلی دی چه دلته استثناء متصل ده، او مطلب دا دے چه الله په غیبو هیڅوك نهٔ خبروی مگر رسولان خبروی نو هغوی ته تول علم غیب ورنصیب کوی۔

یعنی دوی سره علم غیب عطائی شته، او علم غیب حقیقی نشته۔ عطائی معنیٰ دا چه الله ورته ورکړیدے۔ نو دا خبرے تولے د قرآن او حدیث مخالفے دی، پدے سره محکمات رد کیږی، الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ څومره ډیر کرته د نبی د طرفنه وئیلی دی ﴿ وَلاَ اَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ (هود : ۳۱) ﴿قُلْ لا اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِیْ خَزَائِنُ اللهِ وَلا اَعْلَمُ الْغَيْبَ ﴾ (انعام : ۵۰) ﴿قُلْ لَا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللهُ﴾ (النمل :٦٥)

او بل د رسول الله ﷺ د سیرت سره ئے تعارض راځی۔ چه په غزا د بنی المصطلق کښ ترے خپله بی بی عائشه رضی الله عنها پاتے شوه او پته ورته ونهٔ لګیده۔ ملګری ترے کافرانو بوتلل، او هلته ئے شهیدان کړل۔ بیا دا دومره پریشانی پرے ولے راتلله۔ او دا د مدینے واقعات دی، دلیل دے چه روستو زمانه کښ هم الله تعالیٰ خپل نبی ته د تولو غیبو علم نهٔ وو ورکړے، دا شرکی عقیده ده۔ د الله صفت مخلوق ته ورکول دی۔

بل طرفته د مفسرینو اقوال وګوره :

د واحدیؒ وینا ده [وَفِيْ هٰذَا دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّ مَنِ ادَّعٰى اَنَّ النُّجُوْمَ تَدُلُّهٗ عَلٰى مَا يَكُوْنُ مِنْ حَادِثٍ فَقَدْ كَفَرَ بِمَا فِي الْقُرْآنِ] چه دا آیت دلیل دے چه څوك ددے خبرے دعویٰ اوکړی چه هغه

د علمِ نجوم په ذریعه د غیبو خبرونه پیژني، هغه د قرآن منکر دے۔
قرطبیؒ لیکلي دي : [وَفِيْهِ دَلِيْلٌ عَلٰى اَنَّهٗ لَا يَعْلَمُ الْغَيْبَ اَحَدٌ سِوَاهُ، ثُمَّ اسْتَثْنٰى مَنِ ارْتَضٰى مِنَ الرُّسُلِ فَاَوْدَعَهُمْ مَا شَاءَ مِنْ غَيْبِهٖ بِطَرِيْقِ الْوَحْيِ اِلَيْهِمْ وَجَعَلَهٗ مُعْجِزَةً لَهُمْ، وَدَلَالَةً عَلٰى نُبُوَّتِهِمْ، وَلَيْسَ الْمُنَجِّمُ وَمَنْ ضَاهَاهُ وَمَنْ يَضْرِبُ بِالْحَصٰى، وَيَنْظُرُ فِي الْكَفِّ وَيَزْجُرُ بِالطَّيْرِ، مِمَّنِ ارْتَضَاهُ مِنْ رَسُوْلٍ فَيُطْلِعُهٗ عَلٰى مَا يَشَاءُ مِنْ غَيْبِهٖ، فَهُوَ كَافِرٌ بِاللّٰهِ مُفْتَرٍ عَلَيْهِ بِحَدْسِهٖ وَتَخْمِيْنِهٖ وَكِذْبِهٖ]

چه په دے آیت کښې دلیل دے چه د الله نه سوئ هیڅوك په غیبو نهٔ پو هیږي، بیا الله تعالیٰ خپل بعض رسولان مستثنیٰ کړل نو هغوی ته ئے بعض هغه غیبي خبرے وخودلے چه الله تعالیٰ غوختلے په طریقه د وحي کولو سره دوی ته، او دائے د دوی دپاره معجزه او د دوی په نبوت باندے دلیل وګرزولو۔ او کوم خلق چه د علمِ نجوم په ذریعه د غیبو خبرو دعویٰ کوي، او کوم خلق چه کاڼړي اولي، د لاس کرښے ګوري او هغه لولي، او د خاورے په ویشتلو سره، یا د مارغانو په شړلو سره د غیبي امورو خبرونه ښائي، داسے خلق د الله تعالیٰ غوره شوي رسولان نهٔ دي، بلکه دوئ په الله باندے کفر کونکي دي، او په الله تعالیٰ باندے دروغ تړي په خپلے تجربے او اټکل او دروغو سره۔
دلته امام رازيؒ ډیر ګډ وډ تلے دے نو علامه شوکانيؒ د هغه ښه اصلاح کړیده۔
﴿ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ﴾ ددے یو مطلب مخکښې بیان شو۔
(۲) بل مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د خپلو رسولانو مخے او شا ته ملائك روانوي دے کښې دوه مقصده وي یو دا چه کله الله تعالیٰ په خپل رسول باندے وحي نازلوي، نو ددے وحي مخکښې او روستو (یعني څلور واړو طرفونو ته) حفاظت کونکو ملائکو یوه ډله لګوي چه هغه د شیطانانو نه ددهٔ حفاظت کوي، تردے چه د وحي هغه برخه رسول ته په غیر د زیادت او نقصان نه اورسوی۔
ابن زیدؒ د [رَصَدًا] مفهوم دا بیان کړے چه ساتونکي ملائك نبي کریم ﷺ لره د پیریانو او شیطانانو د مداخلت نه څلورو واړو طرفونو ته بچ کوي۔
او دویم د وحي بیانولو دپاره ئے رالیږي۔ یعني ملائك وحي راوړي، او بل ددے وحي حفاظت کوي تردے چه نبي ته ئے روغه ورسوی۔
رَصَداً : دا هغه نمبر په نمبر راتلونکي ملائك دي چه رسول الله ﷺ د شیطانانو نه

ساتي تردے چه هغه خلقو ته وحي بيان کړي۔(ابن عباس ﷺ)
او مفسرينو د ابن عباس ﷺ نه دا هم نقل کړيدي چه الله تعالیٰ په نبی باندے يو آيت د قرآن هم نهٔ دے نازل کړے مګر د هغے سره څلور ساتونکي ملائك راغلي دي تردے چه هغه ئے رسول الله ﷺ ته رسولے دے۔ بيا ئے دا آيت ولوستلو۔ (فتح البيان)
لِيَعْلَمَ: په ضمير د يَعْلَم کښې هم مفسرينو ډير احتمالات ذکر کړيدي چه د آيت اصل مقصد ورك کوي، چا مکذب ته او چا رسول الله ﷺ ته، چا انبياؤ ته او چا جبريل ؑ ته راجع کړيدے۔ دا هسے احتمالات دي۔
ظاهر دا ده چه ضمير الله تعالیٰ ته راجع دے۔
يعني الله تعالیٰ ملائك خپلو رسولانو ته ددے دپاره راليږي چه هغه خلقو ته ښکاره کړي چه پيغمبرانو پوره خبره خپلو قومونو ته رسولے ده، او دوی ته صحيح دين بيان شويدے، اُوس که دوی خبره نهٔ مني سزا به ورکوی۔
نو د الله تعالیٰ د سزا مستحق دي هغه خلق چه الله تعالیٰ ورته نبی راليږلے دے او هغه مکمل دين بيان کړيدے او دوی نهٔ دے منلے۔
وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ: پدے کښې هم ضمير الله تعالیٰ ته راجع دے۔ يعني الله تعالیٰ راګير کړيدے په خپل علم کښې هغه خبرے او وحي چه د انبياؤ عليهم السلام سره دي۔
نو فائده د آيت دا شوه چه په تاسو باندے حجت پوره شويدے ځکه چه نبی ﷺ پوره دين ورسولو او الله تعالیٰ د هغهٔ په حال باندے پوره عالِم دے چه هيڅ کمے زياتے ئے نهٔ دے کړے نو په نهٔ منلو کښې ستاسو عذر ختم دے۔ سختے سزا ته انتظار کوئ۔
(۲) که ضمير رسول الله ﷺ ته راشي نو معنیٰ به دا وي:
(دے دپاره چه محمد ﷺ اوپيژني چه جبريل او د هغهٔ ملګرو ملائکو د خپل رب پيغام په پوره حفاظت سره هغوئ ته رسولے دے)۔
(۳) دريمه معنیٰ دا بيان شوے (دے دپاره چه محمد ﷺ اوپيژني چه تيرو شوو انبياؤ هم ددهٔ پشان د خپل رب پيغام خپلو قومونو ته رسولے وو)۔
اولنے مطلب غوره دے۔
﴿وَأَحَاطَ بِمَا لَدَيْهِمْ﴾ يعني د نګهبانو ملائکو، يا د الله له اړخه د پيغام رسوونکو ملائکو د تمامو احوالو نه الله تعالیٰ پوره خبر دے، د دوئ هيڅ حال د الله د علم د احاطے

نـه بهر کیږی نۀ۔ ﴿ وَأَحۡصَىٰ كُلَّ شَيۡءٍ عَدَدًا ﴾ او الله سـره د څیـزونـو اجمالی علم په ځای پریده، بلکه د مخلوقاتو د هریو کس جدا جدا تفصیلی علم ورسره دے۔

وبالله التوفیق۔

## امتیازات د سورة الجن

۱- پدے سورت کښ د رسول الله ﷺ رشتینوالے د پیریانو په ژبه بیان شو۔

۲- د رسول الله ﷺ دعوت هم پکښ ذکر دے، چه هغه د توحید او د الله تعالیٰ د ذکر او د بندګئ دعوت وو۔

۳- اکثر بیان د پیریانو پکښ ذکر دے۔

ختم شو تفسیر د سورة الجن په فضل د رب العالمین سره۔ رمضان ۹ جون ۱٤ یوم الثلاثاء۔

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آياتها (٢٠) | (٧٣) سُوْرَةُ الْمُزَّمِّلِ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة المزمل مکی دے، په دے کښې شل آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة المزمل

**نوم** : په اولنی آیت کښې لفظِ [اَلْمُزَّمِّلُ] راغلے، دا او ددے نه روستو مدثر د رسول الله ﷺ صفتونه دی، یعنی څادر په سر کونکے.

**د نازلیدو زمانه** : دا د مکے د ابتدائی سورتونو نه دے. دریم سورت دے چه په مکه کښې نازل شویدے. د ماوردیؒ د وینا مطابق، تول سورت د حسن بصریؒ، عکرمهؒ او جابر په نیز مکی دے. ابن مردویهؒ او بیهقیؒ د ابن عباس ﷜ نه روایت کړی دی چه [سورة المزمل] په مکه کښې نازل شوے.

او نحاسؒ د ابن عباس ﷜ نه روایت کړی دی چه [سورة المزمل] په مکه کښې نازل شوے، سوئ د آخری آیت ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُوْمُ أَدْنٰى﴾ نه، چه دا په مدینه کښې نازل شوے.

**مناسبت :**

١ - مخکښې سورت کښې دعوت ذکر وو، نو اُوس عبادت بیانوی.

٢ - مخکښې د رسول الله ﷺ صدق بیان شو نو دلته د هغهٔ کار بیانوی چه هغه د الله تعالیٰ بندګی ده.

## د سورت موضوع او مقصد

اَلْاَمْرُ بِتَرْتِيْلِ الْقُرْآنِ فِي الْعِبَادَاتِ لَا سِيَّمَا بِاللَّيْلِ. الله تعالیٰ حکم کریدے په قرآن لوستلو په عباداتو کښې خاصکر په شپه کښې. او ددے فائده ئے ذکر کړیده، دوه عظیمے فائدے دی، یو د دعوت فائده ده چه د ورځے به درته دعوت آسانوی، او کار کښې به دِے برکت وی

او بل ئې د آخرت فائده ده۔
کله چه دا سورت په مکه کښې نازل شو نو الله تعالیٰ په رسول الله ﷺ او مؤمنانو باندې قیام اللیل فرض کړې وو، او د هغې اندازه ئې هم خودلې وه، درې طریقې وې، یو دا چه نیمه شپه عبادت، دویمه دا چه ثلث (دریمه حصه) دریمه دا چه ثلثان (دوه حصې) عبادت وی۔ که دولس گینټې شپه وی نو نیمه ئې شپږ گینټې او دریمه ئې څلور گینټې او ثلثان ئې اته گینټې دی۔ یو کال پورې دا عبادت صحابه کرامؓ په دغه طریقه وکړو خو ډیر سخت کار وو، تردې چه په اوږد قیام سره به د دوئ خپې اوپړسیدلې،
عائشه رضی الله عنها فرمائی: تردې چه یو تن به رسئ تړله او د هغې پورې به ئې ځان انځلولو چه خوب ترې وتښتي۔ نو کال پس الله تعالیٰ آسانی راولیږله، او دویمه رکوع ئې نازله کړه، او د قیام اللیل د دغه اندازې وجوب او فرضیت منسوخ شو، که څوك ئې هر څومره کوی جائز ده، اگرکه رسول الله ﷺ به روستو هم په دغه طریقه عمل کولو،
او امت ته ئې د قیام اللیل ترغیب ورکړو چه دا ستاسو دپاره بهتر عمل دے۔
اقله درجه ئې یوه یو رکعت دے چه د شپې راپاڅیږی یو رکعت وتر وکړی۔
حدیث کښې دی: [وَمَنْ اَحَبَّ اَنْ یُّوْتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْیَفْعَلْ] (ابو داود: ۱۴۲۴)
که څوك خوښوی چه یو رکعت وتر وکړی نو ودې ئې کړی۔ او زیاته اندازه ئې شریعت نۀ ده خودلې، نبی کریم ﷺ به خپله دیارلس رکعاته کول خو زیادت په کښې په اجماع د علماؤ جائز دے، او د قرآن د ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ﴾ د عموم نه معلومیږی۔ څوك چه پدې کښې په عدد باندې زور لگوی او دا لازم گنړی نو دا په اجتهاد کښې خطاء دے۔
او د قیام اللیل فائده دا ده چه پدې سره د الله تعالیٰ تعلق پیدا کیږی، د ورځې به دعوت کوی او د شپې به د الله تعالیٰ عبادت کوی۔
او پدې باندې انسان کمال ته رسیږی لکه رسول الله ﷺ او صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین پدې سره کمال ته رسیدلی وو، ولې که د انسان دعوت وی او عبادت ئې نۀ وی، نو په دعوت کښې ئې اثر نۀ وی۔
او ډیر مزیدار تقریر به وکړی لیکن اثر به پکښې نۀ وی، او د متقیانو او ډیر عبادت گذارو ساده خبرو کښې الله تعالیٰ ډیر اثر اچوی۔ د فاسق سړی د دعوت اثر کم وی۔
او قیام اللیل بالکلیه نۀ دی منسوخ، او پدې سورت کښې چه کوم علماء داسې معنیٰ

کوی چه د شپے دعوت وکړه نیمائی شپه او یا دریمه حصه یا د هغے نه کم، نو دا د قرآن کریم د تحریف مشابه دے۔ بلکه دلته همدغه د شپے عبادت مراد دے، او ډیرو خلقو ته تهجد او قیام اللیل هسے کپ ښکاری۔

او ګنړ احادیث او عمل د رسول الله ﷺ پدے باره کښې ښکاره ثبوت دے۔

| يَا أَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ ﴿١﴾ قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٢﴾ |
|---|
| اے څادر په سر کونکیه۔ (اے نبوت دپاره ځان تیارونکیه)۔ اُودریږه د شپے مګر لږ۔ |
| نِصْفَهُ أَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ﴿٣﴾ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ |
| نیمائی د هغے یا کم کړه ددے نه لږ، یا زیات کړه په هغے باندے۔ او جدا جدا لوله |
| الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ﴿٤﴾ إِنَّا سَنُلْقِي عَلَيْكَ قَوْلًا ثَقِيلًا ﴿٥﴾ |
| قرآن لره په جدا جدا لوستلو سره۔ یقیناً مونږ اچوو په تا باندے وینا درنهٔ۔ |
| إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْئًا وَأَقْوَمُ قِيلًا ﴿٦﴾ |
| یقیناً پاځیدل د شپے دا سخت برابرونکی دی (زړه لره) او ښه برابرونکے ده وینا لره۔ |

**تفسیر** : بخاریؒ او مسلمؒ او ترمذیؒ د جابر بن عبد الله ﷺ نه روایت کړی دی چه نبی کریم ﷺ باندے چه کله اول ځل وحی نازله شوه، او د غارِ حراء نه کور ته واپس راتلو کښې ئے جبریل علیه السلام په فضاء کښې اولیدهٔ، نو په هغهٔ باندے لړزیدل راغلهٔ، او کور ته رسیدو سره سم ئے خدیجے رضی الله عنها ته ووئیل [زَمِّلُوْنِیْ زَمِّلُوْنِیْ] چه په ما باندے فوراً کمبل واچوئ۔ (بخاری رقم: ۳) مسلم: (۴۲۲)۔

دے وجے نه الله تعالیٰ په دے سورت کښې د مهربانئ او محبت په توګه نبی ﷺ ته د [المزمل] او په سورۂ المدثر کښې د [المدثر] خطاب ورکړو۔

او مطلب ئے دا دے چه د راحت شپے پریده بلکه د الله تعالیٰ بندګئ کښې مصروف شه۔

او الله تعالیٰ یو کال په رسول الله ﷺ باندے دا مشکل عبادت ولے وکړو؟ او دغه شان درے کاله ئے په غارِ حراء کښې پرے ولے تیر کړل؟ دا ددے دپاره چه په دعوت کښې ئے اثر وی۔

نو پدې صورت کښې به د مزمل معنیٰ څادر تاوونکے وی.
دویمه رائے داده چه مزمل د زمل نه دے حمل (بوج پورته کولو) ته وئیلے شی، نو د [مزمل] معنیٰ ده (د نبوت او د قرآن درون بوج پورته کونکیه).
چونکه نبی کریم ﷺ بانـدے د آخری رسالت او د قرآن کریم درون بوج اچولے شوے، دے وجے نـه د لـوئے ذمه واریٔ احساس ورکولو دپاره هغه په دے خطاب سره رابللے شوے دے. نو مزمل په معنیٰ د مُتَزَمِّل سره دے.
یا په معنیٰ د (اَلْـمُزَّمِّلُ نَفْسَهٗ) سره دے، یعنی په ځان باندے بوج پورته کونکے. او دا صفت د هر داعی او د قرآن والا دے. او همدا قول غوره دے.
بعض مفسرینو ددے توجیه دا بیان کړے چه د وحی په شروع کښې چه کله جبریل ﷺ د نبی کریم ﷺ خواته راتلو، نو د وحی د رُعب له وجے به په هغهٔ باندے لرزه راتله او هغهٔ به کمبله اچوله، دے وجے نه هغهٔ ته د [المزمل] خطاب ورکړے شو. د څهٔ ورځو نه پس دا کیفیت ختم شو، او الله د هغهٔ زړهٔ مضبوط کړو.
لیکن صحیح دا ده چه دا حالت په ابتداء د نزول د سورة علق کښې وو، او بیا د سورت مدثر په باره کښې هغه راغلے دے.
یَا اَیُّهَا الْمُزَّمِّلُ : الله تعالیٰ ورته دا خطاب وکړو پدے کښې دوه فائدے دی:
(۱) یو ملاطفه او د پیار محبت خطاب دے، اشاره ده چه الله تعالیٰ په هغه باندے ملامتیا نهٔ وائی بلکه هغه ته اُنس (محبت) ورکوی.
(۲) دویم پدے کښې هر څادر په سر کونکی د شپے اُوده انسان ته تنبیه ده چه قیام اللیل او د الله تعالیٰ ذکر ته رابیدار شی. (ذکره الخطیبؒ)
الله تعالیٰ په دے سورت کښې نبی کریم ﷺ ته اول د مانځه، بیا د دعوت په لاره کښې د خپل قوم له خوا د راتلونکو تکلیفونو برداشت کولو حکم کړے، او په آخر کښې ئے دا حکم ورکړو چه تهٔ خپل دعوت د خلقو مخامخ بیخی ښکاره پیش کړه.
قُمِ الَّیْلَ: یعنی د شپے مانځه دپاره ودریږه.
﴿ اِلَّا قَلِیْلًا ﴾ معنیٰ داده چه تهٔ د څهٔ وخت نه علاوه ټوله شپه مونځ کوه، لیکن روستو په ﴿نِصْفَهٗٓ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِیْلًا﴾ کښې تشریح اوکړے شوه چه نیمے شپے پورے مونځ کوه، یا ددے نـه لږ شان کم وخت یعنی د شپے دریمے برخے پورے، یاکه تهٔ غواړے نو د شپے دوه

دریمو برخو پورے مونځ کوه۔ مقصد دادے چه تاته اختیار درکړے شوے چه یا خو ته نیمائی شپے پورے مونځ کوه یا ددے نه زیات یا ددے نه کم۔ او ددے تشریح د دویمے رکوع په اول کښې شویده۔

اَوِ انْقُصْ مِنْهُ : یعنی د نیمے نه ئے کمه کړه نو دریمه برخه شوه۔

اَوْ زِدْ عَلَيْهِ: یا په نیمائی باندے زیات کړه نو دوه برخے شوے۔

وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا : (جدا جدا ولوله قرآن لره په جدا جدا لوستلو سره) اَیْ اِقْرَأْهُ عَلٰی تَمَهُّلٍ مَعَ تَدَبُّرٍ۔ یعنی دا په آرام سره په فکر سره ولوله۔

یعنی ته د قرآن کریم تلاوت په اطمینان سره کوه په دے توګه چه تمام حروف او کلمات او حرکات او سکنات واضح وی، د قرآن کریم معنے زړه ته کوزے شی۔

د ترتیل معنیٰ د تجوید ده، دا دیته وائی : اَدَاءُ الْحُرُوْفِ مِنْ مَخَارِجِهَا مَعَ صِفَاتِهَا بِصَوْتٍ ۔ حروف ادا کول د خپلو مخارجو نه سره د صفاتو نه سره د آواز نه، که آواز پکښې نه وی دا هم تجوید نه دے۔ دومره آواز راویستل ضروری دی چه ته ئے خپله واورے، ددے نه معلومه شوه چه قرآن په ترتیل سره لوستل واجب دی۔ او زر زر ګړ ګړ والا قرآن لوستل غلط دی، دا د الله تعالیٰ سره چل ول دے، چه په یو څو ورځو کښې زر زر قرآن ووائی، او بیا زر زر تراویح کوی، دا عبادتونه شرمول، او د الله تعالیٰ بے ادبی ده۔

داسے قرآن ووایه چه خپله هم ترے خوند واخلے او بل له هم خوند ورکړی۔

لنډه دا چه قرآن کریم د جلتئ کتاب نه دے۔

دارنګه ترتیل کښې دا ضروری ده چه د معنیٰ د تدبّر سره به وی، دارنګه د مدّ په ځای کښې به مد وی او د قصر په ځای کښې به قصر وی، او د وقف په ځای کښې به وقف وی۔

او دا آیت دلیل دے چه لږ قراءت چه سَره د تدبر او ترتیل نه وی افضل دے د ډیر قراءت نه چه په جلتئ سره وی۔

دلته صاحب د فتح البیان د مصر وغیره په قاریانو باندے رد کړیدے، فرمایلی ئے دی «چه د ترتیل نه مقصود د لوستلو سره زړهٔ حاضرول دی، نهٔ صرف د مرئ نه حروف راویستل چه مخ او خوله ورسره کږه کړی او د ګانو بجانو په شان طرزونه پکښې کوی لکه چه ددے زمانے قاریانو عادت دے په مصر کښې او په مکه مکرمه وغیره کښې بلکه دا بدعت دے چه لوړانو خوراکیانو، او کم عقلانو ایجاد کړیدے کوم چه د شریعت او د

هغې د رشتینی دلیلونو نه نا خبره دی، او دا اولنۍ شیشه نهٔ ده چه په اسلام کښې ماته شویده)).آهـ (فتح البیان۷/۲٤٦)

إِنَّا سَنُلْقِي: په دې آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ له خبر ورکړې چه مونږ په تا باندې قرآن نازلونکی یو چه ستا په بدن او روح باندې به ددې ډیر دروند اثر پریوځی۔ وحی ظاهراً هم درنه وه لکه امام بخاریؒ د عائشې رضی الله عنها نه نقل کړی دی چه (په نبی ﷺ بـه د سختې یخنۍ په زمانه کښې هم وحی نازلیدله نو د هغهٔ تندې به خولې سره لمدیدهٔ)۔

۲- ثقیل یعنی وزنداره۔ یعنی دا په میزان کښې درنه ده۔

۳- قتادهؒ د [قول ثقیل] دا تشریح کړې چه قسَم په الله! چه په قرآن کښې فرائض او حدود عملی کول انسان لپاره ډیر دروند کار دې۔

٤- مجاهدؒ وائی: ددې حلال او حرام ډیر درانهٔ دی۔

٥- فراءؒ ددې نه مراد دروند کلام اخستې، یعنی قرآن کریم سپك او سطحی (سرسری) کلام نهٔ دې، بلکه ډیر عزتمند کلام دې ځکه چه دا زمونږ د رب کلام دې۔

٦- یا ثقیل دې په منافقانو او کافرانو باندې ځکه چه په هغوی باندې دلیلونه او ردونه پکښې شویدی، او د هغوی ګمراهی ئې بیان کړې او د هغوی پردې ئې څیرلی دی۔ (محمد بن کعبؒ)

۷- ثَقِيْلٌ لَا يَحْمِلُهُ إِلَّا قَلْبٌ مُؤَيَّدٌ بِالتَّوْفِيْقِ وَنَفْسٌ مُزَيَّنَةٌ بِالتَّوْحِيْدِ۔ (حسین بن الفضلؒ) دروند دې چه هغه زړه ئې پورته کولې شی چه په توفیق سره ئې تائید شوې وی، او هغه نفس چه په توحید سره بنائسته شوې وی۔ (یعنی هر څوك د قرآن سره تعلق نشی ساتلې، د چا په زړه کښې چه د الله لوی والې وی هغه به قرآن راخلی)

نو ثقل ئې په ډیرو اعتبارونو سره دې، ❁ یو دا چه په عمل کښې،

❁ او بل په دعوت کښې دروند دې ځکه چه په دعوت د قرآن کښې قربانی د بدن او د مال او د وخت ضروری ده۔ ❁ دارنګه درون والې په اعتبار د اکرام او عزت سره، (سدیؒ)

❁ او درون والې په اعتبار د اجر سره په میزان کښې،

❁ او درون والې په اعتبار د کثرت د علومو او احکامو سره دې۔

❁ او ثقل په اعتبار د اعجاز سره چه څوك ئې مقابله نشی کولې، ❁ ثقیل دې پدې

اعتبار سره چه یو زړه ددې تول فوائد او تولې معاني نشي رالاندې کولې. د تولې دنیا علماء او فقهاء او باحثین ئې ستړي کړيدي، او د ثقیل لفظ دې تولو مطلبونو ته شامل دي.

إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ : په دې آیتِ کریمه کښې د قیام اللیل (تهجدو) او په دې کښې د قرآن کریم په پُر سکون انداز کښې د لوستلو فائده بنودلې شوې ده.

الله تعالیٰ نبي ﷺ ته وفرمایل چه ته د شپې په وخت مونځ کوه، او په دې کښې د قرآن کریم تلاوت کوه، ځکه چه د شپې وخت پُر سکون وي، مخلوق اُودهٔ وي او تمام آوازونه خاموش وي، دې وخت کښې د غوږ، سترګې، زړهٔ او ژبې ترمینځه موافقت وي.

دې وجې نه په داسې وخت کښې چه ته د مانځه لپاره د خپل رب په حضور کښې اُودریږې، او د قرآن کریم تلاوت کوې نو ستا لوستل به زیات په حضورِ قلبي سره وي، او ستا په زړه او دماغو به ددې زور اثر پریوځي.

حافظ سیوطيؒ د جاحظ نه ددې آیت معنیٰ دا نقل کړې چه د [نَاشِئَةَ اللَّيْلِ] نه مراد هغه معاني او مطالب دي کوم چه د تهجدو په مانځه کښې د قرآن کریم په تلاوت سره په زړهٔ باندې راپرانستې کیږي، هغه مطالب او معاني زیات صحیح وي، او د هغې اثر په انسان باندې زیات واضح وي.

نَاشِئَةَ : د نَشَأَ مِنْ مَكَانِهِ نه دې په معنیٰ د پاڅیدو سره. یا ناشئة د نَشَأَ نه دې په د راپیدا کیدو سره، او دلته ترې مراد ساعات او اوقات د شپې دي، او موصوف ئې حذف دې، اَیْ اِنَّ سَاعَاتِ اللَّيْلِ النَّاشِئَةَ. یعني یقینا وختونه د شپې چه راپیدا کیدونکي دي.

بیا موصوف حذف شو او صفت د هغې په ځای قائم شو.

ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهما وائي : دا د حبشو په ژبه قیام اللیل ته وئیلې شي. نو دا بیا جمع ناشئ دې په معنیٰ د قائم سره.

وَطْءً: اَیْ مُوَاطَاةً (مُوَافَقَةً) الْقَلْبِ مَعَ اللِّسَانِ. یعني ډیر سخت دې په برابرئ د زړهٔ کښې د ژبې سره.

وَأَقْوَمُ قِيلًا: او ډیر برابرونکې دې وینا لره. ځکه چه نور آوازونه ختم وي، او دنیا په آرام وي نو انسان په قراءت کښې نهٔ ګډوډ کیږي.

## د اَشَدُّ وَطْئًا او اَقْوَمُ قِيْلًا فرقونه

(۱) اشد وطئا معنیٰ ده چه د زړه او د ژبے موافقت پکښې راځي۔ یعنی د حکمتونو او د معانیو راویستو دپاره ډیر برابر دے۔

او اقوم قیلا : دا چه د الفاظو او د حروفو د تصحیح دپاره ډیر برابر دے۔ او چونکه معانی د الفاظو نه ډیر اَهم وی نو ځکه ئے اشد وطئا مخکښې راوړو۔

(۲) یا اول دپاره د آوریدو دے د بل چا نه چه زړه باندے برابر لګی۔ او دویم دپاره د بیانولو دے بل چاته۔ او ایزده کول مقدم دی بل ته د بیانولو نه۔ نو ځکه ئے اشد وطئا مخکښې راوړو۔

او دا دلیل دے چه د شپے په قراءت کښې د ورځے د قرائت په نسبت اجر زیات دے۔

| إِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا ﴿۷﴾ وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ وَتَبَتَّلْ |
|---|
| یقیناً تا لره په ورځ کښې مشغله اُوږده ده۔ او یادوه نوم د رب خپل او ځان جدا کره |
| إِلَيْهِ تَبْتِيْلًا ﴿۸﴾ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا إِلٰهَ |
| هغهٔ ته په جدا کولو سره۔ رب د مشرق او د مغرب دے، نشته حقدار د بندګئ |
| إِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا ﴿۹﴾ وَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ |
| سوئ د هغهٔ نه نو اُونیسه هغهٔ ذمه وار۔ او صبر کوه په هغه خبرو چه وائی دوی |
| وَاهْجُرْهُمْ هَجْرًا جَمِيْلًا ﴿۱۰﴾ |
| او پریده دوی لره په پریخودو ښائسته سره۔ |

**تفسیر** : إِنَّ لَكَ فِي النَّهَارِ سَبْحًا طَوِيْلًا : سبح لامبو ته وائی، او په لامبو کښې خلق لاس خپے وهی نو حاصل معنیٰ ئے د مشغلے کیږی۔

ددے ډیرے معانی دی (۱) ښکاره مطلب ئے دا دے چه د شپے تهجد ځکه کوه چه ستا دپاره د ورځے مشغله ده، د اُمت په کارونو کښې مصروف ئے، نو ددے فائده به دا وی چه د شپے په عبادت سره به تا ته د ورځے کارونه آسانیږی۔

(۲) او بله دا چه کله چه ته د ورځے په کارونو مشغول ئے، او د شپے هم عبادت نهٔ کوے

نو بیا خو د الله تعالیٰ تعلق نهٔ حاصلیږی۔
ددے وجه نه عمر فاروق ﷛ ته چا وویل چه تا باندے سخته زیاته دہ، او بدن دِے کمزورے شو۔ هغه وویل که د ورځے اُوده شم نو رعیت ضائع کیږی او که د شپے خوب زیات کړم نو نفس مے ضائع کیږی فَكَيْفَ لِیْ بِالنَّوْمِ بَيْنَ هٰذَيْنِ۔
نو زهٔ ددے دواړو حالتونو ترمینځ څنګه ډیر خوبونه وکړم۔
(۲) سَبْحًا کلمه عرب د فراغت دپاره استعمالوی۔ نو ددے وجه نه زجاجؒ ددے معنیٰ داسے کوی : [اِنْ فَاتَكَ فِی اللَّیْلِ شَیْءٌ فَلَكَ فِی النَّهَارِ فَرَاغٌ لِلْاِسْتِدْرَاكِ]۔
که ستا نه د شپے څه عبادت فوت شی د خوب یا د بیمارئ په وجه نو ستا دپاره د ورځے فراغت شته چه کوم وخت د ورځے فارغ شوے نو هغه پکښې راوګرځوه۔
(۳) یا مطلب دا دے : (فَرَاغًا وَسَعَةً لِنَوْمِكَ وَرَاحَتِكَ)
یعنی د شپے مونځونه څکه کوه چه ستا دپاره د ورځے د خپل خوب او راحت دپاره وخت او فراخی شته، نو د ورځے به هغه خوب راوګرځوے۔
وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ: یعنی الله تعالیٰ هغهٔ ته حکم وکړو چه هر وخت د خپل رب په یاد کښې مشغوله اُوسه۔ تسبیح، تهلیل، تکبیر، د الله تعالیٰ حمد او ثناء، مونځ، د قرآن کریم تلاوت، او خلقو ته د اسلام د تعلیم په ورکولو کښې لګیا اوسه، او خپل نفس د خیرو نه پاك کړه، او پوره اخلاص سره د خپل رب په یاد کښې لګیا اوسه، چه هغه د مشرق او مغرب رب دے، هغهٔ نه سوئ بل کوم معبود نشته دے، او په خپلو تمامو کارونو کښې صرف په هغهٔ بهروسه کوه، هغهٔ نه سوئ بل هیڅوك کار ساز مهٔ منه۔
هغه به تاله کافی وی، او په هر حال کښې به ستا حفاظت او مدد کونکے وی، او د دعوت په لاره کښې چه د قریشو کافرانو تا ته او ستا صحابه کرامؓ ته کوم تکلیفونه درکوی، په هغے صبر کوه او د هغوئ د خبرو جواب مهٔ ورکوه۔
وَتَبَتَّلْ اِلَیْهِ تَبْتِیْلًا :تبتل او تبتیل په اصل کښې ترك النكاح (نکاح پریخودو) ته وائی۔ دلته ئے معانی دا دی : اَیْ اِنْقَطِعْ اِلَیْهِ انْقِطَاعًا بِالْاِشْتِغَالِ لِعِبَادَتِهٖ ۔ (یعنی منقطع شه الله ته په منقطع کیدو سره پدے طریقه چه د هغهٔ په عبادت کښې مشغوله شه)
حاصل معنیٰ ئے ابن زیدؒ ذکر کړیده : اَیْ رَفْضُ الدُّنْیَا وَالْتِمَاسُ مَا عِنْدَ اللّٰهِ ۔ یعنی دنیا پریده او هغه شے طلب کړه چه د الله سره دے۔ یعنی د دنیا دپاره خبرے پریده۔

۳- مجاهدؒ وائی : اَخْلِصْ لَهٗ اِخْلَاصًا ۔ الله دپاره په هر عمل کښې اخلاص کوه۔ او تبتل ئے څکه راوړو چه کله یو تن عبادت کوی، لیکن په نورو څیزونو مشغول وی نو ورته وائی چه په عبادت کښې یکسوئی کوه او دے ته یواځے کیږه۔

تبتل د مَنَازِلُ السَّائِرِیْن نه یو منزل دے، چه دے ته به بنده ځان وړاندے کوی، او هغه دا چه الله تعالیٰ ته به د عبادت دپاره یواځے کیږی څکه چه نفس د دنیا په کارونو کښې د مشغولتیا په وجه خیرنیږی نو کله چه بنده د الله تعالیٰ سره یواځے مناجات کوی، او د دنیا د کارونو نه یو طرف ته شی، نو نفس ئے د خیرونه پاك شی۔

ددے دا مطلب نۀ دے چه انسان به پیری مریدی شروع کوی، او چیلے به ویاسی او خلقو ته به دعوت هم نۀ کوی او د هغوی په جماعتونو کښې نۀ شریك کیږی او نکاحونه هم نۀ کوی او مباح تلذذات د دنیا په ځان باندے حرام کړی نو دا رهبانیت دے، او د نصاراؤ تبتل دے۔ بلکه ددے مطلب دا دے چه په ورځ کښې څه وخت د الله دپاره ویاسه چه د الله ذکر اذکار او عبادت پکښې کوے۔

رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ: پدے آیت کښې دریم ادب ذکر کوی۔ او د تبتل دپاره وجه بیانوی چه الله ته ځان څکه جدا کړه چه هغه رب د مشرق او د مغرب دے، او د کارونو سنبالونکے دے، او همغه مستحق د عبادتونو دے۔

فَاتَّخِذْهُ وَكِيْلًا: اَیْ فَوِّضِ الْاُمُوْرَ اِلَیْهِ۔ یعنی هغۀ ته کارونه وسپاره۔

مطلب دا چه بندګی د هغه کوه او کارونه همغه ته سپاره څکه چه همدغه ذات مختص دے په ربوبیت باندے۔ پدے کښې اشاره ده چه څوك د الله بندګی کوی نو الله به ئے کارونه سر ته رسوی۔

امام بقاعیؒ وائی : ددے مطلب دا نۀ دے چه انسان ټول کارونه د دنیا پریدی څکه چه دا خو تشه طمع ده، بلکه مطلب دا دے چه انسان به په بنۀ شان سره هغه څه طلب کوی چه انسان ته ئے دعوت ورکړے شویدے دے دپاره چه په هغۀ باندے ځان وسپاری په اسبابو کښې او د کار د پوره کیدو انتظار وکړی نو داسے به نۀ کوی چه اسباب پریدی، او طمع لری چه کارونه به خپله کیږی، څکه چه ددے مثال د هغه سړی دے چه اولاد بغیر د ښځے نه طلب کوی۔ او دا کار د دنیا د پیدائش د حکمة خلاف ده۔ څکه چه دنیا دار الاسباب ده۔

وَاصْبِرْ عَلٰى مَا يَقُوْلُوْنَ: دے نه معلومیږی چه عبادت د صبر سبب هم وی- یعنی کله چه ته د کتاب او سنت دعوت کوے، نو د مخالفینو د سب او شتم او د استهزاء په مقابله کښې صبر نه کار واخله۔

وَاهْجُرْهُمْ هَجْراً جَمِيْلاً : ددے معنیٰ دا نۀ ده چه دوی ته دعوت مۀ کوه- بلکه مطلب دا دے چه د دوئ د مالدارئ او د قرابت پرواه مۀ کوه۔

دارنګه د دوی د سب او شتم د وجه نه دوی ته دعوت نۀ پریخودل، او د دوی د شرك او بدعاتو او د فسق او فجور د مجالسو او اجتماعاتو نه ځان جدا ساتل۔

او دوی ته د هرے غلطے خبرے جواب نۀ ورکول، یعنی همیشه د کنځلو جواب په کنځلو سره نۀ ورکول۔

| وَذَرْنِىْ وَالْمُكَذِّبِيْنَ أُولِى النَّعْمَةِ |
|---|
| او پریده ما لره د تکذیب کونکو سره چه خاوندان د خوش عیشئ دی (چه د دنیا |
| وَمَهِّلْهُمْ قَلِيْلاً ﴿١١﴾ إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالاً وَّجَحِيْماً ﴿١٢﴾ وَطَعَاماً |
| مزو والا دی) یقیناً مونږ سره بیړئ د خپو دی او اُور ګرم- او خوراك |
| ذَا غُصَّةٍ وَعَذَاباً أَلِيْماً ﴿١٣﴾ يَوْمَ تَرْجُفُ |
| چه مرئ کښې انختونکے دے، او عذاب دردناك- په کومه ورځ چه وبه خوزیږی |
| الْأَرْضُ وَالْجِبَالُ وَكَانَتِ الْجِبَالُ كَثِيْباً مَّهِيْلاً ﴿١٤﴾ |
| زمکه او غرونه او شی به غرونه ډیرکئ بهیدونکی۔ |

**تفسیر:** شان نزول

مفسرینو لیکلی چه دا آیت د هغه لسو مشرکانو په باره کښې نازل شوے چه هغوئ د بدر په میدان کښې د کافرانو لښکر باندے خوراك خورولے وو۔

په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ته وئیلی دی چه د مکے د عیش او عشرت والا کافرانو معامله تۀ ماته پریده، تۀ د دوئ فکر مۀ کوه- دوئ سره د مقابلے لپاره ستا له خوا مونږه کافی یو، او زۀ به ستا بدله د دوئ نه خامخا اخلم۔

حاکمؒ او بیهقیؒ په (دلائل) کښې د عائشې رضی الله عنها نه روایت راوړے دے چه ددے آیت د نازلیدو نه یو څو ورځے روسته د بدر غزا اوشوه۔

اُولِی النَّعْمَةِ: په زور د نون سره مالدارئ او د ژوند فراخئ او خوندونو ته وئیلے شی۔ او په زیر د نون سره انعام ته وئیلے شی، او په پیښ د نون سره خوشحالئ ته وئیلے شی۔

شوکانیؒ د ﴿ وَمَهِّلْهُمْ قَلِيلًا ﴾ دویم مطلب دا بیان کړے چه (د مرګ وخته پورے تهٔ دوئ په خپل حال پریده) ځکه چه ژوند د دنیا لګ دے۔ او دائے غوره کړے دے، ځکه چه الله تعالیٰ ددے نه پس په روستنو آیتونو کښې د آخرت عذاب ذکر کړے، او د مهلت نه مراد دا دے چه د دوی دپاره عذاب په تادئ سره مهٔ غواړه، دوی به د دنیا د نعمتونو او مالونو نه استدراجاً فائدے واخلی تر وخت د عذاب پورے۔

إِنَّ لَدَيْنَا أَنْكَالًا: دا تخویف اُخروی دے، او هغه عذاب ذکر کوی چه هغے ته په ذَرْنِی او مَهِّلْهُمْ کښې اشاره وشوه۔

او دا څلور قِسمه عذابونه دی په مقابله د تَنَعُّمْ (مزو اخستو) د دنیا کښې۔

پدے ترتیب سره چه په دنیا کښې د دوی آزادی وه، نو په آخرت کښې به ورته په خپو کښې درنے بیړئ پرتے وی چه د هغے د وجه نه به هیڅ حرکت نشی کولے۔

انکال جمع د نَکل ده قید ته وائی۔ (حسنؒ ومجاهدؒ)

او د وسپنے طوقونه چه په څټ کښې به ورته اچولے شی۔ (کلبیؒ)

اول زیات معروف لغت دے۔

او انکال قسماقسم عذابونو ته هم وئیلے شی۔ (مقاتلؒ)

وَجَحِيمًا: په دنیا کښې د دوی دپاره اسباب د یخ والی وو، نو په آخرت کښې به جحیم (سخت ګرم اُور) وی، او په دنیا کښې پاکیزه او نرم او ښائسته خوارهٔ خوراکونه وو، نو په آخرت کښې به داسے خوراکونه وی چه په مرئ کښې به ئے انخلی، سپور، ګرم، تریخ، سخت او ګنده چه هغه غسلین، زقوم، ضریع وغیره دی۔

او په دنیا کښې ئے فراخه او د خوشحالئ او د نعمتونو ژوند وو، نو په آخرت کښې به عذابونه او تکلیفونه وی چه زړونو ته به ئے دردونه ورکوی۔ اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْ تِلْكَ الْحَالَةِ السَّيِّئَةِ۔ آمین۔

ذَا غُصَّةٍ: اَیْ لَایَسُوْغُ فِی الْحَلْقِ - یعنی د انختلو والا په مرئ چه په مرئ کښې به په

آسانئ سره نهٔ تیریږی۔

وَعَذَابًا اَلِیْمًا: یعنی د تیر شوی عذاب نه علاوه به بل قسم عذاب وی چه د هغے درد به زړه ته رسیږی۔

یَوْمَ تَرْجُفُ الْاَرْضُ: دا متعلق دے د (ذَرْنِیْ) پورے یا په (لَدَیْنَا) پورے۔

او د دوئ دا انجام به په هغه ورځ وی کله چه زمکه او غرونه پوره سختئ سره اوخوزیږی، او غرونه د شګو د ډیرو غونته جوړ شی، او د اُوبو غونته اُوبهیږی۔

کَثِیْبًا مَّهِیْلًا: یعنی هغه ډیرئ د شګے چه بهیږی۔

| |
|---|
| اِنَّا اَرْسَلْنَا اِلَیْكُمْ رَسُوْلًا شَاهِدًا عَلَیْكُمْ كَمَا اَرْسَلْنَا |
| یقیناً لیږلے دے مونږ تاسو ته رسول، بیان کونکے دے په تاسو لکه چه لیږلے وو |
| اِلٰی فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا ﴿۱۵﴾ فَعَصٰی فِرْعَوْنُ الرَّسُوْلَ |
| مونږ فرعون ته رسول۔ نو نافرمانی اُوکړه فرعون د رسول (موسیٰ) نه |
| فَاَخَذْنٰهُ اَخْذًا وَّبِیْلًا ﴿۱۶﴾ فَكَیْفَ تَتَّقُوْنَ |
| نو راونیولو مونږ هغه په رانیولو سختو سره۔ نو څنګه به ځان به بچ کړئ تاسو |
| اِنْ كَفَرْتُمْ یَوْمًا یَّجْعَلُ الْوِلْدَانَ شِیْبًا ﴿۱۷﴾ السَّمَآءُ |
| که چرته کفر اُوکړئ تاسو د هغه ورځے نه چه کرځوی به ماشومان بوډاګان۔ آسمان |
| مُنْفَطِرٌ بِهٖ كَانَ وَعْدُهٗ مَفْعُوْلًا ﴿۱۸﴾ اِنَّ هٰذِهٖ |
| به چاودونکے وی په هغے ورځ، ده وعده د هغهٔ پوره کړے شوے۔ یقیناً دا سورت |
| تَذْكِرَةٌ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ اِلٰی رَبِّهٖ سَبِیْلًا ﴿۱۹﴾ |
| نصیحت دے، نو د چا چه خوښه وی (نو) اُودے نیسی رب خپل ته لاره۔ |

**تفسیر**: پدے آیت کریمه کښې ترغیب ورکوی اتباع د رسول اللهﷺ ته چه تاسو ته ما داسے خوږ پیغمبر راولیږلو چه هغوی تاسو هدایت ته راکاږی۔

ربط:

مخکښې نبي کريم ﷺ ته د قريشو کافرانو په تکليفونو باندې د صبر حکم ورکړې شو، نو اُوس د فرعون او موسىٰ عليه السلام واقعه ذکر کيږي په دې مناسبت سره چه لکه څنګه چه فرعون د خپل کبر او غرور له وجې په الله باندې ايمان رانهٔ وړو او هلاك شو، د مکې د مجرمانو انجام هم دغسې کيدې شي، ځکه چه دوئ هم د حق پيژندلو او په دې باندې د پوهيدلو باوجود ايمان نهٔ راوړي، او د هغهٔ د نبي په ضرر رسولو پسې لګيدلي دي۔
الله تعالىٰ وفرمايل چه اے مکې والو! اے د عربو کافرانو! مونږ محمد ﷺ ستاسو لپاره نبي جوړ کړو، او دراومو ليږهٔ، او د قيامت په ورځ به په تاسو ګواهي کوي چه هغه تاسو ته دين رسولے دے، يا ستاسو د بدو اعمالو ګواهي به کوي چه تاسو د هغهٔ څومره مخالفت کړيدے، او څومره مو موافقت کړيدے، او بيا به ستاسو انجام ډير خراب وي۔
لکه څنګه چه مونږ فرعون دپاره موسىٰ نبي جوړ کړے وو، او هغهٔ ته مو ليږلے وو، او فرعون د هغهٔ خبره نهٔ وه منلے، نو مونږ فرعون او فرعونيان په سختو رانيولو سره را اونيول، او دا ټول مو په سمندر کښې ډوب کړل۔
شَاهِداً عَلَيْكُمْ : يعني په آخرت کښې به په انکار د منکرينو او په تزکيه د مؤمنانو ګواهي کوي۔ او دا ګواهي خاص ده په حاضرينو پورې لکه دليل پرې د سورة مائده (۱۱۷) آيت دے چه په باره د عيسىٰ عليه السلام کښې وو،
او په حديث د بخاري کښې زمونږ د نبي په باره کښې هم ذکر دے۔
يا شَاهِدًا معنىٰ ده، بيان کونکے دے تاسو ته د حق، دے دپاره چه په تاسو باندې حجت قائم شي۔ نو علىٰ د اِلْزام د حجت دپاره ده۔
اِلَىٰ فِرْعَوْنَ رَسُولاً : د مکې کافران د يهودو په واسطه سره د فرعون او د موسىٰ عليه السلام د واقعې نه ښهٔ خبر وو په نسبت د نورو واقعاتو، پدې وجه ورته ددې دواړو واقعه بيان کړے شوه۔
الرَّسُولَ: الف لام پکښې عهدي دى، مراد ترينه موسىٰ عليه السلام دے۔
وَبِيلًا: ۱- اَىْ عَظِيْمًا شَدِيْدًا ثَقِيْلًا۔ يعني په لوى او سختو او درنو رانيولو سره۔
۲- هلاکونکے، ۳- خراب عاقبت والا۔ دا ټولے معاني صحيح دي۔ او ددے نه هغه ټول عذابونه مراد دي چه په فرعونيانو باندې راغلي وو لکه طوفان، جراد، قمل، ضفادع، دم او غرقيدل۔

فَكَيْفَ تَتَّقُونَ: دلته د تقویٰ نه لغوی معنیٰ مراد ده یعنی ځان بچ کول۔
پدے آیت کښې الله تعالیٰ د قریشو کافرانو ته خطاب کوی فرمائی چه که تاسو په خپل کفر باندے باقی پاتے کیږئ، او حق دین نهٔ قبلوئ نو د قیامت د عذاب نه به څنګه بچ شئ، چه د هغې خطرناکی به دومره سخته وی چه هغه به ماشومان بوډاګان جوړوی، او آسمان به د ویرے د وجه نه اوشلیږی۔
د الله تعالیٰ دا حتمی وعده ده، دا به خامخا پوره کوی، او قیامت به خامخا راځی، دے وجے نه اے د قریشو خلقو! تاسو ددے ورځے د عذاب نه د بچ کیدو خامخا تدبیر اوکړئ، او هغه تدبیر په الله تعالیٰ او د هغهٔ په رسول ایمان راوړل او د اسلام په دائره کښې داخلیدل دی۔
إِنْ كَفَرْتُمْ : دے نه معلومیږی چه د دغه ورځے د مصیبتونو نه انسان په ایمان او توحید سره بچ کیږی۔
يَوْمًا : یعنی د دغه ورځے د درد او تکلیفونو او عذابونو او شرمونو نه به څنګه بچ شئ۔
شِيْبًا: جمع د اَشْیَب ده۔ بوډا ته وائی۔ او ماشومان به ولے بوډاګان کوی ؟
لِطُوْلِ ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَشِدَّتِهِ ۔ ځکه چه دا ورځ به اُوږده ډیره وی او سختی به ئے ډیره وی، او کله چه په انسان باندے سختی وی، نو زر بوډا کیږی۔
لکه حدیث کښې دی چه کله الله تعالیٰ آدم عليه السلام ته ووائی چه اُور ته یو تولګے راوباسه، هغه به ووائی : د څومره کسانو نه څومره ؟ نو ورته به ووائی : د هر زرو نه نهه سوه نهه نوی جهنم دپاره او یو تن جنت دپاره۔
رسول الله ﷺ فرمائی : [فَعِنْدَهُ يَشِيبُ الصَّغِيرُ وَتَضَعُ كُلُّ ذَاتِ حَمْلٍ حَمْلَهَا وَتَرَى النَّاسَ سُكَارٰى وَمَا هُمْ بِسُكَارٰى وَلٰكِنَّ عَذَابَ اللّٰهِ شَدِيْدٌ]
نو دا هغه وخت دے چه ماشومان به بوډاګان کیږی، او هره حامله ښځه به خپل حمل زیګوی او ته به خلق وینے چه نشه به وی، او حال دا چه هغوی به څه نشائی څیز نهٔ وی خوړلے لیکن عذاب د الله تعالیٰ ډیر سخت دے۔ (بخاری : ۳۳۴۸) ومسلم (۵۵٤)
او ددے روایت او آیت نه معلومه شوه چه دا سخته په ماشومانو هم راځی لږ وخته پورے۔

السَّمَاءُ مُنْفَطِرٌ بِهٖ: دے کښې یوه توجیه دا ده چه (۱) بِهٖ ضمیر دغه یوم ته راجع دے، او باء سببیه ده، یا باء په معنیٰ د فِیْ سره ده۔

او مطلب دا دے چه آسمان به د دغه ورځے د راتللو په سبب سره وچوی، رامات به شی۔ یا په دغه ورځ کښې به آسمان وچوی۔

۲- یا بِهٖ ضمیر الله ته راجع دے۔ یعنی آسمان به د الله تعالیٰ په نزول سره وشلیږی۔

حافظ ابن القیمؒ په قصیده نونیه کښې وائی چه خاصو مفسرینو ددے دا تفسیر هم کړیدے خکه چه عام مفسرین ددے تفسیر نه یریږی، د الله تعالیٰ نزول نهٔ منی۔

لیکن اول تفسیر ظاهر د قرآن دے۔ لکه نورو ځایونو کښې دی:

﴿وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ بِالْغَمَامِ﴾ چه په هغه ورځ به آسمان وچوی په وریځے سره) اګرکه دویم تفسیر هم صحیح دے۔

إِنَّ هَذِهِ تَذْكِرَةٌ : اُوس قرآن کریم او دغه مخکنے قصے نه عبرت اخستو ته ترغیب ورکوی۔

یعنی دا آیتونه چه په دے کښې د قیامت د ورځے د سخت عذاب خبر ورکړے شوے دے، د عبرت او نصیحت خبرے دی، دے وجے نه څوك چه د قیامت د ورځے د عذاب نه بچ کیدل غواړی، هغه دِے د شرك او ګناهونو نه توبه کړی او په الله دِے ایمان راوړی، او نیك عمل دِے اوکړی۔

فَمَنْ شَاءَ: د شَاءَ مفعول اِتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا دے۔ او د مَنْ جزاء محذوف ده، اَیْ فَلْيَتَذَكَّرْ بِهٰذِهٖ ۔ یعنی څوك چه الله تعالیٰ طرفته لاره نیول غواړی نو هغه دِے دا نصیحتونه رایاد کړی، او ددے نه دِے عبرت واخلی۔

یا مفعول د شَاءَ پټ دے، اَیْ مَنْ شَاءَ النَّجَاةَ۔ څوك چه د نجات اراده لری۔

او جزاء د مَنْ (اِتَّخَذَ اِلٰى رَبِّهٖ) ده۔ یعنی هغه دِے ونیسی الله تعالیٰ ته لاره۔

سَبِيْلًا : په اتفاق د مفسرینو سره الله تعالیٰ ته د لارے نیولو معنیٰ دا ده چه بِالْاِيْمَانِ وَالْعَمَلِ الصَّالِحِ۔ یعنی په ایمان راوړو او په نیك عمل اختیارولو سره۔

او دارنګه په تهجدو او قراءت د قرآن او په اتباع د سنت سره، چه د هغے نه لنډ تعبیر ایمان او عمل صالح دے۔

| |
|---|
| اِنَّ رَبَّكَ یَعْلَمُ اَنَّكَ تَقُوْمُ اَدْنٰی مِنْ ثُلُثَیِ اللَّیْلِ وَنِصْفَهٗ |
| یقیناً رب ستا پو هیږی چه ته اُودرېږے کم د دوه حصو د شپے نه او نیمه د هغے |
| وَثُلُثَهٗ وَطَآئِفَةٌ مِّنَ الَّذِیْنَ مَعَكَ وَاللّٰهُ |
| او دریمه د هغے، او یوه ډله د هغه کسانو نه چه ستا سره دی (ملګری ستا) او الله |
| یُقَدِّرُ اللَّیْلَ وَالنَّهَارَ عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ |
| اندازه کوی شپه او ورځ، هغه پو هه دے چه هیچرے تاسو نهٔ شئ راګیرولے دا (اُودریدل) (تاسو آخر سر ته نشئ رسولے) (چه تاسو به طاقت اُونهٔ لرئ ددے اُودریدو) |
| فَتَابَ عَلَیْكُمْ فَاقْرَؤُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ |
| نو مهربانی ئے اُوکړه په تاسو باندے نو لولئ هغه چه آسان وی تاسو ته د قرآن نه، |
| عَلِمَ اَنْ سَیَكُوْنُ مِنْكُمْ مَّرْضٰی وَآخَرُوْنَ یَضْرِبُوْنَ |
| هغه پو هه دے چه خامخا وی به ستاسو نه بعض مریضان او نور کسان به سفر کوی |
| فِی الْاَرْضِ یَبْتَغُوْنَ مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ وَآخَرُوْنَ یُقَاتِلُوْنَ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ |
| په زمکه کښې لټوی به د فضل الله نه او نور کسان به جنګ کوی په لاره د الله کښې |
| فَاقْرَؤُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنْهُ وَاَقِیْمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ |
| نو اُولولئ هغه چه آسان وی ددے نه او پابندی کوئ د مانځه او ورکوئ زکاة |
| وَاَقْرِضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا ؕ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ |
| او قرض ورکوئ الله ته قرض ښائسته او هغه چه مخکښې لیږئ تاسو دپاره د ځانونو |
| مِّنْ خَیْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ هُوَ خَیْرًا وَّاَعْظَمَ |
| خپلو څه نیك عمل مونده به کړئ هغه په نیز د الله هغه غوره او ډیر لوئی |
| اَجْرًا وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۲۰﴾ |
| اجر والا او بخنه غواړئ د الله نه یقیناً الله بخونکے رحم کونکے دے. |

**تفسیر** : پدے رکوع سره د قیام اللیل (تهجدو) وجوب (فرضیت) منسوخ شو، او دغه رنګ تعیین د نیمائی شپے، یا د دوه دریمو برخو یا د یوے دریمے برخے منسوخ شو او غیر معین اندازے دپاره د هغے استحباب پاتے شو۔

نو دلته ددے منسوخ کیدو حکمة بیانوی چه نبی کریم ﷺ د خپل رب د حکم پوره اهتمام اوکړو، او د نبی ﷺ په اتباع کښې صحابه کرامؓ هم د تهجدو مونځ شروع کړو، خو چونکه د مقرره وخت په پوره تحدید سره پابندی کول مسلمانانو لپاره د مشقت باعث وو، دے وجے نه په دے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ خبر ورکړو چه د تهجدو مانځه اداء کول اُوس هغهٔ آسان کړل۔

د شپے او ورځے وختونه، د هغے تیرے شوے او باقی مانده برخے هم هغه پیژنی، او دا هم پیژنی چه د تهجدو د وخت مقررول، په غیر د کمی او زیاتی نه ستاسو لپاره مشکل کار دے، دے وجے نه اوس هغهٔ د تهجدو مانځه معامله ستاسو لپاره آسانه کړه، او تاسو له ئے حکم درکړو چه تاسو نه څومره کیدے شی د تهجدو مونځ کوئ، او د قرآن تلاوت کوئ، اُوس د وخت مقرورل باقی نهٔ دی پاتے شوی۔ انسان چه څو پورے تازګی محسوسوی مونځ دِے کوی، او کله چه ستړے شی، یا ورله خوب ورشی، نو آرام دِے وکړی، دے دپاره چه د سهار د مانځه په وخت سستی محسوس نهٔ کړی۔

**اَدْنٰی**: یعنی د دوه برخو د شپے ته نزدے۔ ادنیٰ ځکه وائی چه ګینټه څو ورسره نهٔ وه چه فکس په هغه وخت راپاخیږی۔

**وَطَآئِفَةٌ**: دے نه معلومیږی چه صحابه کرامؓ هم یو کال په ښه پابندئ سره دا تهجد وکړل۔ ددے وجه نه مشرکانو به دا خبره کوله چه دا قرآن ددے سړی دپاره د مشقت او د بد بختئ سبب وګرزیدو، تو له شپه ولاړ وی ګوریږی۔ نو ﴿مَا اَنْزَلْنَا عَلَیْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقٰی﴾ هم ددے خبرے د رد دپاره راغلے وو۔ (قرآن مونږ په تا باندے دے له نهٔ دے رالیږلے چه تهٔ په مشقت کښې پریوزے)

**وَاللّٰهُ یُقَدِّرُ الَّیْلَ** : (۱) ددے یو مطلب دا دے یعنی د شپے او د ورځے حقیقی اندازه الله تعالیٰ ته معلومه ده چه دا نصف دے او دا ثلث دے، او انسانان ئے په اجتهاد سره پیژنی نو په هغے کښې د خطائی احتمال وی۔ نو تاسو به الله تعالیٰ په هغے باندے نهٔ رانیسی۔

(۲) بل مطلب دا دے چه الله تعالیٰ په شپه او ورځ کښې د مختلفو څیزونو تقدیر کوی

چه یو د هغې نه قیام اللیل دې په تحدید مُعیَّن سره، او بیا په هغې کښې تخفیف کول دی۔ یعنې د شپې او د ورځې اندازې د الله په اختیار کښې دی۔

(۳) دریم مطلب : عطاءً وائي : [لَایَفُوْتُهٗ عِلْمُ مَا یَفْعَلُوْنَ اَیْ اِنَّهٗ یَعْلَمُ مَقَادِیْرَ اللَّیْلِ وَالنَّهَارِ فَیَعْلَمُ قَدْرَ الَّذِیْ یَقُوْمُوْنَهٗ مِنَ اللَّیْلِ وَالَّذِیْ یَنَامُوْنَ مِنْهُ]۔

یعنې د الله تعالیٰ نه د مخلوقاتو د کارونو علم نهٔ فوت کیږی، یعنې الله تعالیٰ د شپې او د ورځې اندازې پیژنی، نو هغه اندازه هم پیژنی چه خلق پکښې مونځ کوی، او د کوم نه چه اُوده پاتې کیږی)

عَلِمَ اَنْ لَّنْ تُحْصُوْهُ: اُوس الله تعالیٰ خپل رحم بیانوی په دوی باندې۔

اَیْ اَنْ لَّنْ تُطِیْقُوْا قِیَامَ اللَّیْلِ بِتِلْكَ الطَّرِیْقَةِ الْمَخْصُوْصَةِ۔

یعنې الله تعالیٰ ته معلومه وه چه تاسو به طاقت ونهٔ لرئ د قیام اللیل په دغه خاص طریقه۔ ځکه چه که دا همیشه دپاره لازم پاتې شوې وې نو د خلقو د طاقت نه به بهر شوې وې۔ یا ضمیر علم د مقادیرو دُ شپې او د ورځ ته راجع دې۔

فَتَابَ عَلَیْكُمْ : نو الله تعالیٰ دربانده مهربانی وکړه او آسانی ئې درته راولیږله چه تعیین او اندازه د رکعاتو ختمه شوه۔ او د الله مهربانی دا هم ده چه انسان د تهجدو په نیت اُوده شی او بیا ترې فوت شی هم الله تعالیٰ د تهجدو اجر ورکوی۔

فَاقْرَؤُوْا مَا تَیَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ : یعنې اُوس لولئ چه څومره تاسو ته د قرآن نه آسان وی، یوه سیپاره لولې او که لږ یا ډیر۔ پابندی نشته۔

اَیْ فَاقْرَأُوْا فِی الصَّلَاةِ بِاللَّیْلِ مَا خَفَّ عَلَیْکُمْ وَتَیَسَّرَ لَکُمْ مِنْهُ۔

یعنې لولئ د شپې په مانځه کښې هغه چه آسان وی تاسو ته د قرآن نه۔

او دلته ذکر د جزء دې چه قرآنْ لوستل دی، او مراد ترې نه ټول مونځ د تهجدو دې۔ ځکه چه د تهجدو اُوږد والې او لنډ والې په قراء ت سره راځی۔ نو دا صریح دلیل دې چه د شپې د مانځه د رکعتونو اندازه هم نهٔ ده مقرر، او نهٔ ئې د قرائت اندازه مقرر ده۔

**فائده** : ددې آیت نه بعض نا خبره استدلال کوی (چه شاه انور شاه کشمیریؒ هم پرې رد کړیدې) چه په مانځه کښې فاتحه فرض نهٔ ده ځکه چه دې آیت کښې دی چه کوم ځای درته آسان وی هغه وایه۔

د جمهورو محدثینو په نیز دا استدلال صحیح نهٔ دې ځکه چه پدې آیت کښې خو د

قیام اللیل په باره کښې خبره شروع ده چه د شپې په مانځه کښې هر څومره قراءت کوې نو جائز ده، یا هر څومره مونځ چه کوې نو اجازه ده۔
دا پکښې د سَره نشته چه فاتحه فرض نهٔ ده، او هر چه فاتحه ده نو هغه خو د رسول الله ﷺ په حکم سره فرض شویده (لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَّمْ یَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْکِتَابِ)۔
دویم دا چه احناف هم فاتحې ته واجبه وائي، او حال دا چه پدې آیت کښې دي چه د هر ځای نه دې قراءت وکړو نو جائز ده، او احناف وائي چه چا د فاتحې نه علاوه ولوستل نو واجب ترې پاتې دی۔ سجده سهوه به کوی۔ نو بیا څنګه پدې آیت باندې عمل راغې؟ خو پدې خبره ئې سوچ نهٔ دې کړې۔
﴿عَلِمَ أَنْ سَیَکُوْنُ مِنْکُمْ مَّرْضیٰ﴾ پدې کښې الله تعالیٰ د تهجدو د مانځه په وختونو کښې د آسانئ پیدا کولو ځینې نوراسباب بیان کړی دی۔ الله تعالیٰ وفرمایل :
هغهٔ ته معلومه ده چه په تاسو کښې به بعضِ خلق ناجوړه وی، هغوئ دپاره نیمائي شپې پورې، یا دوه دریمې برخې شپې پورې یا یوې دریمې برخې شپې پورې مونځ کول د ډیر تکلیف باعث وی، دې وجې نه هغهٔ نه چه څومره کیدې شي هغومره مونځ دې کوی، اوکه په ولاړه مانځه کښې تکلیف محسوسوی نو کیډنې، بلکه که نوافلو کولو کښې ورته پریشانی وی نو نهٔ دې کوی، او دهٔ ته به د هغه نوافلو ثواب ملاویږی کوم چه دهٔ د صحت په حالت کښې کول۔
د آیت مطلب دا دې چه الله تعالیٰ ته پته وه چه تاسو کښې مریضان، تاجران او مجاهدین درې واړه شته او هغوی به په دغه مخکنئ طریقه تهجد نشي کولې،
نو پدې وجه ئې درته آسانه کړه، نو اُوس چه ددې خلقو څومره وس کیږی مونځ دې کوی۔ او دا امت اکثر دې درې ډلو ته تقسیم دې، نو که تهجد په مخکنئ طریقه لازم پاتې شي، نو د امت ډیر خلق به ترې محروم شي۔
أَنْ : مُخَفَّفْ مِنَ الْمُثَقَّل دې۔ په اصل کښې (أَنَّهٗ) وو۔
یَضْرِبُوْنَ فِیْ الْأَرْضِ: یعنی هغهٔ ته معلومه ده چه ځینې خلق د تجارتی کارونو دپاره سفر کوی دې دپاره چه د مخلوق محتاج پاتې نشي۔ د تجارت دپاره سفر کول هم طاعت دې، لیکن د هغې سره د قیام اللیل او د هغې د تحدید طاقت نشي لرلې۔ د داسې مسافرو د حالاتو تقاضا داده چه شریعت دوئ له سهولت راپیدا کړی، دې وجې نه دوئ لپاره په

فرض مونځونو کښې تخفیف شوے دے، د څلورو رکعتونو والا مونځونه دوئ لپاره دوه رکعته شوی دی، او دوه مونځونه ورله په یو وخت کښې کول جائز شوی دی۔

وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ: او هغۀ ته دا هم معلومه ده چه ځینے مسلمانان د الله تعالیٰ په لاره کښې د جهاد کولو لپاره د خپلو کورونو نه اُوځی، او لرے علاقو ته ځی، او د دوئ د حالاتو تقاضا هم ده چه شریعت دوئ له آسانی پیدا کړی، نو د الله په لاره کښې جهاد کونکی ډیے هم د خپلو حالاتو مطابق د نوافلو اهتمام وکړی، اوکه حالات ناسازګاره وی نو د تهجدو مونځ ډیے په عارضی توګه پریدی۔

حافظ ابن کثیرؒ د ﴿وَآخَرُونَ يُقَاتِلُونَ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ﴾ په ضمن کښې لیکی چه دا آیت بلکه ټول سورت په مکه کښې نازل شوے وو، چه په هغه وخت کښې جهاد لا فرض شوے نۀ وو، دے وجے نه دا د نبی کریم ﷺ د رشتین والی اَهم دلیل دے چه د جهاد کوم حکم چه آینده راتلونکے وو د هغے خبر په دے کښې ورکړے شوے، او بیا رشتینی ثابت شو۔

دارنګه دے نه معلومه شوه چه که یو وخت کښې جهاد فرض هم نۀ وی خو د هغے دپاره به ذهن سازی کولے شی، او کوم خلق چه همیشه په جهادونو ردونه کوی، دا د منافقت نښه ده۔

پدے آیت کښې دوه فائدے دی: (۱) عبد الله بن مسعود ؓ وئیلی دی:

[مَنْ طَلَبَ الْحَلَالَ فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ]

څوك چه حلال طلب کوی نو دے د الله په لاره کښې دے، د مجاهدینو په شان، ځکه چه دلته الله تعالیٰ جمع په مابین د مقاتلین او تاجرینو کښې کړیده نو د دلالة الاقتران نه ئے دلیل نیولے دے۔

فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ: د اول مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآن نه مراد په اعتبار د اَوقاتو سره دے۔ چه یوه ګینته وی او که دوه ګینتے وی۔ او دے مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ نه مقدار د آیتونو او د سورتونو دے۔ یعنی یو سورت لولی او که ډیر۔

(۲) د ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ او ﴿فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ﴾ نه امام شافعی رحمه الله د تهجدو د مونځ په عدمِ وجوب باندے استدلال کولو سره لیکلی دی چه د رسول الله ﷺ د سنتو نه همدا ثابت دی چه د پنځو فرض مونځونو نه سوئ بل هیڅ یو مونځ فرض شوے نۀ دے۔ د بعضِ خلقو خیال دے چه د قیام اللیل وجوب د نبی کریم ﷺ او د

هغهٔ د امت دواړو دپاره منسوخ شوے دے۔

دریمه رائے داده چه د امت په حق کښې د تهجدو د مانځه واجب والے منسوخ شوے، او د نبی ﷺ په حق کښې ددے وجوب باقی دے۔

شوکانیؒ لیکی : غوره داده چه د تهجدو وجوب د نبی ﷺ او د هغهٔ د امت ټولو په حق کښې منسوخ شوے دے۔

ددے دلیل د صحیحینو هغه حدیث دے چه په هغے کښې یو تپوس کونکی نبی کریم ﷺ نه تپوس وکړو چه آیا د پنځو مونځونو نه علاوه په ما بل مونځ فرض دے؟ نو نبی ﷺ جواب ورکړو چه نه، مګر دا چه تهٔ نفلی مونځ کوے۔

او نبی کریم ﷺ نه ددے د وجوب د ساقط والی دلیل د سورة اسراء (۷۹) آیت ﴿ وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ ﴾ دے، (تهٔ د شپے په وخت د تهجدو مونځ کوه چه دا ستا لپاره نفل مونځ دے)۔

حافظ ابن کثیرؒ لیکلی دی چه په ﴿ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ ﴾ کښې د مانځه نه په (قرائت) سره تعبیر شوے، لکه د سورة اسراء په (۱۱۰) آیت ﴿ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ ﴾ کښې د قراءت نه په مانځه سره تعبیر شوے۔

**وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ**: ددے نه مراد پنځه مونځونه دی۔ اشاره ده چه قیام اللیل د مابنام او ماسخوتن مانځه نه علاوه دے۔

او پدے کښې تاکید دے په مانځه باندے، او دا ذهن سازی ده چه د تهجدو فرضیت منسوخ شو، نو دا ګمان ونکړئ چه فرض مونځ به هم منسوخ شی، نهٔ بلکه د مونځونو پابندی کوئ۔ دا ستاسو د خپل رب سره د تعلق ښکلے ذریعه ده۔

**وَآتُوا الزَّكٰوةَ**: زکاة په مکه کښې فرض شوے وو، لیکن مقادیرئے په مدینه کښې بیان شول، او زکاة ورکول د ایمان نښه ده؛ د اسلام همدا هغه رکن دے چه ددے په ذریعه د فقیرانو او مسکینانو ضرورتونه پوره کیږی۔

بعض وائی : ددے نه مراد نفلی صدقه ده۔ او بعض وائی : صدقة الفطر مراد ده۔

بعض وائی : ددے نه مراد هر هغه نیک کار چه د نفس د تزکیه سبب جوړیږی۔ لیکن اول قول غوره دے۔

**وَاَقْرِضُوا**: ددے نه مراد د خیر په ځایونو کښې مال لګول دی لکه جهاد او دعوت او

علم شو۔

وَمَا تُقَدِّمُوا : دا تعمیم دے روستو د تخصیص نه ځکه چه (مِنْ خَیْرٍ) لفظ هر طاعت بدني او قولي او مالي ته شامل دے چه د کتاب او سنت موافق وي۔

هُوَ: دا ضمیر فصل دے، د تاکید دپاره ئے راوړو او پدے کښې اشاره ده چه په دغه عمل د خیر کښې به هیڅ تبدیلي او نقصان نهٔ راځي بعینهٖ همدغه عمل به مونده کړي۔

خَیْرًا: یعني غوره د هغه مال نه چه تاسو ئے د مرګه پورے ذخیره کوئ بلکه غوره دے د ټول متاع د دنیا نه۔

وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ: د هر عبادت نه روستو استغفار پکار وي، ځکه چه عبادت د الله تعالیٰ د شان مطابق ګران وي۔ نو استغفار سره عبادت مقام د قبولیت ته وړاندے کیږي۔ وبالله التوفیق۔ واستغفر الله ربي من کل ذنب واتوب الیه۔

امتیازات :

١- رسول الله ﷺ ته په المزمل سره آواز شوید ے۔

٢- د تهجدو اول فرضیت بیا د هغے منسوخیت۔

٣- د رسول الله ﷺ د رشتینوالي دلیل، چه د جهاد د فرضیت نه مخکښې ئے د هغې په باره کښې خبر ورکړو۔

٤- په قیامت کښې د ماشومانو بوډاګان کیدل۔

ختم شو تفسیر د سورة المزمل په توفیق د رب العزت سره۔

❁❁❁

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آیاتها (٥٦) | (٧٤) سُوْرَةُ الْمُدَّثِّرِ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة المدثر مکی دے، په دے کښې شپږ پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة المدثر

**نوم** : په اولنی آیت کښې د [اَلْمُدَّثِّرُ] لفظ راغلے، همدا دد ے سورت نوم کیښودل شوے۔

**د نازلیدو زمانه** : دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔ ابن مردویهٌ او بیهقیؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه سورتِ مدثر په مکه کښې نازل شوے۔

د جمهورو علماؤ په نیز نبی کریم ﷺ باندے د تولو نه اوله وحی ﴿ اِقْرَاْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِیْ خَلَقَ ﴾ نازل شو، دے نه پس څو ورځو پورے د وحی نازلیدل بند شو، بیا سورتِ مدثر نازل شو۔

### مناسبت

١- مخکښې دعوت وو نو دلته دعبادت دعوت دے۔

٢- مخکښې سورت کښې امر وو په قراءت د قرآن په اوقاتو د شپه کښې، نو پدے سورت کښې امر دے په بیانولو د قرآن سره۔ یعنی د شپے عبادت کوه نو د ورځے دعوت کوه۔

٣- مخکښې عام مکذبین ذکر شول، نو دلته خاص احوال د مکذب ذکر کوی۔

٤- مخکښې ئے په اهل قرآن کښې درے قسمه خلق ذکر کړل نو پدے سورت کښې د

قرآن د منکرینو درے اقسام بیانوی۔

## موضوع د سورت

اَلْاِنْذَارُ وَبَيَانُ كِبْرِيَاءِ الرَّبِّ سُبْحَانَهٗ وَتَعَالٰی۔

یعنی خلق یره ول او د الله سبحانه وتعالیٰ لوی والے او عظمت ورته بیانول، او د هغوی په زړونو کښې کینول چه اے خلقو ! د الله نه مخ وانهٔړوئ او شریکان ورسره جوړ نکړئ، او عبادت ئے پرے نږدئ ۔

نو (قُمْ فَاَنْذِرْ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ) ئے موضوع ده۔

یعنی د الله په کبریاء باندے خلق یرول او هغه د خلقو په زړونو کښې کینولو باندے حکم پدے سورت کښې خپل نبی ته کوی چه دا ستا کار شو۔

بیا به رسول الله ﷺ پدے حکم باندے په مختلفو طریقو سره عمل کولو لکه د شرك رد، نیك اعمال، ګناهونه پرېخودل، د الله نظر او د هغهٔ علم به ئے بیانولو۔ او دا موضوع په اول کښې هم ده،

او په آخره کښې هم راغلے ده ﴿ كَاَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنْفِرَةٌ فَرَّتْ مِنْ قَسْوَرَةٍ ﴾

یعنی رسول الله ﷺ داعی دے، او قوم ترے داسے تختی لکه خرهٔ چه د زمری نه تښتی۔

دعوت به په څه باندے کوے؟

نو هغه ذکر کوی چه په قرآن به ئے کوے، نو ددے وجه نه څوك چه د قرآن دشمنان وی هغوی ته سخت وعیدونه بیانوی،

بیا د قرآن کریم د حقانیت دپاره دلائل ذکر دی، بیا چا چه د قرآن نه اعراض کړیدے نو د هغهٔ په جهنم کښې احوال بیانیږی۔

نو دعوت، او دعوت په قرآن کریم، او د قرآن کریم د حقانیت بیان، او چا چه د قرآن عملاً مخالفت کړیدے د هغوی بد صفات، او د قرآن نه اعراض کونکو ته رټنه ددے سورت موضوع ده۔

او آخر کښې ئے ترغیب قرآن ته ورکړیدے چه ددے نه عبرت او نصیحت واخلئ۔

| یَا اَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ ﴿۱﴾ قُمْ فَاَنْذِرْ ﴿۲﴾ وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ ﴿۳﴾ |
|---|
| اے څادر اچونکیه۔ پاځیږه نو یره ورکړه۔ او د رب خپل لوئی والے بیان کړه۔ |
| وَثِیَابَكَ فَطَهِّرْ ﴿٤﴾ وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ ﴿٥﴾ وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ ﴿٦﴾ |
| او جامے خپلے پاکے کړه۔ او ګناهونه پریږده۔ او زباتنه مهٔ کوه چه تهٔ ډیر ګڼړے |
| وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ ﴿۷﴾ |
| (عمل لره)۔ او خاص د رب خپل دپاره صبر کوه۔ |

**تفسیر** : بخاریؒ او مسلمؒ د جابر بن عبد الله ﷺ نه روایت کړے، هغهٔ ووئیل : ما د نبی کریم ﷺ نه آوریدلی دی چه هغهٔ د وحی په باره کښ خبرے کولے، وے فرمایل چه زهٔ پیدل روان ووم چه د آسمان له اړخه مے یو آواز واوریدهٔ، (فَرَفَعْتُ بَصَرِیْ فَاِذَا الْمَلَكُ الَّذِیْ جَاءَنِیْ بِحِرَاءٍ جَالِسٌ عَلٰی كُرْسِیٍّ بَیْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ، فَرُعِبْتُ مِنْهُ، فَرَجَعْتُ فَقُلْتُ زَمِّلُوْنِیْ زَمِّلُوْنِیْ) چه سر مے پورته کړو نو هغه ملائك چه هغه زما خواته په غارِ حراء کښ راغلے وو هغه مے دآسمان او زمکے ترمینځه په یوه کرسئ باندے ناست اولیدهٔ۔

زهٔ ددے نندارے نه سخت اویریدم، کور ته واپس راغلم، او وے وئیل : په ما کمبله واچوئ، په ما کمبله واچوئ۔ نو کور والو په ما کمبله واچوله۔ دے نه پس ﴿یَآ اَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ﴾ نازل شو۔ (صحیح بخاری رقم الحدیث : ٤)

حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه په دے باره کښ همدا روایت محفوظ دے، او دا ددے خبرے دلیل دے چه ددے نه مخکښ په نبی ﷺ وحی نازله شوے وه، ځکه چه نبی ﷺ په دے کښ فرمایلی دی : ما د آسمان او زمکے ترمینځه هغه ملائك په کرسئ باندے ناست اولیدلو کوم چه زما خواته غار حراء ته راغلے وو۔

اول ځل رسول الله ﷺ جبریل علیه السلام په غار حراء کښ لیدلے وو، نو یخنی پرے راغلی وه نو خپل کور ته راغلے وو، او خدیجے رضی الله عنها ته ئے ووئیل چه په ما باندے څادر واچوه نو په هغے کښ (یَآ اَیُّهَا الْمُزَّمِّلُ) نازل شو، بیا درے کالو پورے،

(او بعض وائی شپږ میاشتے) وحی بنده وه، نو بیا رسول الله ﷺ ته جبریل علیه السلام په کرسئ باندے ناست راښکاره شو، او بیا پرے دوباره یره راغله نو د هغے په نتیجه کښ دا

سورت نازل شو. او ددے نه روستو وحی گرمه شوه، زر زر به راتلله، او دعوت شروع شو او مخالفتونه هم سخت شول.

اَلْمُدَّثِّرُ : د دِثار نه دے څادر ته وائی. یعنی اے هغه شخصه چه ځان ئے په جامه کښې پټ کړیدے. اَیْ کُنْ النَّذِیْرَ الْعُرْیَانَ. یعنی د بربنډ شخص په شان یره خلقو ته ورکړه یعنی دا څادرونه د ځان نه لرے کړه، او راپاڅیږه ښکاره خلق ویره وه، او د هغه شخص په شان شه چه هغه په بربنډه باندے خلق ویروی لکه د عربو همدا عادت وو.

او مخکښې سورت کښې مونږ وویل چه دلته هم خطاب په (یَا اَیُّهَا الْمُدَّثِّرُ) سره د پاره د مهربانئ او لطف او محبت او نهٔ ملامتیا دے.

قُمْ: قیام نه مراد ودریدل نهٔ دی بلکه د دعوت دپاره ځان تیارول او هغه کار شروع کول دی. او مقصد دا دے چه «اوس راحت او آرام پریده، او پوره همت او تازگئ سره د مکے مشرکان د اُور د عذاب نه اُویروه».

فَاَنْذِرْ: یعنی خپل امت ډیر ویره وه چه اے خلقو! ستاسو مخے ته د الله تعالیٰ عذابونه راروان دی، بره مو ډیر لوی رب دے، د هغهٔ نه ویریږئ او ایمان راوړئ او د هغهٔ بندگی وکړئ.

وَرَبَّكَ فَكَبِّرْ : دا موضوع د دعوت ده، یعنی د خپل رب عظمت او لوئی بیان کړه، او مشرکانو ته اُووایه چه الله تعالیٰ د ټولو نه لوئے دے، دے وجے نه تاسو د هغهٔ نه سِویٔ د هیچا مخے ته مهٔ ښکته کیږئ، او د هیچا مخے ته د غوښتنے لاس مهٔ اوږدوئ.

وَثِیَابَكَ فَطَهِّرْ : «او خپلے جامے پاکے کړه او د هغے د پاکئ خیال ساته».

(۱) په دے آیت کښې د جامونه یا خو ظاهری جامے پاکے ساتل دی. یعنی نبی کریم ﷺ ته حکم شوے دے چه تهٔ هر وخت د تمامو پلیتیو نه د خپلو کپړو پاکولو خیال ساته، خاصکر کله چه تهٔ مونځ کوے. یا خلقو ته دعوت ورکوے، ځکه چه د خیرنو جامو والا نه خلق نفرت کوی، دعوت ئے اثر نهٔ کوی، خلق ورته نهٔ کینی، او ددے وجه نه د جامو پاکوالے په عباداتو او مونځونو کښې واجب دے.

او ظاهره ده چه هر کله نبی ﷺ ته د ظاهری پاکئ د اهتمام کولو حکم ورکړے شوے نو باطنی پاکیزگی په طریقه اولیٰ سره مطلوب ده.

(۲) دارنګه د جامو نه مراد تمام اعمال دی، لکه په قرآن حدیث کښې د جامو اطلاق په

عمل باندے کیږی اَیْ عَمَلَكَ فَاَصْلِحْ۔ یعنی د خپل عمل اصلاح وکړه، او هغه برابر کړه۔ (مجاهدؒ، ابن زیدؒ وابو رزینؒ) گویا که الله تعالیٰ نبی ﷺ ته نصیحت وکړو چه ته خپل تمام عملونه د نوم او ښودنے، ریاکارئ، منافقت، کبر او غرور او غفلت او سستئ نه پاك او صفا ساته، او د جامو خیال ساتل په دے کښې په طریقه اولیٰ سره داخل دی، ځکه چه د اعمالو په پاکوالی کښې دا هم داخل دی۔

(۳) ثیاب کله نیت ته وائی۔ یعنی نیت دِے پاك کړه او اخلاص پیدا کړه۔

(٤) د ثیاب اطلاق کله په دین باندے کیږی۔ (اِمَّا اَنْ یُّحْرِقَ ثِیَابَكَ)

(٥) حسنؒ او قرطبیؒ وائی: اَخْلَاقَكَ فَطَهِّرْ۔ خپل اخلاق دِے برابر کړه ځکه چه د انسان اخلاق د هغه په احوالو باندے مشتمل وی لکه جامه په بدن باندے۔

(٦) ابن عباس رضی الله عنه فرمائی: [لَا تَكُنْ ثِیَابُكَ الَّتِیْ تَلْبَسُ مِنْ مَكْسِبٍ بَاطِلٍ]

ته چه کومے جامے اغوندے هغه دِے د حرام کسب نه نۀ وی۔ بلکه د صفا حلال کسب نه دِے وی۔

دا ټولے معانی صحیح دی او مرادے دی۔

**وَالرُّجْزَ فَاهْجُرْ**: ددے هم ډیرے معانی دی: (۱) رجز کله گناهونو او تمام بدو اقوالو او افعالو ته وائی۔ یعنی خپل ټول غټ او واړهٔ او پټ او ښکاره گناهونو نه قطعی طور سره لرے اوسه، ښائسته اخلاق خپل کړه، او د مشرکانو د اخلاقو نه لرے اوسه۔

نبی کریم ﷺ د [رجز] او [رجس] دواړو معنو نه بیخی پاك وو، دے وجے نه مقصد یا خو نورو ته ددے نصیحت کول دی، یا نبی ﷺ ته دا نصیحت کول دی چه ته د بتانو نه او د تمامو گناهونو او بد اخلاقو نه په دِه کولو باندے همیش والے کوه۔

(۲) او کله رجز عذاب ته وائی۔ یعنی د عذاب طلب پریده، د الله نه عذابونه د خلقو دپاره مهٔ غواړه۔

(۳) رجز اوثان او عبادت د بتانو ته هم وائی۔ یعنی د کومو بتانو عبادت چه ستا قوم کوی، د هغے خواله هم مهٔ ورځه، ځکه چه هغوئ ناپاك او پلیت دی۔

د سورۃ الحج په (۳۰) آیت کښې راغلی دی: ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ﴾ (نو تاسو د کندگئ یعنی د بتانو نه بچ شئ)۔ په عربئ ژبه کښې [رِجْز] او [رِجْس] دواړو یوه معنیٰ ده، یعنی قبیح او گنده شے۔ اولنی دوه تفسیرونه ډیر غوره دی۔

وَلَا تَمْنُنْ تَسْتَكْثِرُ: ددې هم ډیر مطلبونه دی:

(۱) وَلَا تَمْنُنْ عَلَى اللّٰهِ تَسْتَكْثِرُ عَمَلَكَ۔

یعنی په الله باندې د خپل دعوت او عبادت زباتنه مهٔ کوه چه خپل دا عملونه زیات ګنړې چه اې الله! ما ستا دپاره ډیره خواري وکړه، عبادتونه مې وکړل، او خلقو ته مې ډیر دعوت وکړو، او ډیره سختنه مې تیره کړه، ځکه چه د الله تعالیٰ په تا باندې کوم احسانات دی نو هغه بیشماره دی۔ لکه د بعض خلقو دا عادت وی چه لږ عمل وکړی بیا هغه ډیر ګنړی۔

(۲) لَا تَمْنُنْ بِنُبُوَّتِكَ عَلَى النَّاسِ تَسْتَكْثِرُ بِهَا الْمَالَ۔

یعنی په خلقو باندې په خپل نبوت سره زباتنه مهٔ کوه چه پدې سره د خلقو نه ډیر مالونه راجمع کول غواړې چه ما تاسو ته دین بیان کړو دومره مالونه راوړئ۔

(۳) او خلقو سره دینی یا دنیوی احسان کولو سره هغه مهٔ زباتوه، او ستا په زړهٔ کښې دې دا خبره رانشی چه تا فلانی لوئې احسان کړې دې، بلکه څومره چه کیدې شی بنیګړه کوه، او هغه هیروه، او د هغې د اجر او ثواب امید د الله رب العالمین نه ساته، ګویا که ستا حال دې داسې وی لکه په چا باندې چه دې احسان کړې وی، او په چا باندې دې چه احسان نهٔ دې کړې، دواړه دې ستا په نظر کښې برابر وی۔

(٤) بعض مفسرینو د هدیه سره لګولې دې، :

اَیْ لَا تُنْعِمْ بِشَیْءٍ مُسْتَكْثِرًا اَیْ طَالِبًا لِلْكَثْرَةِ۔

یعنی چا له څهٔ شې په دې نیت مهٔ ورکوه چه هغه تاله ددې په بدله کښې ددې نه زیات درکړی۔ دې لحاظ سره دا حکم نبی کریم ﷺ سره خاص دې۔

(٥) مَنٌّ کله په معنیٰ د قطع کولو او بس کولو سره استعمالیږی۔ معنیٰ دا ده: مهٔ بس کوه کار د دعوت خپل پدې وجه سره چه ډیرئې ګنړې۔

وَلِرَبِّكَ فَاصْبِرْ: او د اسلامی دعوت په لاره کښې چه ستا د مخالفینو له اړخه کوم تکلیف تاته رسیږی، په هغې باندې د خپل رب د رضا لپاره صبر کوه۔

پدې آیتونو کښې چه کوم حکمونه ذکر شویدی، دا خو دلته لنډ لنډ ذکر شویدی لیکن ددې ترمینځ ډیره موده او مسافه وړاندې والې وو، د انذار او د الله کبریاء بیانول او د عمل برابرول او ګناه پریخودل او د الله دپاره صبر کول دا ډیرې اُوږدې خبرې وې، د رسول

الله ﷻ درویشت کاله زندګی ئے رانیولے وه، دا ورپے خبرے نۀ دی،

رسول الله ﷺ پدے کښې د الله تعالیٰ دپاره ډیرے سختے تیرے کړیدی، په تهجدو کښې سختے، په دعوت کښې سختے، په جهاد کښې سختے، د خلقو خبرے برداشت کول، او دا لکه څنګه چه هغۀ ته خطاب دے نو مونږ ته هم دے، هر مؤمن به د خپل طاقت مناسب دعوت کوی، د الله کبریاء به بیانوی، نیك عمل به کوی، ګناه بۀ پریدی، زباتنه به نۀ کوی، د الله دپاره به صبر کوی۔

پورتنو آیتونو کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ ته چه د کومو خبرو حکم کړے، په دے تولو باندے هغۀ عمل کړے۔

خلق ئے د آخرت د عذاب نه اویرول، د قرآن کریم ښکاره او واضح آیتونه به ئے لوستل، او د هغوئ مخے ته به ئے تمام الهی مقاصد بیانول، د الله تعالیٰ عظمت او لوئی به ئے بیانوله، او مخلوق ته به ئے د الله رب العالمین د تعظیم دعوت ورکولو، خپل ظاهری او باطنی تمام اعمال ئے د ګندګیو او خیرو نه بیخی پاك اوساتل، د بُتانو، ګناهونو او بدو اخلاقو نه همیشه دپاره لرے اوسیدلو۔

الله تعالیٰ نه پس هغۀ په خلقو باندے لوئے احسان اوکړو، او د دوئ نه ئے د هیڅ بدلے امید اونۀ ساتلو، او نبی ﷺ د خپل رب د رضا په خاطر تول ژوند د هغۀ بندګی اوکړه، ګناهونو نه ئے پرهیز وکړو، او د دعوت په لاره کښې چه ورته کوم تکلیف رسیدلے هغه ئے برداشت کړو، او په دے باب کښې ئے په اولو العزم انبیاؤ او رسولانو باندے اوچت والے حاصل کړو۔

| فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ ﴿٨﴾ فَذَٰلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ ﴿٩﴾ |
| --- |
| پس کله چه پوکے اوکړے شی په شپیلئ کښې۔ نو دا په دغه ورځ ورځ ده سخته۔ |
| عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ ﴿١٠﴾ |
| په کافرانو باندے نۀ ده آسانه۔ |

**تفسیر:** ربط:

پورتنی آیت سره ددے تعلق دادے چه الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ له د مکے د مشرکانو په

ضرر ورکولو باندے د صبر کولو نصیحت وکړو، او وے وئیل چه ډیره زر هغه هیبتناکه ورځ راتلونکے ده په کومه ورځ چه به دوئ ته د خپلو کړو بدله ورکړے شی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه کله شپیلئ اوپو کلے شی، تمام مخلوق د قبرونو نه ژوندی کړے شی او را اووځی، او دوئ میدانِ محشر طرفته اوشړلے شی، دا ورځ به د خپلو سختیو له وجے نه ډیره زیاته ترخه وی، او کافرانو لپاره به خو دا ورځ انتهائی ګرانه وی، ځکه چه د نجات امید به ئے بیخی ختم شوے وی، او د خپل هلاکت او بربادئ یقین به دوئ ته راغلے وی۔

**النَّاقُوْرِ:** شپیلئ ته وئیلے شی۔ د نَقُر نه دے آواز کولو ته وئیلے شی، نو ناقور آله د آواز کولو ده، دلته ترے شپیلئ مراد ده۔

**فَذٰلِكَ:** دا اشاره ده وخت د پو کلی کولو ته۔ او یومئذ بدل دے د ذٰلِكَ نه، یا ظرف دے د عَسِیْرٌ دپاره۔

**عَلَی الْکَافِرِیْنَ:** پدے کښې اشاره ده چه ورځ خو ډیره سخته ده لیکن مؤمنانو ته به په آرام آرام سره آسانیږی تردے چه د عرش سوری لاندے به شی۔

**غَیْرُ یَسِیْرٍ:** پدے قید لګولو کښې یوه فائده دا ده چه بعض څیزونه په یوه وجه سره سخت وی لیکن په بلے وجے سره آسان وی، نو پدے قید سره ئے دا وَهُم دفع کړو چه هغه ورځ په هره وجے سره سخته ده۔

دویمه فائده دا ده چه د هغه ورځے سختی په مؤمنانو باندے هم شته لکه چه د بعض نصوصو نه ثابته ده، لیکن د هغوی سختی به بیا بدله شی په آسانتیا سره، او د کافرانو سختی نهٔ بدلیږی په آسانتیا سره۔

| ذَرْنِیْ وَمَنْ خَلَقْتُ وَحِیْدًا ﴿۱۱﴾ وَجَعَلْتُ لَهٗ |
| --- |
| پریږده ما لره او هغه څوك چه پیدا کړیدے ما یواځے۔ او کرځولی دی ما هغهٔ لره |
| مَالًا مَّمْدُوْدًا ﴿۱۲﴾ وَبَنِیْنَ شُهُوْدًا ﴿۱۳﴾ وَمَهَّدْتُّ لَهٗ تَمْهِیْدًا ﴿۱۴﴾ |
| مال اُوږد۔ (ډیر)۔ او خامن حاضر۔ او تیار کړیدی ما هغهٔ لره (سامانونه) په تیارولو سره۔ (او فراخی مے ورکړے دهٔ لره فراخی ډیره) |

| ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ ﴿١٥﴾ كَلَّا إِنَّهُ |
|---|
| بيا دے طمع لري چه زهٔ به زيات ورکړم دهٔ ته. هيڅرې داسے نهٔ ده يقيناً دے |
| كَانَ لِآيَاتِنَا عَنِيدًا ﴿١٦﴾ سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا ﴿١٧﴾ |
| د آيتونو زمونږ سره ضد کونکے دے. زر دے چه ورله خيژوم دهٔ لره په لوړ غر. |

**تفسير**: اُوس وائي چه څوك صحيح دعوت كوي، نو د هغهٔ په مقابله كښې به خامخا يو تن ودريږي، چه داعي د هغه نه تنګ وي، نو الله تعالىٰ دلته دغه مقابله كونكي ته وعيدونه بيانوي. د مفسرينو اتفاق دے چه دا آيتونه د وليد بن مغيره په باره كښې نازل شوي، چه د هغهٔ د حق دين نه عناد او د الله او د هغهٔ د رسول مخالفت د حد نه تجاوز كړے. ليكن ټول كافران د هغهٔ پدے كارونو رضا وو، نو ځكه الله تعالىٰ پدے كښې ټول راګيروي. او پدے آيتونو كښې ددے كافرانو دوه توقے ذكر شويدي.

دا واقعه محمد بن اسحاقؒ په تفصيل سره بيان كړے، چه د هغے خلاصه داده چه وليد بن مغيره چه د ډير عمر سړے وو، قريشو ته اووئيل چه د حج موسم راروان دے، د عربو د قبائلو وفدونه به راځي، او د محمد د نبوت خبر دوئ ته رسيدلے دے. دے وجے نه تاسو ټول په يوه خبره متفق شئ چه هغه ددهٔ په باره كښې تاسو د عربو وفدونو سره كوئ. خلقو اووئيل چه مونږ به محمد ته كاهن (ترويتى) اووايو، نو هغهٔ موافقت ونهٔ كړو، خلقو اووئيل، مونږ به ورته ليونے اووايو، شاعر به اووايو او جادوګر به اووايو،

هغهٔ هيڅ رائے سره موافقت ونهٔ كړو، آخر هغهٔ خپله اووئيل چه ډيره مناسبه خبره داده چه مونږ دهٔ ته جادوګر ووايو، چه هغه د خپل جادو په ذريعه انسان د خپل پلار، د هغهٔ د ورور، د هغهٔ د ښځے، او د هغهٔ د خاندان والو ترمينځه جدا والے راولي.

نو ټول په دے رائے متفق شول، او د عربو په قبائلو كښې چه كومه قبيله به د دوئ خواته تيريدله نو هغے ته به ئے وئيلے چه د محمد خبره مهٔ آورئ، هغه جادوګر دے، هغه به په تاسو جادو وكړي. نو د وليد په باره كښې دا آيتونه نازل شول، او الله تعالىٰ ددهٔ داسے بدي بيان كړه چه د هيچا ئے داسے نهٔ ده بيان كړے.

معلومه شوه: چه څوك هم د حق سره عناد ساتي او ددے مخالفت كوي، الله به هغه په

دنیا کښې رسوا کوی، او په آخرت کښې به هغه په بدترین عذاب کښې اخته کوی۔

په بله طریقه سره دا روایت داسې بیانیږی چه رسول الله ﷺ په یو ځای کښې قرآن کریم لوستلو نو ولید ورغې او هغه ته کیناستو نو د هغهٔ نه متأثر شو او مشرکانو ته راغې او دا ئې ورته ووئیل چه [اِنِّیْ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا یَقُوْلُ قَوْلًا اِنَّ لَهٗ لَحَلَاوَةً وَاِنَّ عَلَیْهِ لَطَلَاوَةً وَاِنَّ اَعْلَاهُ لَمُثْمِرٌ وَاِنَّ اَسْفَلَهٗ لَمُغْدِقٌ وَاِنَّهٗ یَعْلُوْ وَلَا یُعْلٰی عَلَیْهِ وَاِنَّهٗ لَیَحْطِمُ مَا تَحْتَهٗ]

ما د محمد (ﷺ) نه داسې خبره واوریده چه هغه ډیره خوندوره او ښائسته ده۔ او چه د هغې لاندې باندې میوې دی او ډیر اُوچت کتاب وائی چه په نورو غالبه کیږی او په دهٔ باندې څوك غلبه نشی کولې او دهٔ لاندې چه څه راځی هغه ذره ذره کوی۔

ددې خبرو نه روستو کور ته لاړو۔ دا خبره ابوجهل ته ورسیده چه ولید هم صابی توب ته مائل شو۔ نو ابوجهل ووئیل چه زهٔ به دهٔ کافی شم، نو ولید ملاقات ته ورغې او ډیر غمجن وو، ولید ترې تپوس وکړو چه ولې غمجن ئې؟ هغه ورته ووئیل: چه ستا قوم وائی چه مونږ ولید له پیسې راجمع کوو، ځکه چه خلق وائی:

[مَالَ وَلِیْدٌ اِلٰی طَعَامِ ابْنِ اَبِیْ کَبْشَةَ وَابْنِ اَبِیْ قُحَافَةَ یُصِیْبُ مِنْ فَضْلِ طَعَامِهِمَا]

ولید د ابن ابی کبشه (رسول الله ﷺ) او د ابوبکر صدیق طعام ته مائل شویدې او د هغوی زیاتی طعام خوری۔

(پدې طریقه ئې په غیرت کښې راولی) نو هغه ووئیل چه محمد او د هغه ملګری خپله د لوږې نه مړهٔ شو ما له به څه راکړی، خلقو غلطه خبره کړیده۔

نو دهٔ ورته ووئیل چه ستا نه قوم نهٔ رضا کیږی ترڅو چه تهٔ رانشې او قوم ته تسلی ورنکړې نو هغه د مشرکانو یو مجلس ته راغې او هغوی ته ئې ووئیل چه تاسو محمد ته شاعر وایئ، قسم په الله که دا شاعر وی، زهٔ ستاسو نه په شعر باندې ډیر پوهیدونکې یم۔ تاسو دهٔ ته کاهن وایئ، دې خو کاهن هم نهٔ دې، دهٔ ته جادوګر وایئ هغه هم نهٔ دې۔ لیونې ورته هم نشئ وئیلې، دا خو ډیر هوښیار دې، هغوی ورته ووئیل چه تهٔ دهٔ په باره کښې څه وئیل غواړې؟ نو هغه ووئیل چه زهٔ به فکر وکړم بیا ئې ووئیل چه دا ما ته جادوګر ښکاره کیږی ځکه چه په جادو کښې هم اثر وی او دهٔ په کلام کښې هم اثر دې، پدې وجه دهٔ ته به جادوګر وایو، په دې به اتفاق وکړو دې دپاره چه په عامو عربو کښې ونهٔ شرمیږو چه روغ سړی ته لیونې وائی۔ خلقو ته به کم عقل ښکاره شو۔

(الدر المنثور في التفسير بالمأثور وعبد الرزاق وغيره بالفاظ مختلفة)

الله تعالیٰ وفرمایل : اے زما نبی ! کوم کس چه ما د خپلے مور په خیټه کښں تنها پیدا کړو، نهٔ هغهٔ سره مال وو او نهٔ اولاد، هغه ماته پریده، هغهٔ نه ستا بدلے اخستلو لپاره زهٔ کافی یم۔ او کله چه پیدا شو نو ما د هغهٔ پرورش وکړو، هغهٔ له مے ډیر مال ورکړو، او نارینه اولاد مے ورکړل چه هغویٔ هر وخت هغهٔ سره ناست وی، د هغویٔ په لیدو خوشحالیږی، په هغویٔ باندے خپل ضرورتونه پوره کوی، او په خپلو کارونو کښں ترے مدد اخلی۔ ما هغهٔ لپاره تمام دنیوی اسباب تیار کړل، تردے چه د هغهٔ تمام ضرورتونه او خواهشات پوره شول۔

وَحِيْدًا: هر یو تن یواځے پیدا شویدے لیکن وحید د ولید لقب وو ځکه چه ددهٔ پلار نهٔ وو معلوم ځکه چه دے دعی وو۔ او وحید دے ته هم وائی چه [اَلَّذِیْ لَا مَالَ وَلَا وَلَدَ لَهٗ] یعنی د مور په خیټه کښں داسے یواځے پیدا چه هیڅ مال او اولاد ورسره نهٔ وو۔ او روستو ورته الله مالونه او لاد ورکړل، او بیا په تکبر کښں راغے او د خپل خالق مخالفتونه ئے شروع کړل۔

❁ بعض وائی : وحیدا : دا حال دے د ذَرْنِیْ د یاء ضمیر نه۔ او وحید صفت د الله تعالیٰ دے، او مطلب دادے چه دهٔ ته ما یواځے پریده، صرف هم زهٔ ددهٔ د هلاکت دپاره کافی یم۔ (مقاتلؒ)

مَالًا مَّمْدُوْدًا : ولید په ډیر مال باندے مشهور وو، هر قسمه مال ورسره وو، فصلونه، څاروی، (لنگے) او تجارتونه۔ بعض وائی : د ولید په طائف کښں داسے باغ وو چه د هغے میوه به اوړی، ژمی نهٔ منقطع کیده، او ددهٔ ډیر غلامان او وینځے هم وے۔

وَبَنِيْنَ شُهُوْدًا: یعنی ځامن ئے ورسره په مکه کښں حاضر دی، سفر ترے نهٔ کوی، او د رزق د طلب کولو دپاره د هغهٔ نه نهٔ جدا کیږی ځکه چه مال ئے زیات دے۔

یا شهودا : معنیٰ ده : د هغه سره محفلونو او مجلسونو او مجمعو ته حاضریږی او د هغهٔ خدمت کوی۔

د مجاهدؒ وینا ده چه د ولید لس ځامن وو، د هغویٔ نه خالد، عماره او هشام اسلام قبول کړے وو۔ حافظ ابن حجرؒ په (الاصابه) کښں لیکلی چه صحیح داده چه خالد او هشام اسلام قبول کړے، او عماره د کفر په حالت کښں مړ وو۔

او مقاتلؒ وائی چه ولید بن الولید هم ایمان راوړے وو۔
وَمَهَّدتُّ لَهٗ تَمْهِيدًا : اَیْ بَسَطْتُ لَهٗ فِی الْعَيْشِ الرَّغِيْدِ وَطُوْلِ الْعُمُرِ وَالْجَاهِ الْعَرِيْضِ وَالرِّيَاسَةِ فِیْ قُرَيْشٍ حَتّٰی كَانَ يُدْعٰی رَيْحَانَةَ قُرَيْشٍ وَهُوَ الْكَمَالُ عِنْدَ اَهْلِ الدُّنْيَا۔
یعنی ما هغه دپاره فراخی وکړه په مزیدار ژوند او اُوږد عمر او غټه مرتبه او مشریٔ کښې تردے چه خلقو به ورته د قریشو کشمالے وئیلو چه دا د دنیا والو په نیز کمال دے۔
(فتح البیان)
ثُمَّ يَطْمَعُ أَنْ أَزِيدَ : یعنی هغهٔ ددے تمامو نعمتونو سره دا دعویٰ هم کوی چه زهٔ به هغهٔ له د آخرت نعمتونه هم ورکوم۔ (حسنؒ)
یا په دنیا کښې به نور نعمتونه هم ورکړم۔ یعنی دے ددے ډیر مال سره د نور مال حاصلولو هم کوشش کښې لګیا دے ځکه چه حرص ئے زیات دے۔
یا مطلب دا دے چه روستو د تکذیب د قرآن کریم او د رسول امین نه او پس د شرك نه د الله سره طمع د زیاتوالی لری حال دا چه په ناشکریٔ سره نعمتونه کمیږی۔
مفسرین لیکی: چه ددے آیت د نازلیدو نه روستو د ولید مال او اولاد په کمیدو شو تردے چه هغه فقیر هلاك شو۔ (فتح البیان)
كَلَّا: یعنی هیڅکله داسے نشی کیدے، ددهٔ دا خواهش به هیڅ کله پوره نشی، ځکه چه هغهٔ زمونږ د آیتونو په رشتین والی باندے د یقین کولو نه پس د هغے انکار اوکړو، او د حق پیژندلو نه پس ئے هغه قبول نهٔ کړو۔ زهٔ به دا په بدترین عذاب باندے اخته کړم۔
عَنِيدًا: صیغه د مبالغے ده، د عناد نه دے، یعنی عناد (ضد) کول د هغهٔ کسب او عادت ګرزیدلے دے۔ عنید هغے ته وائی چه سَره د علم نه انکار کوی، او د حق نه مخ اړوی۔
سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا: [اَیْ سَاُكَلِّفُهٗ مَشَقَّةً مِّنَ الْعَذَابِ لَا رَاحَةَ فِيْهَا]
یعنی زر دے چه دے به په مشقت والا عذاب باندے اخته کړم چه په هغے کښې به هیڅ راحت نهٔ وی۔
دا د اِرْهاق نه اخستے شوے دے، او ارهاق اخته کول د انسان دی په یو کار باندے په مشقت سره۔ او صعود مشقت د داسے عذاب چه هیڅ راحت ورسره نهٔ وی۔
۲- امام احمدؒ او ترمذیؒ د ابو سعید خدری ﷺ نه یو حدیث روایت کړے
[اَلصَّعُوْدُ جَبَلٌ مِّنْ نَّارٍ يَتَصَعَّدُ فِيْهِ الْكَافِرُ سَبْعِيْنَ خَرِيْفًا ثُمَّ يَهْوِیْ بِهٖ كَذٰلِكَ فِيْهِ اَبَدًا]

چه صعود د اُور یو غر دے چه کافر ته به په هغهٔ باندے اویا کاله خیژی، کله چه د ختلو کوشش کوی راغورزیږی به، او هغه به همیشه په همدے حال کښ وی۔ (واسناده ضعیف فیه ابن لهیعة ودراج ابو السمح عن ابی الهیثم وقال ابن کثیر: فیه غرابة ونکارة آه۔ ورواه الطبرانی فی الاوسط بغیر هذا اللفظ وفیه عطیة ضعیف، وقد اخرجه جماعة من قول ابی سعید)

| إِنَّهُ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿۱۸﴾ فَقُتِلَ كَيْفَ |
|---|
| یقیناً دهٔ فکر اُوکړو او اندازه ئے اُولګوله۔ نو هلاك دِے شی څنګه |
| قَدَّرَ ﴿۱۹﴾ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿۲۰﴾ ثُمَّ نَظَرَ ﴿۲۱﴾ |
| اندازه ئے اُولګوله۔ بیا دِے هلاك شی څنګه ئے اندازه اُولګوله۔ بیا ئے اُوکتل۔ |
| ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿۲۲﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ |
| بیا ئے تندے تریو کړو او مخ ئے راګونجے کړو۔(یا رنګ ئے بدل شو) بیا ئے شا کړه |
| وَاسْتَكْبَرَ ﴿۲۳﴾ فَقَالَ إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ﴿۲۴﴾ |
| او لوئی ئے اُوکړه۔ نو وے وئیل نهٔ دے دا قرآن مګر جادو دے چه نقل کولے شی۔ |
| إِنْ هَٰذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ ﴿۲۵﴾ |
| نهٔ دے دا قرآن مګر وینا د بنده ده۔ |

**تفسیر**: إِنَّهُ فَكَّرَ: دا د هغه عناد بیان دے چه په (عَنِيدًا) کښ ذکر شو۔ او پدے کښ د ولید بن مغیره دپاره د پورتنی عذاب سبب بیان شوے۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه دهٔ ډیر غور او فکر اوکړو، او په خپل زړهٔ کښ ئے دا خبره فیصله کړه کومه چه دهٔ د نبی کریم ﷺ په ذات باندے د تور لګولو، او د قرآن کریم د آیتونو د باطلولو لپاره د قریشو په مخکښ پیش کړه۔

الله دِے په دهٔ لعنت وکړی، دهٔ څنګه دروغ ترلو له په خپل زړهٔ کښ ځائے ورکړو، او هغه خبره ئے جوړه کړه کومه چه خپله ددهٔ ضمیر قبوله نهٔ کړه، د الله لعنت دِے وی په دهٔ باندے، دهٔ څنګه دداسے دروغ ترلو زړورتیا اوکړه۔

بیا دے ملعون ددے دروغژنے خبرے په باره کښ غور اوکړو او ښهٔ اطمینان ئے اوکړو چه

د قریشو خلق او د عربو نور مشرکان به دا اومني۔
بیا دے رذیل د کبر او غرور او د رسول الله ﷺ او قرآن کریم سره د بغض او عناد په سبب خپل تندے تریو کړو، او ددهٔ په مخ باندے د حسد او کینے توروالے راخور شو، بیا دهٔ د حق نه مخ واړولو، او په کبر کښ راغے، او په حق قرآن باندے ئے د ایمان راوړلو نه انکار اوکړو، او وے وئیل چه دا قرآن د جادو نه سوئ بل هیڅ شے نهٔ دے چه دا محمد د نورو نه زده کړے دے، دا د الله تعالیٰ کلام نهٔ دے، بلکه د کوم انسان جوړ کړے شوے کلام دے۔
فَكَّرَ: یعني دهٔ په قرآن او نبي ﷺ باندے د طعن (تور) لګولو دپاره سوچ وکړو۔
وَقَدَّرَ: یعني د طعن دپاره ئے په زړه کښ څه منصوبه جوړه کړه۔ نو فکر ترتیب د مقدماتو د کلام دے، او تقدیر په هغے باندے نتیجه مرتب کولو دپاره کلام جوړول دي۔
فَقُتِلَ: یعني هلاك دِے شي، او همدغسے وشوه چه الله لعنتي کړو، او د خپلو رحمتونو نه ئے جدا کړو۔
كَيْفَ: دا خلقو ته د تعجب ورکولو دپاره دے۔ یعني تاسو تعجب وکړئ چه دهٔ څنګه اندازے لګولے۔
ثُمَّ قُتِلَ: پدے کښ تکرار او کثرت د لعنت ته اشاره ده۔ الله تعالیٰ ورته ډیر په غضب دے۔ یا اول اشاره ده لعنت او هلاکت د دنیا ته، او دویم کښ اشاره ده لعنت او هلاکت د برزخ او قیامت ته۔ (فتح البیان)
او قَدَّرَ ئے دوباره ذکر کړو څکه چه دهٔ د طعن لګولو دپاره دوه قسمه الفاظ جوړ کړل، یو دا چه دا سحر دے، او دویم دا چه دا قول الْبَشَر دے۔
ثُمَّ نَظَرَ: ددے نظر نه مراد دا چه په وخت د فکر کولو کښ ئے سترګے پټے کړے وے، یا ئے لاندے نظر کولو نو روستو د فکر نه ئے سترګے اُوغړولے او خلقو ته ئے وکتل۔
یا د نظر نه مراد فکر کول دي په هغه طعنونو کښ چه په زړه کښ ئے جوړے کړے وے چه کوم یو تور به د قرآن کریم سره مناسب وي۔
یا نَظَرَ فِيْ قَوْلِهٖ۔ یعني په خپله خبره کښ ئے وکتل چه دا به خلق قبوله کړي۔ یا نَظَرَ فِيْمَا يَرُدُّ بِهِ الْقُرْآنَ۔ یعني وے کتل چه قرآن په کومه خبره رد کړي۔
عَبَسَ: بیا ئے تندے تریے وکړو پدے وجه چه د فکر نه روستو په پوره نتیجه ونهٔ رسیدو نو زړه ئے تنګ شو، او تندے ئے تریو شو، او د سترګو په مینځ کښ ئے په تندي باندے

چودونه پیدا شو، دے ته عَبَسَ وائی۔
او عبس په اصل کښې هغه پچے او خوشیان وی چه د څاروی په لکئ پورے اُوچ شوی وی۔ یعنی خپله ورته پته ولګیده چه زما دا طعن د قرآن سره موافق نهٔ دے خو څه جوړول پکار دی۔
او کله عَبَس لفظ په تندی باندے صرف د خفګان ښکاره کیدو دپاره استعمالیږی۔ لکه سورة عبس (۱) اول آیت کښې راغلے دے۔
یا عَبَسَ فِیْ وَجْهِ النَّبِیِّ اَوِ الْمُؤْمِنِیْنَ۔ یعنی تندے ئے تریو کړو په مخ د نبی ﷺ او مؤمنانو کښې د وجه د حسد او کینے او د دشمنئ نه۔
وَبَسَرَ: اَیْ کَلَحَ وَجْهَهٗ وَتَغَیَّرَ وَاسْوَدَّ۔ یعنی مخ ئے بد شکله شو او بدل شو، تور شو۔
بُسُوْر دے ته وائی چه د تندی د تریو ولو نه روستو چه په مخ باندے کوم خفګان راشی او مخ خړ شی او بدل شی۔
بعض وائی: عبوس د خبرو کولو نه روستو وی، او بُسُوْر د خبرو کولو نه مخکښې وی او دواړه په مخ کښې وی۔ دلته اول قول غوره دے۔
او پدے کښې ددهٔ پریشانئ ته اشاره ده۔ چه د خبرو نه مخکښې هم مطمئن نهٔ وو او روستو هم مطمئن نهٔ وو۔
ثُمَّ اَدْبَرَ وَاسْتَکْبَرَ: اَیْ اَدْبَرَ عَنِ الطَّاعَةِ وَاسْتَکْبَرَ عَنِ الْحَقِّ۔ یعنی د طاعت نه ئے شا وګرزوله او د حق نه ئے ځان لوی وګنړلو۔
او په (ثُمَّ) کښې اشاره ده چه د طعن کولو دپاره ورته هیڅ ثبوت ملاؤ نشو، او تنګ شو نو پکار دا وه چه تصدیق ئے کړے وے، لیکن د عناد د وجه نه ئے د حق نه ودانګل۔ او دا کار د جهل د وجه نه نهٔ وو بلکه د تکبر او د غرور د وجه نه وو۔
استکبر کښې سین دلالت کوی چه دے د لوئی مستحق نهٔ وو خو په زوره ئے لوئی کوله۔
فَقَالَ: دا د فَکَّرَ او قَدَّرَ تفصیل دے۔ یعنی د فکر او اندازے دا نتیجه ئے راویسته۔
اِنْ هٰذَا: یعنی دهٔ حصر وکړو چه نور تورونه لګول په دهٔ باندے غلط دی صرف همدا یو تور ورسره لګیږی چه دا جادو دے او د انسان خبرے دی۔
سِحْرٌ یُّؤْثَرُ: یعنی دا داسے جادو دے چه د پخوانو ساحرانو نه نقل کړے شوے۔ یعنی

مجرّب جادو دے۔

إِنْ هَذَا إِلَّا قَوْلُ الْبَشَرِ : **سوال** : په دواړو جملو کښې حصر دے او حال دا چه حصر په یو کښې صحیح وی، یا به سحر وی یا به قول البشر وی؟

۱- **جواب** : دا کلام د منکر دے، او دا منکر په دے قولینو کښې مضطرب (پریشانه گډوډ) دے، کله یو طعن لگوی او کله بل۔

۲- **جواب** : یا اول حصر په نسبت د شعر او کهانت سره وو، او دا حصر په نسبت د قول د الله تعالیٰ سره دے۔ د اول مطلب دا وو چه دا شعر او کهانت نهٔ دے بلکه صرف جادو دے او د دویم مطلب دا دے چه دا صرف قول د بشر دے یعنی د الله تعالیٰ کلام نهٔ دے۔

او د ولید ددے وینا سره د هغه متکلمینو خبره هم زیاته مشابه ده چه هغوی وائی :

قرآن د الله تعالیٰ لفظی کلام نهٔ دے بلکه دا یا جبریل ﷺ وئیلے دے، یا محمد ﷺ جوړ کړیدے، او الله تعالیٰ پرے راضی دے، او دے موجوده قرآن ته د الله تعالیٰ کلام لفظی نهٔ وائی بلکه دیته کلام نفسی وائی۔

یعنی دا دال (دلالت کونکے) دے په کلام نفسی باندے، او عین (حقیقةً) د الله تعالیٰ کلام نهٔ دے۔ اگرکه دوی به پدے خبره کافران نهٔ وی ځکه چه جاهلان دی لیکن خبره ئے ډیره خطرناکه ده۔

| سَأُصْلِيهِ سَقَرَ ﴿٢٦﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا سَقَرُ ﴿٢٧﴾ |
|---|
| زر دے چه داخل به کړو دهٔ لره گرم اُور ته۔ او ته څه پوهه کړے ئے چه څه دے سقر۔ |
| لَا تُبْقِي وَلَا تَذَرُ ﴿٢٨﴾ لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ ﴿٢٩﴾ |
| نهٔ پریږدی غوښه او نهٔ پریدی هډوکے۔ سوزونکے دے څرمنے لره۔ (سیزونکے دے |
| عَلَيْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ ﴿٣٠﴾ وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ |
| بندگانو لره)۔ پدے باندے نورلس (ملائك) دی۔ او نهٔ دی گرځولی مونږ خزانچیان |
| النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ إِلَّا فِتْنَةً |
| د اُور مگر ملائك او نهٔ دے گرځولے مونږ شمار د دوی مگر امتحان |

| لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ |
|---|
| دپاره د هغه کسانو چه کافران دی، دے دپاره چه یقین اُوکړی هغه کسان |
| أُوْتُوا الْكِتَابَ وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا إِيْمَاناً |
| چه هغوی له کتاب ورکړے شویدے او زیات شی ایمان والا په ایمان کښ |
| وَلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ أُوْتُوا الْكِتَابَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ |
| او شک اُونکړی هغه کسان چه ورکړے شویدے کتاب او مؤمنان |
| وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ |
| او دے دپاره چه اُووائی هغه کسان چه په زړونو د هغوی کښ مرض (د نفاق) دے |
| وَالْكَافِرُوْنَ مَاذَا أَرَادَ اللهُ بِهٰذَا مَثَلاً كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللهُ مَنْ |
| او کافران چه څه اراده کړیده الله په دے بیان سره، دغسے گمراه کوی الله تعالیٰ چا له |
| يَّشَآءُ وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ |
| چه اُوغواړی او هدایت کوی چا له چه اُوغواړی او نۀ پوهیږی په لښکرو د رب ستا |
| إِلَّا هُوَ وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرٰى لِلْبَشَرِ ﴿۳۱﴾ |
| مگر صرف هغه، او نۀ دی دا (آیتونه) مگر نصیحت دپاره د انسانانو۔ |

**تفسیر** : چونکه الله تعالیٰ او د هغۀ د کلام په خلاف د ولید بن مغیره خبره ډیر زیات دروغ ترل وو، ځکه چه الله تعالیٰ په خپل کلام سره خلق جنت طرفته دعوت کوی، او دے جهنم ته دعوت ورکوی، نو د حق په خلاف ئے ډیر لوی بربریت وکړو۔

دے وجے نه الله تعالیٰ ددۀ په باره کښ دلته خپل نبی ﷺ ته خبر ورکړو چه دا به د قیامت په ورځ د ډیر سخت عذاب حقدار وی، زۀ به دے په جهنم کښ اوسوزوم۔

او اے زما نبی ! تاته څۀ معلومه ده چه جهنم چاته وائی، دا خو یو داسے خطرناك او هیبتناك اُور دے چه نۀ به غوښه پریدی اونۀ به پلے او هډوکی، د جهنمی هر یو اندام به اوسوزوی، او ایره به ترے جوړه کړی او ځرمنه به ئے توره جوړه کړی۔

سَاُصْلِیْهِ: دا د صَلْيٍ نه دے، ددے معنیٰ ده: ((پوره داخلول دپاره د سوزولو)).

لَا تُبْقِیْ وَلَا تَذَرُ: ۱- لَاتُبْقِیْ مَنْ فِیْهَا حَیًّا وَّلَا تَذَرُهٗ مَیِّتًا.

یعنی نۀ پریدی پدے کښ ژوندے، او نۀ ئے پریدی په مړینه. یعنی ژوندے مرګ ته نزدے کوی او مړ کوی ئے هم نۀ چه ختم ئے کړی بلکه بیرته ئے ژوندے کوی. (عطاء)

۲- لَا تُبْقِیْ حَتّٰی تَفْنِیَهُمْ وَاِذَا اُعِیْدُوْا فَلَا تَذَرُهُمْ.

یعنی نۀ به ئے پریدی تردے چه ختم به ئے کړی او کله چه دوباره راژوندی کړے شی، نو بیا به ئے هم نۀ پریدی بلکه د مخکښ په شان به بیا هم عذاب ورکولے شی. (معالم التنزیل للبغوی)

۳- لَا تُبْقِیْ لَحْمًا وَّلَا تَذَرُ عَظْمًا. (سدیؒ) یعنی نۀ غوښه پریدی او نۀ هډوکے.

لَوَّاحَةٌ لِّلْبَشَرِ: ددے هم ډیرے معانی دی:

(۱) دا د لَاحَ نه دے، متغیر کولو ته وئیلے شی. یعنی داسے سوزول چه شکل او څرمنه به ورله بدله کړی. بشر نه مراد څرمنه ده.

(۲) یا انسانان مراد دی او لَوَّاحَةٌ نه مراد (مُحْرِقَةٌ) سوزول دی. (ابن عباس رضی الله عنه)

یعنی کافرانو لره سوزونکے دے.

(۳)- یا د لَاحَ نه دے په معنیٰ د ظهور (ښکاره کیدو) سره، یعنی داسے به ئے وسوزوی چه څرمنه به ورله راښکاره کړی.

(٤) یا د بشر نه مراد انسانان دی. یعنی دا جهنم راښکاره کیدونکے دے انسانانو ته (حسن بصریؒ) لکه ﴿ وَبُرِّزَتِ الْجَحِیْمُ لِمَنْ یَّرٰی ﴾ اول قول د جمهورو مفسرینو دے.

عَلَیْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ: په جهنم باندے نولس ملائك مقرر دی.

ابن جریرؒ او ابن مردویهؒ د ابن عباس رضی الله عنه نه نقل کړی دی چه کله ابو جهل [عَلَیْهَا تِسْعَةَ عَشَرَ] واوریدۀ، یعنی د جهنم اولس داروغه ګان دی، نو قریشو ته ئے اووئیل: ستاسو میندے دے په تاسو باندے اوژاړی، محمد تاسو له خبر درکوی چه د جهنم داروغه ګان (څوکیداران) نولس دی، حالانکه ستاسو شماره خو ډیره زیاته ده. آیا په تاسو کښ به هر لس کسان د جهنم یو څوکیدار رالاندے نۀ کړی.

او په بل روایت کښ دی: هر کله چه دا خبره ابو جهل واوریده نو وے وئیل:

[مَا لِمُحَمَّدٍ مِنَ الْاَعْوَانِ اِلَّا تِسْعَةَ عَشَرَ، یُخَوِّفُکُمْ مُحَمَّدٌ بِتِسْعَةَ عَشَرَ وَاَنْتُمُ الدُّهْمُ، اَفَیَعْجِزُ

كُلُّ مِائَةِ رَجُلٍ مِنْكُمْ أَنْ يَبْطِشُوْا بِوَاحِدٍ مِنْهُمْ ثُمَّ يَخْرُجُوْا مِنَ النَّارِ]۔

د محمد (ﷺ) صرف نولس مددگاران دی، تاسو محمد (ﷺ) په نولس کسانو یروی، او حال دا چه تاسو خو پهلوانان یئ، آیا نو په تاسو کښې هر سل کسان ددے نه کمزوری دی چه د هغوی نه یو تن سره مقابله وکړی، او بیا د اُور نه راوځی۔ (د الله د خبرو پورے ئے توقے شروع کړے)۔

او ابن مردویهٔ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړی دی چه (پدے کښې) ابو الاشد (چه دا د بنو جُمَح نه یو پهلوان وو) اووئیل چه تاسو د جهنم د څوکیدارانو معامله ماته پریدئ، زهٔ به ستاسو د ټولو د طرفه د هغوئ مقابله کووم۔

او په یو روایت کښې دی چه دهٔ ووئیل :

[يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ ! إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ فَأَنَا أَمْشِيْ بَيْنَ أَيْدِيْكُمْ فَأَدْفَعُ عَشَرَةً بِمَنْكِبِيَ الْأَيْمَنِ وَتِسْعَةً بِمَنْكِبِيَ الْأَيْسَرِ وَنَمْضِيْ نَدْخُلُ الْجَنَّةَ]

اے د قریشو ډلے ! کله چه د قیامت ورځ شی نو زهٔ به ستاسو مخکښې روان یم نو لس کسان به په خپله ښئ اُوګه سره دیکه کړم او نهه کسان به په ګسه اُوګه سره، او بیا روان شو جنت ته به ننوزو۔

او په یو روایت کښې دی : زهٔ به لس کسان په شا کړم او اوه کسان به په سینه راپورته کړم نو دوه کسانو مقابله خو وکړئ۔ ددے وجه نه دا په ابو الاشدین سره یاد کړے شو او دهٔ کنیه ابو الاعور وه۔ (تفسیر مقاتل بن سلیمانؒ)

نو الله تعالیٰ ﴿ وَمَا جَعَلْنَا أَصْحَابَ النَّارِ إِلَّا مَلَائِكَةً ﴾ نازل کړو، او وے ښودل چه د چا په ذمه چه د جهنم نګرانی او په دے کښې داخلیدونکو خلقو له عذاب ورکول دی، هغه ټول ملائک دی، په هغوئ باندے څوك زوروَر کیدے شی، هغه خو د الله پولیس دی چه کافران په هغوئ باندے د غالبه کیدو خبرے کوی۔

إِلَّا مَلَائِكَةً : الله تعالیٰ د جهنم څوکیداران ملائك مقرر کړی دی، یعنی دائے د انسانانو او پیریانو نه نهٔ دی جوړ کړی، چه هسے نهٔ د خپلو هَم جنسو لپاره د دوئ په زړونو کښې چرته رحم پیدا شی۔

دویم دا چه د الله په مخلوقاتو کښې ملائك د الله په حق اداء کولو کښې زیاته جلتی کوی، او د هغهٔ په نافرمانئ باندے غصه کیږی، او ډیر زیات قوی او سخته نیوکه

کونکی وی، دے وجے نه الله تعالیٰ دویٔ د جهنم ذمه واران جوړ کړی دی۔

وَمَا جَعَلْنَا عِدَّتَهُمْ : یعنی د جهنم د خزانچیانو نولس شماره د کفارو دپاره مونږ آزمائش گرخولے دے۔ دے دپاره چه کوم خلق دے پورے خاندی، په هغویٔ د الله تعالیٰ غضب نازل شی، او د هغویٔ عذاب څو چنده زیات شی۔

او د هغوی دپاره امتحان دا وو چه هغوی دا اعتراض وکړو چه نولس ولے شو، زیات او کم ولے نشو۔ دارنگه دا هم ورله امتحان شو چه نولس خو کم دی مونږه ئے وهلے شو، او ځانونه ترے خلاصولے شو۔

دارنگه دا ئے وویل چه کافران خو ډیر زیات دی، نو نولس ملائک به هغوی لره څنگه جهنم ته واچوی، او په هغے کښې به ئے څنگه راگیر کړی۔ مگر دوی ددے نه ړانده دی چه یو جبریل ؑ پوره کلی او غرونه پورته کولے شی، الله تعالیٰ ورته قدرت ورکړیدے۔

فِتْنَةً: ددے بله معنیٰ د گمراهئ ده۔ یعنی ددے اعتراضونو په سبب د دوی گمراهی نوره هم سیوا شوه۔

او ددے عدد په حکمة کښې مفسرینو ډیرے اُوږدے خبرے کړیدی خو څه خاص ایمانی او علمی فائده پکښې نۀ ښکاره کیږی پدے وجه ترے مونږ اعراض وکړو، صحیح دا ده چه ددے خاصِ عددِ حکمة الله تعالیٰ ته معلوم دے۔ کما قال الرازیؒ۔

لِيَسْتَيْقِنَ الَّذِيْنَ أُوتُوا الْكِتَابَ : یعنی ددے شمارے ذکرکولو نه مقصد دا هم دے چه یهود او نصاریٰ د نبی کریم ﷺ او د قرآن کریم په رشتین والی باندے یقین وکړی، ځکه چه په جهنم باندے د مقرر شوو ملائکو همدا شماره په تورات او انجیل کښې هم ذکر شوے۔ [لِمُوَافَقَةِ الْقُرْآنِ كِتَابَهُمْ] ځکه چه قرآن د هغوی د کتابونو سره موافق شو۔

وَيَزْدَادَ الَّذِيْنَ آمَنُوا : دارنگه دا هم مقصد دے چه کله د امتِ محمدیه مومنانو ته معلومه شی چه د قرآن کریم همدا خبره په تورات او انجیل کښې هم موجوده ده، نو د دویٔ په ایمان کښې به اضافه اُوشی۔ ځکه چه اهل کتابو هم دا خبره تسلیم کړه۔

یا د اهل کتابونه مؤمنان چه د مخکښې نه د هغوی یقین او اقرار وو په صدق د قرآن او رسول باندے او دا ایمان دے او ددے عدد په آوریدو سره د دوی ایمان نور زیات شو۔

یعنی کمیةً ایمان ئے هم زیات شو، ځکه چه اُوسه پورے دوی ددے نه خبر نۀ وو چه په جهنم باندے څومره ملائک مقرر دی۔

او دا ښکاره دلیل دے چه په ایمان کښې زیاتے راتلے شی لکه چه دا د ټولو محدثینو مسلك دے۔

**وَلَا يَرْتَابَ الَّذِيْنَ:** د زیات تاکید په توګه الله تعالیٰ وفرمایل چه ددے نه مقصد دا دے چه د اهلِ کتابو په زړونو کښې د اسلام د رشتین والی په باره کښې هیڅ شبهه پاتے نشیٰ، ځکه همدا خبره د دویٔ په کتابونو کښې هم موجوده ده، او دے دپاره چه د مومنانو ایمان زیات شی۔

**وَالْمُؤْمِنُوْنَ:** ددے نه مراد ددے امت مؤمنان دی۔ او مخکښې د کتابیانو مؤمنان مزاد دی۔

**وَلِيَقُوْلَ الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ:** او د ملائکو شماره نولس ښودلو نه مقصد دا هم دے چه د عربو کافران او په راتلونکی وخت کښې د مدینے منورے منافقان د نفاق او کفر په کندو کښې سرګردانه پاتے شی، او الله تعالیٰ او قرآن کریم پورے توقے کوونکی پاتے شی چه ددے عجیب او غریب مثال په ذریعه الله تعالیٰ څهٔ ښودل غوښتلی دی؟

دا سورت مکی دے خو الله تعالیٰ د مخکښې نه خبر ورکړو چه روستو به منافقان پیدا کیږی، او هغوی به دا اعتراض کوی، نو دا د رسول الله ﷺ معجزه شوه او د قرآن کریم د حقانیت دلیل شو۔

یا د مرض نه مراد شك دے چه هغه کافرانو ته هم راتللے شی۔

حسین بن الفضلؒ وائی: په مکه کښې نفاق نهٔ وو نو ددے نه مراد مخالفت دے۔

(فتح البیان)

**وَالْكَافِرُوْنَ:** ددے نه مراد د مکے کافران یا نور عرب کافران دی۔

**بِهٰذَا:** یعنی پدے ناشنا شمار سره۔

**مَثَلًا:** د مثل نه مراد بیان او خبر دے۔ کما قال اللیثؒ۔

**كَذٰلِكَ:** الله تعالیٰ د دویٔ د کفر او ګمراهیٔ جواب ورکوی فرمائی چه هغه دغسے چاله چه غواړی ګمراه کوی ئے، او چاته چه غواړی هدایت کوی۔ یعنی تاسو له نهٔ دی پکار چه اعتراض وکړیٔ بلکه د الله تعالیٰ خبرے ته تسلیم شیٔ دے دپاره چه هغه درته هدایت وکړی۔ د خپل ځان غم وکړیٔ۔

**وَمَا يَعْلَمُ جُنُوْدَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ:** (۱) یعنی دا مهٔ وایه چه د الله سره ملائك کم دی ځکه

ئې نولس مقرر کړل بلکه اې زما نبي! ستا د رب د لښکرو شماره (که هغه ملائك وي اوکه غير ملائك) د هغۀ نه سوئ بل هيڅوك نۀ پيژني۔

د الله تعالیٰ دومره ملائك دي چه جبريل ﷺ ته هم نۀ دي معلوم، حال دا چه هغه ئې مشر دے۔ په يو روايت کښ دي چه موسیٰ ﷺ الله تعالیٰ ته وفرمايل چه تا سره بره په آسمان کښ څوك دي؟ وے فرمايل: زما ملائك۔ وے فرمايل: دا څومره دي؟ وے فرمايل: اِثْنَا عَشَرَ سِبْطًا۔ دولس خاندانونه دي۔ (وَکَمْ عَدَدُ کُلِّ سِبْطٍ؟) د هر سبط څومره شمار دے؟ وے فرمايل: عَدَدَ التُّرَابِ۔ د خاورو د ذراتو په اندازه۔

(ابو الشيخ فی العظمة رقم: ۱۸ باسناد مقطوع)

په حديث د معراج کښ دي: چه بيت المعمور ته هره ورځ اويا زره ملائك داخليږي او طواف کوي او تر قيامته پورے ئې بيرته نمبر نۀ راځي، د الله په مخلوقاتو کښ زيات مخلوق ملائك دي۔ آسمانونه ترے ډك دي، تردے چه هغه د ګنړوالی نه چغيږي، او په زمکه کښ هم ډير شے ملائك دي۔ دا ټول کائنات الله تعالیٰ د هغوی په واسطه چلوي۔

(۲) بل مطلب دا دے چه د جهنم ذمه دار مشران ملائك نولس دي، او د هغوئ سره کار کونکي نور ملائك بے شماره دي چه د هغے شماره د الله تعالیٰ نه سوئ بل چاته معلومه نۀ ده۔ نو دوي د انسانانو د شمارے نه بهر دي۔

وَمَا هِيَ إِلَّا ذِكْرَىٰ لِلْبَشَرِ: يعني دا سقر او د هغے د خزانچيانو شماره خو صرف د نصيحت د انسانانو دپاره دے، دے دپاره چه دوي عبرت حاصل کړي، او د جهنم د عذاب نه اُوبريږي۔

| كَلَّا وَالْقَمَرِ ﴿٣٢﴾ وَاللَّيْلِ إِذْ أَدْبَرَ ﴿٣٣﴾ وَالصُّبْحِ |
|---|
| هیچرې داسې نۀ دہ، قسم دې په سپوږمۍ۔ او په شپه کله چه شا راواړوی۔ او په صبا |
| إِذَا أَسْفَرَ ﴿٣٤﴾ إِنَّهَا لَإِحْدَى الْكُبَرِ ﴿٣٥﴾ نَذِيرًا |
| کله چه روښانه شی۔ یقیناً دا (جهنم) یو دې د لویو مصیبتونو نه۔ یره ورکونکې دې |
| لِّلْبَشَرِ ﴿٣٦﴾ لِمَنْ شَاءَ مِنْكُمْ أَنْ يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ ﴿٣٧﴾ |
| انسانانو ته۔ د چا چه خوښه وی ستاسو نه چه مخکښ شی (نیکو ته) یا روستو پاتې شی |

**تفسیر**: پدې آیت کښ رد دې په منکرینو او د قیامت په اثبات باندې قسم کوی۔

كَلَّا: پدې کښ ردع (منع) دہ د انکار او کفر نه۔ یعنی منافقان او کافران چه انکار کوی او کفر کوی نو دا نۀ دہ پکار۔ (زمخشری)

د بصرینو په نیز باندې دا په معنیٰ د اَیْ وَنَعَمْ۔ سره دې۔ یعنی همداسې دہ۔ (نضر بن شُمیلؒ)

کافیجیؒ وائی : د دواړو ترمینځ منافات نشته ځکه د بصرینو کلام د ظاهر سره موافق دې، او د زمخشری کلام د بلاغت او اعجاز په بنیاد دې۔ (فتح البیان)

کرخیؒ وائی : دا په معنیٰ د اَلَا سره دې دپاره د تنبیه۔ او دې ته کلمه د استفتاح وائی چه د کلام په ابتداء کښ د متوجه کولو دپاره استعمالیږی۔

وَالْقَمَرِ : ابن جریرؒ لیکلی دی چه دلته د قریشو د کافرانو باطل گمان رد کړې شوې دې چه دویٔ به د جهنم د څوکیدارانو مقابله کوی او په هغویٔ به غالبه کیږی۔

الله تعالیٰ وفرمایل : قسَم دې په سپوږمۍ او قسَم دې په شپه باندې کله چه هغه د صبا راختو په وجه ختمه شی، او قسَم دې په صبا باندې کله چه هغه روښانه شی، تاسو په دغه ملائکو باندې زورور کیدې نشئ۔

أَدْبَرَ: دا لفظ د اضدادو نه دې، یعنی شاگرزول، او راتلل دواړو دپاره استعمالیږی۔

١- یعنی شپه شا وگرزوی۔ ٢- یا شپه روستو راشی د ورځ پسې۔

وَالصُّبْحِ إِذَا أَسْفَرَ: إِذْ حرف په ماضی باندې دلالت کوی، او ادبار هم دلالت په تیریدو کوی، او د شپې نه روستو بیا د صبا رڼرا راځیژی او هغه په استقبال کښ وی نو ددې وجه

نه ئې دے سره إِذَا لفظ راوړو۔

أَسْفَرَ: یعنی کله چه صبا رڼرا کړی، او ښکاره شی۔

**فائده** : په سپوږمۍ الله تعالىٰ قسم وکړو پدے کښې حال د رسول الله ﷺ ته اشاره ده، او اللیل کښې د کافرانو حال ته، او والصبح کښې د اسلام حال دے۔

رسول الله ﷺ د سپوږمۍ په شان دے چه دنیا ته رڼرا کوی او شپه به شا راړوی، کافران په ختمیدو دی، او د اسلام چراغ په توله دنیا روښانه کیدونکے دے۔ دا به کیږی، نو دغه شان الله تعالىٰ دا خبر هم ورکړیدے چه د قیامت ورځ به راځی نو هغه هم یقینی راتلونکے ده۔

۲- دویمه طریقه : لکه څنګه چه سپوږمۍ کښې تغیرات راځی وړوکے کیږی، غټیږی او شپه ماښام کښې راشیة او سهار لاړه شی، او صبا وخت هم روښانه کیږی، نو دغه شان د قیامت ورځ به هم پدے ترتیب باندے بدلیږی، او لکه څنګه چه ددے اوقاتو راتلل یقینی دی نو دغه شان د قیامت راتلل هم یقینی دی۔

لَإِحْدَى الْكُبَرِ : اَیْ لَاِحْدَی الدَّوَاهِیْ اَوِ الْبَلَايَا الْكُبَرِ۔ یعنی سقر د نهایتے خطرناك او هیبتناك مصیبتونو نه یو مصیبت دے۔

الکبر جمع د کبرىٰ ده۔

نَذِيرًا لِّلْبَشَرِ: دا صفت د عذاب د اُور دے۔ که دا په تاویل د سقر سره واخلے نو مؤنث به وی، او که په تاویل د عذاب سره وی، نو بیا مذکر دے، نو نذیر ئے صفت دے په اعتبار د عذاب سره۔

لِمَن شَاءَ مِنكُمْ: دا بدل دے د (لِلْبَشَرِ) نه۔ یا متعلق دے په نَذِيرًا پورے۔

او مطلب دا دے چه دا هغه خلقو لره ویرونکے دے کوم چه د الله تعالىٰ په طاعت او بندګۍ کښې په نورو باندے مخکښې والے او جنت حاصلول غواړی، او هغه چالره هم ویرونکے دے چه هغوئ د الله تعالىٰ د طاعت او بندګۍ نه روستو کیدل او په هلاکت کښې پریوتل غواړی۔ یعنی جهنم ذکر کولو سره د مومنانو او کافرانو د دواړو د ویرولو کار اوشو۔

أَن يَتَقَدَّمَ أَوْ يَتَأَخَّرَ: ددے ډیر مطلبونه دی :

(۱) يَتَقَدَّمَ اَیْ يَسْبِقَ إِلَى الطَّاعَةَ اَوْ يَتَخَلَّفَ عَنْهَا۔

یعنی دا جهنم د هغه چا یره ونکے دے چه طاعاتو ته مخکښ کیږی او هغه چا لره چه د طاعاتو نه روستو کیږی۔

(۲) یَقْبَلُ النِّذَارَةَ اَوْ لَا یَقْبَلُهَا۔ (ابن کثیرؒ)

یعنی هغه څوك چه یره ول قبلوی یائے نهٔ قبلوی۔ یعنی د هر سړی خپله خوښه ده چه د الله تعالیٰ په عذاب باندے د ویره ولو نه روستو طاعت شروع کوی او که نهٔ۔ خو دا عذاب به تاسو یره وی۔

(۳) یا د تقدم نه مراد ایمان ته مخکښ کیدل دی ځکه چه په ایمان سره انسان د دنیا او د آخرت خیرونو ته ورمخکښ کیږی۔ او د تأخر نه مراد کفر او شرك دے چه انسان پدے سره د دنیا او د آخرت د خیرونو نه روستو پاتے کیږی۔

| كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ ﴿۳۸﴾ إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِيْنِ ﴿۳۹﴾ |
|---|
| هر نفس به په هغه عمل چه کړے ئے دے گانړه وی (راګیر به وی)۔ مګر ښی لاس والا۔ |
| فِيْ جَنَّاتٍ يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿۴۰﴾ عَنِ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۴۱﴾ مَا سَلَكَكُمْ |
| په جنتونو کښی به وی، تپوس به کوی۔ د مجرمانو نه۔ څه شی داخل کړیٔ تاسو |
| فِيْ سَقَرَ ﴿۴۲﴾ قَالُوْا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّيْنَ ﴿۴۳﴾ وَلَمْ نَكُ |
| سقر (اُور) ته۔ وائی به دوی نهٔ وو مونږ د مونځ کونکو نه۔ او نهٔ مونږ |
| نُطْعِمُ الْمِسْكِيْنَ ﴿۴۴﴾ وَكُنَّا نَخُوْضُ مَعَ الْخَائِضِيْنَ ﴿۴۵﴾ |
| خوراك ورکولو مسکین ته۔ او مونږ به بکواس کولو د بکواس کونکو سره (او |
| وَكُنَّا نُكَذِّبُ |
| مونږ به ننوتو په باطلو خبرو کښی د ننه وتونکو سره۔) او وو مونږ چه تکذیب به |
| بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۴۶﴾ حَتّٰى أَتَانَا الْيَقِيْنُ ﴿۴۷﴾ |
| مو کولو د ورځے د جزا۔ تردے چه راغے مونږ ته مرګ۔ |

**تفسیر** : اُوس فرمائی چه په قیامت کښی د جزاء او سزا واقع کیدل یقینی دی، که

څوك ئې مني او كه نۀ. يعني په دے ورځ به هر كس د خپل عمل ذمه دار وي، او په هغے كښې به راګير وي، كه چرے ښۀ عمل ئې كړے وي نو ددۀ نجات به وي، او كه بد عمل ئې كړے وي، نو هغه به ئې هلاك كړي.

دے وجے نه الله تعالیٰ وفرمايل : ﴿إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ﴾ چه د چا عملونه ښۀ وي، د دوئ څټونه به د عذاب نه آزاد كړے شي، لكه څنګه چه يو ګانړه كونكے شخص قرض اداء كړي او خپل ګانړه كړے شے را خلاص كړي.

إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ: هر انسان به په خپل عمل كښې راګير وي مګر ښي لاس والا به په ګاهونو كښې نۀ وي راګير بلكه دوي به آزاد وي ددے وجه نه چه دوي ښائسته عملونه كړيدي. نو دا استثناء متصل ده.

دا ښي اړخ والا خلق به په دے ورځ په داسے جنتونو كښې وي چه د هغے د نعمتونو، راحتونو او دولونو موندل هيڅوك په دے دنيا كښې نشي كولے. دا خلق به يو بل ته مخامخ ناست خپل مينځ كښې خبرے كوي، تردے چه خبره هغه مجرمانو ته اورسيږي چه هغوئ به په دنيا كښې د الله تعالیٰ او د هغۀ د رسول نه بغاوت كولو، د كومو مرګ چه په كفر او شرك باندے راغلے وو.

نو جنتيان به يو بل ته وائي چه راځئ چه جهنم ته ښكاره شو او د هغوي حال معلوم كړو، نو هغوي ته به راښكاره شي، نو هغوئ به د جهنم په ويخ كښې د سخت عذاب په حالت كښې اوموري، او هغوئ نه به تپوس اوكړي چه ستاسو كومو كړو تاسو جهنم ته را اورسولئ؟

نو دغه جهنميان به ووائي چه مونږ به په دنيا كښې د الله تعالیٰ دپاره مونځ نۀ كولو. مسكينانو ته به مو د خپلو مالونو زكاة نۀ وركولو، د اسلامي دين، قرآن كريم او د رسول الله ﷺ په خِلاف سازش كونكو سره به مو ملګرتيا كوله، او د قيامت ورځ به مو دروغژنه ګنړله، زمونږ همدا حال وو تردے چه مرګ مونږ له راغے، او نن مو هغه حقائق اوليدل چه د هغے نه به مو په دنيا كښې انكار كولو.

رَهِيْنَةٌ : (يعني بند او راګير به وي په عمل او د هغے په عذاب كښې).

د نفس ګانړه كيدو مطلب په سورة الطور كښې تير شو چه د يو تن په بل باندے قرض وي او هغه ئې ورله نۀ وركوي، نو هغه ترے يو شے په كښې قبضه كړي ترڅو چه هغه نۀ

وی ادا شوے دا ورلـه نـهٔ ورکـوی، نـو دغـه شان انسـان هم الله تعالیٰ په عمل کښ قبضه کړے وي چه تا دا عمل ولے نهٔ برابرولو، غلط دے، نو همیشه به ما سره بند ئے۔

فِیْ جَنّٰتٍ: دلته متعلق دے د (یَکُوْنُوْنَ) پورے۔ یعنی وی به دوی په باغونو کښ۔

یَتَسَآءَلُوْنَ: (۱) دا مستـقـل کـلام دے، یعنی په کورنئ کښ به د یو بل د حال تپوس کوی۔ لکه په سورة طور (۲۵) آیت او سورة صافات (۵۰) آیت کښ دی۔

او عَنِ الْمُجْرِمِیْنَ د پټ یَتَسَآئَلُوْنَ پورے متعلق دے، یعنی د یو بل نه به تپوس کوی په باره د احوالـو د مجرمانو کښ بیا چه کله مجرمان وینی نو مخامخ به ترے داسے تپوس کوی: (مَا سَلَکَکُمْ)

(۲) یا یَتَسَآءَلُوْنَ په معنیٰ د یَسْأَلُوْنَ سره دے، او روستو عَنِ الْمُجْرِمِیْنَ کښ عَنْ زیاتی دے۔ یعنی تپوس به کوی د مجرمانو نه۔

مَا سَلَکَکُمْ فِیْ سَقَرَ: تاسو سقر ته کوم څیز راوستئ؟۔

قَالُوْا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّیْنَ: یعنی مونږ به مونځونه نهٔ کول۔

دا دلیـل دے چه کـفـار هـم په فروعو (احکام شرعیه ؤ) باندے مکلف دی، او دا دا آیت دلیـل دے د هغه علماؤ دپاره چه هغوی وائی همیشه مونځ پریخودونکے کافر دے، ځکه چه دا د کفارو صفت دے۔

او مونځ کښ تعظیم د امر الله دے۔ نو دوی دا نهٔ کولو۔

وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِیْنَ: یعنی مونږ به د الله تعالیٰ په بندګانو شفقت نهٔ کولو۔ او دا دواړه سببونه د جهنم دی۔

وَكُنَّا نَخُوْضُ: یعنی مونږ به بکواس کونکو سره بکواس کولو، یعنی دین پورے به مو ټوقے کولے لکه دے سورت کښ تیر شو۔

وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِیَوْمِ الدِّیْنِ: یعنی مونږ د قیامت ورځ نهٔ منله۔

اَلْیَقِیْنُ: د یقین نه مراد مرګ دے، یعنی تر مرګه پورے مونږ دا نهٔ منل۔

| |
|---|
| فَمَا تَنفَعُهُمْ شَفَاعَةُ الشَّافِعِيْنَ ﴿٤٨﴾ فَمَا لَهُمْ |
| نو فائده به نهٔ ورکوی دوی ته سفارش د سفارش کونکو۔ نو څه وجه ده دوی لره |
| عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ ﴿٤٩﴾ كَأَنَّهُمْ حُمُرٌ مُّسْتَنفِرَةٌ ﴿٥٠﴾ |
| چه د نصيحت نه مخ اړوی۔ گويا کښې دوی خرهٔ دی نفرت کونکی (تښتيدونکی)۔ |
| فَرَّتْ مِن قَسْوَرَةٍ ﴿٥١﴾ بَلْ يُرِيْدُ كُلُّ امْرِئٍ مِّنْهُمْ أَنْ يُّؤْتٰى |
| چه تښتيدلی وی د زمری نه۔ بلکه اراده لری هر يو د دوی نه چه ورکړے شی |
| صُحُفًا مُّنَشَّرَةً ﴿٥٢﴾ كَلَّا بَلْ لَّا يَخَافُوْنَ الْآخِرَةَ ﴿٥٣﴾ |
| پاڼړے خورے ورے۔ هيڅکله داسے نهٔ ده بلکه نهٔ يريږی دوی د آخرت نه۔ |
| كَلَّا إِنَّهٗ تَذْكِرَةٌ ﴿٥٤﴾ فَمَنْ شَآءَ |
| هيڅکله داسے نهٔ ده يقيناً دا خامخا نصيحت دے۔ نو څوك چه غواړی |
| ذَكَرَهٗ ﴿٥٥﴾ وَمَا يَذْكُرُوْنَ إِلَّا أَنْ يَّشَآءَ اللّٰهُ |
| نصيحت دِے واخلی ددينه۔ او نهٔ اخلی نصيحت دوی مگر چه اُوغواړی الله تعالیٰ، |
| هُوَ أَهْلُ التَّقْوٰى وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ ﴿٥٦﴾ |
| هغه لائق دے ددے چه يره ترے اُوکړے شی او لائق د بخښنے کولو دے۔ |

**تفسير**: ددے مجرمانو په باره کښې الله فرمائی: چه که بالفرض کوم نبی يا ملائك په دے ورځ دوئ له سفارش هم اوکړی، نو هغه به د دوئ په کار رانشی۔

په نورو الفاظو کښې، دوئ د شفاعت اهل نهٔ دی، دے وجے نه الله تعالیٰ به هيڅ يو نبی يا ملائك له د دوئ لپاره د سفارش کولو اجازت نهٔ ورکوی، نو پدے وجه څهٔ داسے سفارش به دوی دپاره نهٔ وی چه هغه دوئ له فائده ورکړی۔

**فَمَا لَهُمْ**: اُوس الله تعالیٰ د مشرکانو په حال باندے حيرانتيا ښکاره کوی۔

فرمائی: دوئ له څهٔ شوی دی چه دوئ ددے قرآن نه اعراض کوی چه په دے کښې دوئ لپاره عبرت او نصيحت دے، او د قرآن آوريدو نه داسے تريږی لکه ويرے وهلی خرهٔ چه

په ځنګل کښې زمریان اووینی او ډیرے ویرے نه بے دریغه منډے وهی، او دوئ له هیڅ ته قرارے نهٔ ملاویږی۔
او پدے آیت کښې سبب ذکر دے د تیرو شوو جرمونو چه هغه د قرآن کریم نه اعراض دے۔
مُسْتَنْفِرَةٌ: باب استفعال راوړو کښې اشاره ده چه نفرت د دوی د طبیعت تقاضا ده ګویا کښې ددے طلب کوی۔
قَسْوَرَةٍ: ۱- زمرے چه ددهٔ نه صحرائی خرهٔ (زیبرا) ډیر یریږی۔ (عطاءٌ والکلبیؒ)
دا د قسر نه دے قهر (غلبے) ته وائی۔ او زمرے په نورو حیواناتو غالبه وی۔ (ابن عرفهؒ)
۲- قسورة : د حبشو په ژبه کښې ویشتونکو (ښکاریانو) ته هم وائی۔
مفرد ئے قَسْوَرٌ دے، او جمعه ئے قَسْوَرَةٌ ده، (سعید بن جبیرؒ، عکرمهؒ، مجاهدؒ، قتادهؒ، ابن کیسان)
او بعض وائی چه قَسْوَرَةٌ مفرد او جمع دواړه یو شان استعمالیږی۔
۳- ابن عباس رضی الله عنه فرمائی : (هُوَ رِکْزُ النَّاسِ اَیْ اَصْوَاتُهُمْ)
د خلقو (د خپو) شور او آوازونو ته وائی۔ یعنی لکه صحرائی خرهٔ چه د سړو د شور او آوازونو نه تیختنه کوی۔
٤- ابن الاعرابیؒ وائی : قسورة د شپے اولے حصے ته وائی۔ او دا قول د عکرمهؒ هم دے۔ لیکن اول قول ډیر غوره دے۔
دلته الله تعالیٰ د کفارو تشبیه د صحرائی خرو سره او د رسول الله ﷺ تشبیه ئے د زمری سره ورکړے ده۔ او داعی همیشه زمرے وی، قرآن کریم سړی کښې بهادری پیدا کوی، پکار دا ده چه داعی د حق په باره کښې د هیچا نه یره ونکړی بلکه لائق ده چه خلق ددهٔ نه ویریږی۔
بَلْ یُرِیْدُ : یعنی د دوی د دلیل سره کار نشته خو غلطے مطالبے کوی۔ پدے کښې په قریشو کافرانو باندے رد دے۔
مفسرینو لیکلی دی : د قریشو کافرانو نبی کریم ﷺ ته وویل چه په مونږ کښې هر یو کس ته د الله تعالیٰ له خوا یو کتاب راتلل پکار دی چه په هغے کښې دا ذکر شوی وی چه ته د الله رسول ئے، نو مونږ به په تا باندے په ایمان راوړو کښې غور وکړو، لیکن دوئ په

خپلے دے خبره کښې بیخی دروغژن وو، ځکه په قرآن کریم کښې ډیر زیات آیتونه نازل شوی وو چه د هغے نه حق واضح شوے وو، اوکه چرے په هغوئ کښې د خیر د قبلولو صلاحیت وے، نو ایمان به ئے راوړے وے. دے وجے نه الله تعالیٰ اووئیل : هرګز نۀ ده، مونږ به د دوئ خواهشات پوره نۀ کړو، د دوئ مقصد زمونږ رسول عاجز او کمزورے جوړول دی. حقیقت دادے چه د دوئ په زړونو کښې د آخرت ویره نشته، که چرے دوئ سره د آخرت د نجات فکر وے، نو داسے خبرے به ئے نۀ کولے بلکه ایمان به ئے راوړے وے.

كَلَّا: دا ردع ده د ارادے نه، یعنی دغه ارادے مۀ کوئ. دا به هیڅکله پوره نشی.

۲- لَا نُعْطِيهِمْ مَا طَلَبُوا. یعنی دوئ ته ددوئ مطالبے نۀ ورکوم.

بَلْ لَا يَخَافُونَ الْآخِرَةَ : بلکه دوی د آخرت نه نۀ یریږی، او څوك چه د آخرت نه نۀ یریږی نو دغسے ناقوتلی او ناقوالے وائی.

كَلَّا: دا ردع ده د عدم خوف نه. یعنی د آخرت نه بیغمی نۀ ده پکار.

❁ یا په معنیٰ د حَقًا سره دے. یعنی یقینی ده دا خبره چه دا قرآن کامل او کافی نصیحت دے.

❁ یا انکار دے ددے نه چه دوئ نصیحت نۀ اخلی.

إِنَّهُ تَذْكِرَةٌ: یعنی دا قرآن د عبرت او نصیحت خزانه ده، په دے کښې د الله تعالیٰ د ذکر شوو اوامرو او منع شوو کارونو نه چه څوك غواړی فائده دِے پورته کړی، او خپل انجام دِے برابر کړی، لیکن ددے نه هغه کس فائده پورته کوی چاله چه الله تعالیٰ توفیق ورکړی، د هغۀ د توفیق نه بغیر هیڅ هم نۀ حاصلیږی.

فَمَنْ شَاءَ ذَكَرَهُ: د چا چه خوښه وی ددے نه دِے نصیحت واخلی. ځکه چه ددے فائده هم دۀ ته راواپس کیږی.

وَمَا يَذْكُرُونَ إِلَّا : الله تعالیٰ چه د چا دپاره اراده وکړی، او هغه ورته توفیق ورکړی، نو هغه ترے نصیحت اخستے شی، نو الله تعالیٰ ته متوجه کیدل پکار دی.

هُوَ أَهْلُ التَّقْوَىٰ: اَیْ اَهْلٌ لِاَنْ يُتَّقٰی مِنْهُ. یعنی الله تعالیٰ لائق دے ددے چه د هغۀ نه یره وکړے شی. یعنی د الله تعالیٰ نه یره ځکه پکار ده چه هغه لائق دے ددے چه بنده د هغۀ نه یره وکړی، او د هغۀ د حدودو پابندی وکړی. او د هغۀ د کتاب نه عبرت او نصیحت واخلی. دا ځکه وائی چه که یو عام انسان تا ته حکم وکړی، نو هغه به لائق د یرے نۀ وی

او الله تعالیٰ ددے لائق دے۔
وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ: یعنی اَهْلٌ لِلْمَغْفِرَةِ لِمَنِ اتَّقَاهُ۔
یعنی څوك چه د هغهٔ نه ویریدو نو الله تعالیٰ لائق دے چه هغهٔ ته به بخنه کوی۔
او پدے کښې دے ته اشاره ده چه د الله تعالیٰ چا ته بخنه کول ډیره لویه خبره ده، نو پکار ده چه د هغهٔ د بخنے غم وکړے شی۔
او پدے کښې دا اشاره هم ده چه د قرآن کریم په تذکیر (نصیحت) سره د شرك او کفر نه تقویٰ حاصلیږی، او بیا په تقویٰ سره مغفرت حاصلیږی۔
په آخر د سورت کښې ئے بیا قرآن کریم او قیامت یو ځای ذکر کړل۔ چه د آخرت د ورځے نه څوك نهٔ یریږی، نو د قرآن کریم نه فائده نشی اخستے۔
وبالله التوفیق۔

امتیازات د سورة المدثر

١ - دے سورت کښې خصوصی خطاب وو رسول الله ﷺ ته په المدثر سره دپاره د دعوت کولو۔
٢ - قصه د ولید پکښې ذکر ده۔
٣ - د سقر تذکره پکښې راغلے ده، او په هغے باندے د نولس ملائکو مقرر کیدل ذکر دی۔
٤ - او د جهنم اسباب پکښې ذکر دی، ترك الصلاة، ترك الاطعام، خوض او تکذیب۔

ختم شو تفسیر د سورة المدثر په توفیق د رب العالمین سره۔ جمعه ١٢ رمضان جون١٧۔

❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

| آیاتها (٤٠) | (٧٥) سُوۡرَةُ الۡقِیَامَةِ مَکِّیَّةٌ | رکوعاتها (٢) |
| --- | --- | --- |

سورة القیامه مکی دے، په دے کښې څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة القیامة

**نوم :** (١) په اولنی آیت کښې [اَلۡقِیَامَة] لفظ راغلے، همدا ددے نوم کیښودلے شوے۔

(٢) په بعضِ روایاتو کښې د ابن عباس ﷺ نه ددے نوم [سُوۡرَةُ لَا اُقۡسِمُ] هم نقل شوے۔

**د نازلیدو زمانه :** دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔

ابن مردویّة او بیهقیّ (په دلائل کښې) د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی دی چه سورة القیامه او د یو روایت مطابق [سورة لَا اُقۡسِمُ] په مکه کښې نازل شوے۔ ابن مردویّة د عبد الله بن زبیر ﷺ نه هم همدا نقل کړی دی۔

### مناسبت

١- په مخکښې سورت کښې هم د قیامت او د قرآن تذکره وه، نو پدے سورت کښې هم دغه دواړه خبرے ذکر دی۔

٢- په مخکښې سورت کښې تیزی ورکول وو په تبلیغ د قرآن باندے، او په دے سورت کښې ادب دے د تَعَلُّم (زده کړے) د قرآن کریم۔

٣- مخکښې سورت کښې د قرآن کریم معرضینو ته رټنه وه نو پدے سورت کښې هغوی ته تخویف اُخروی ذکر کیږی۔

٤- په مخکښې سورت کښې د حشر په مکذبینو باندے رد ذکر شو نو پدے سورت کښې د حشر اثبات کوی په دلیلو نو سره۔

بیا ددے سورت نه تر سورة الاعلیٰ پورے پدے تولو سورتونو کښې د قیامت اثبات دے

په شواهدو او دلیلونو سره، او د قیامت د حالاتو ذکر دے په تفصیل سره خو په هر سورت کښې به جدا جدا تعبیر او طرز او عنوان وی۔

## د سورت مقصد

اَلتَّخْوِیْفُ بِالْقِیَامَةِ وَاِثْبَاتُهَا ۔ د قیامت په ورځ سره د بندګانو یره ول۔ او د قیامت ثابتول۔ د ثابتولو دپاره دلائل په آخر کښې راوړی۔ (اَلَمْ یَكُ نُطْفَةً)

زمونږ شیخ محترم (رستمیؒ) فرمائی : پدے سورت کښې اثبات د قیامت دے په ذکر د جمع الْعِظَام سره۔

بیا پدے سورت کښې دوه قیامته ذکر شویدی، یو غټ قیامت او بل قیامتِ صغریٰ (وړوکے قیامت) یعنی مرګ۔ ورسره ورسره اسباب دافعه او اسباب جالبه هم ذکر شویدی، د قیامت په ورځ به څوك هلاك کیږی؟ د هغے اسباب، او څوك به بچ کیږی ؟ نو د هغے اسباب۔ د قرآن کریم دعوت نیمګړے نهٔ وی بلکه مسئله هم درته ښائی او د نجات لاره هم درته بیانوی۔

| لَا اُقْسِمُ بِیَوْمِ الْقِیَامَةِ ﴿۱﴾ وَلَا اُقْسِمُ بِالنَّفْسِ |
|---|
| خامخا زهٔ قسم کوم په ورځ د قیامت۔ او خامخا زهٔ قسم کوم په نفس |
| اللَّوَّامَةِ﴿۲﴾ |
| ملامته کونکی باندے (ځان لره)۔ |

**تفسیر** : لَا اُقْسِمُ: کښې لا زیاتی نهٔ ده بلکه دا د استفتاح او د اهتمام دپاره راوړے شویدے۔ لکه عرب وائی (لَا وَاللهِ)۔ (همداسے ده/خبره هم دا ده، قسم په الله) .

بعضو مفسرینو وئیلی دی چه دا [لَا] د نفی په معنیٰ کښې ده، او ددے په ذریعه د مشرکانو د (مرګ نه پس ژوند) په باره کښې د غلطے عقیدے نفی شوے ده، او د آیت مطلب دادے چه خبره داسے نهٔ ده څنګه چه مشرکان وائی چه د مرګ نه پس ژوند او د قیامت په ورځ د جزاء او سزا تصور صحیح نهٔ دے۔

زهٔ د مرګ نه پس د دوباره ژوندون په صحیح کیدو باندے د قیامت په ورځ باندے قسم خورم، او د انسان په [نَفْسِ لَوَّامَه] باندے قسم خورم، چه دا همیشه د الله تعالیٰ په باره

کښې په کوتاهي کولو باندې انسان ملامته کوي، هغه په نیکئ باندې راپاروي، او د بدئ نه ئې بندوي، ځکه چه دهٔ ته یقین وي چه قیامت به خامخا راځي، انسانان به دوباره ژوندي کیږي، او دوئ له به د دوئ د ښو او بدو عملونو بدله ورکړې کیږي.

قسم چه په یو شي باندې کیږي نو پدې کښې د هغې عظمت (لوی والی) ته اشاره وي، نو د قیامت ورځ ډیره لویه او هیبتی ده، او هغه نفس چه په ګناه باندې ځان ملامته کوي نو په هغې قسم شویدې د هغې د شرافت د وجه نه. یعنی د قیامت ورځ حقه ده ځکه دغه نفس ځان ملامته کوي.

ددې قسم جواب پټ دې. اَیْ بِاَنَّ بَعْثَکُمْ حَقٌّ وَتُحَاسَبُوْنَ.

یعنی اے کافرانو ! تاسو به خامخا دوباره ژوندې کیږئ، تاسو سره به خامخا ستاسو د عملونو حساب کیږي، او تاسو له به سزا درکړې کیږي. چونکه دا خبره د سیاق اوسباق نه واضحه وه، دې وجې نه په آیت کښې دا ذکر نشوه.

## مناسبت د قسم او جواب قسم دا دې

چه انسان ځان ولې ملامته کوي؟ وجه دا ده چه د آخرت د عذاب نه یریږي، نو داسې انسانان شته چه هغه ځان ملامته کوي، ددهٔ نفس او فطرت کښې الله تعالیٰ دا خبره اچولې ده چه ګناه بده ګنړي، دا ولې بده ګنړي ؟ وجه دا ده چه د قیامت ورځ حقه ده، او که د قیامت ورځ حقه نهٔ وې نو بیا خو به ګناه او نیکي یو شان وه.

❁ دارنګه هر کله چه په یوه ورځ کښې د الله تعالیٰ مخې ته ودریدل یقیني دي نو معلومه شوه چه د مرګ نه روستو بیا ژوندي کول هم هغهٔ ته څه ګران نهٔ دي. (احسن الكلام)

سعید بن جبیرؒ د ابن عباس ؓ نه تپوس وکړو چه ﴿ لَآ اُقْسِمُ بِیَوْمِ الْقِیَامَةِ ﴾ کښې الله تعالیٰ څنګه په قیامت باندې قسم کړیدې؟ هغه وفرمایل:

[یُقْسِمُ رَبُّكَ بِمَا شَاءَ مِنْ خَلْقِهٖ]

ستا د رب خوښه ده چه په کوم مخلوق باندې قسم کوي، کولې ئې شي.

(الحاکم ۲/۵۵۳رقم: ۳۸۷۷) وقال صحیح الاسناد ووافقه الذهبیؒ)

یعنی الله تعالیٰ چه کوم مخلوق باندې قسم کوي په هغهٔ باندې هیڅ پابندي نشته او

هغه چه په يو مخلوق قسم كوی نو د هغې عظمت ته اشاره وی او بل په هغې كښې خاص رازونه او حكمتونه وی چه هغه الله تعالىٰ بهتر پيژنی.

بِيَوْمِ الْقِيَامَةِ: ددې نه مراد هغه احوال دی چه په مخكنو او روستنو سورتونو كښې ذكر كيږی، نو دغه حالات شاهد دی چه قيامت او هډوكی راجمع كول او دوباره ژوندی كول يقينی دی.

## نفس لوامه چا ته وائی؟

١- حسن بصریؒ وائی: [هِیَ وَاللهِ نَفْسُ الْمُؤْمِنِ لَا يُرَى الْمُؤْمِنُ اِلَّا يَلُوْمُ نَفْسَهٗ لِمَ قُلْتَ هٰذَا، وَلِمَ دَخَلْتَ وَلِمَ خَرَجْتَ وَلِمَ اَكَلْتَ] - چه قسم په الله دا د مؤمن نفس دې چه په هر حالت كښې ځان ملامته كوی، او دا ورته وائی چه دا خبره دې ولې وكړه او فلانی ځای ته ولې لاړې، او د فلانی ځای نه ولې بهر شوې، او ولې دې دا فلانئ خوراك وكړو. (او دا ځان څكه ملامته كوی چه د قيامت نه يريږی) او فاجر ځان نهٔ ملامته كوی. آه.

٢- ابو زكريا يحيى بن زياد الفراءؒ وائی:

[لَيْسَ مِنْ نَفْسٍ بَرَّةٍ وَلَا فَاجِرَةٍ اِلَّا وَهِیَ تَلُوْمُ نَفْسَهَا اِنْ كَانَتْ عَمِلَتْ خَيْرًا قَالَتْ: هَلَّا ازْدَدْتُ، وَاِنْ كَانَتْ عَمِلَتْ سُوْءًا قَالَتْ لَيْتَنِیْ لَمْ اَفْعَلْ].

نشته يو نيك نفس او نهٔ بد كاره نفس مگر هغه خپل ځان ملامته كوی، كه نيك عمل ئې كړې وی، نو وائی چه ما زيات ولې نهٔ كولو او كه بد عمل ئې كړې وی نو وائی چه ارمان چه ما دا كار نهٔ وې كړې.

ابن عباس رضی الله عنه وائی: هِیَ الَّتِیْ تَلُوْمُ عَلَى الْخَيْرِ وَالشَّرِّ - دا هغه نفس دې چه په نيكئ او بدئ دواړو باندې ځان ملامته كوی. (القرطبی والبغوی)

٣- او دا هغه مؤمن دې چه دنيا كښې هر وخت د ځان سره حساب كوی، كه څه گناه وكړی نو توبې وباسی، او كه خوراك څكاك وكړی نو ځان سره وائی چه دا ما د څه مقصد دپاره وكړو، او ما څه شكر ادا كړو؟.

نفس لوامه دويمه درجه نفس دې، اول نفس مطمئنه دې، او دريمه درجه كښې نفس اماره بِالسُّوْءِ دې.

٤- مقاتلؒ وائی:

(هِيَ النَّفْسُ الْكَافِرَةُ تَلُوْمُ نَفْسَهَا فِي الْآخِرَةِ عَلٰى مَا فَرَّطَتْ فِيْ أَمْرِ اللّٰهِ فِي الدُّنْيَا)

ددے نه مراد هر نفس دے چه ځان به په آخرت کښې ملامته کوی۔ يعنی په آخرت کښې به بيا ځانونه ملامته کوئ او ارمانونه به کوئ چه دا کفر او شرك او ګناهونه مو ولے کول۔ (بغویؒ والقرطبیؒ وفتح القدير وفتح البيان وزاد المسير والخازن)

دواړه خبرے صحيح دی، نفس لوامه په دنيا کښې هم شته او په آخرت کښې به هم وی۔ په اول صورت کښې به د نفس مدح وی، او په دويم صورت کښې به ترهيب وی چه په آخرت کښې به ځان ملامته کوی نو پکار ده چه په دنيا کښې ځان ملامته کړی او توبه وباسی۔

بيا ئے نفس لوامه د قيامت سره يو ځای ذکر کړو، اشاره ده چه د قيامت راتلل ددے دپاره دی چه نفسونو ته جزاء او سزا ورکړے شی۔

دارنګه د قيامت ورځ د حساب وخت دے او نفس لوامه هم د خپل ځان سره حساب کونکے نفس دے۔

په بل تعبير: يوم القيامة ورځ د جزاء ده، او نفس لوامه مستحق د جزاء دے۔

**فائده** : حافظ ابن القيمؒ په کتاب الروح کښې ذکر کړيدی چه د انسان يو نفس دے ليکن د هغے دغه درے صفات دی، په بعض انسانانو باندے يو نفس غالب وی او په بعضو باندے بل۔ نو نفس ته کله مطمئنه وائی پدے اعتبار سره چه خپل رب ته اطمينان او سکون حاصلوی، په عبوديت او محبت د هغهٔ سره او په انابت سره هغه ته، او په توکل سره په هغهٔ باندے او په رضا سره په هغه باندے او په سکون سره هغهٔ ته۔

نو الله تعالیٰ ته اطمينان حاصلول يو حقيقت دے چه د الله تعالیٰ د طرفنه د بنده په زړه باندے راځی او د هغهٔ زړه په الله باندے راجمع کوی،

او د هغه زړهٔ چه تريدونکے دے هغه الله ته راواپس کوی، ګويا که دے د الله تعالیٰ مخے ته ناست دے، نو دغه اطمينان ددهٔ په نفس او زړه او جوړونو او ظاهری او باطنی قوتونو کښې سرايت وکړی، او حقيقی اطمينان نهٔ حاصليږی مګر په الله تعالیٰ او د هغهٔ په ذکر سره۔ ﴿أَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ﴾

هر چه نفس لوامه دے، نو ددے په معنیٰ کښې اختلاف دے، يو ے ډلے وئيلی دی چه دا هغه نفس دے چه په يو حال باندے هميشه پاتے نهٔ وی۔ ځکه چه لوامه د تلوم نه دے

تردد (گرزیدو راگرزیدو) ته وائی نو دا نفس هم ډیر اوړی راوړی او بدلیږی۔

او دا د الله تعالیٰ ډیره لویه نخښه ده ځکه چه دا د الله تعالیٰ د مخلوقاتو نه یو مخلوق دے چه اوړی راوړی او په یو ساعت کښې -پاتے لا ورځ او میاشت او کال او عمر کښې- مختلف رنگونه حاصلوی، نو کله خبره یاده وی، او کله غافل کیږی، نو کله متوجه وی او کله اعراض کوی، او کله نرمیږی او کله سختیږی، او کله انابت کوی او کله جفاء کوی، او کله محبت کوی او کله بغض، نو کله خوشحالیږی او کله خفه وی۔ او کله رضا وی او کله په غضب وی، او کله فرمانبردار وی او کله نافرمان، او کله تقویٰ کوی او کله گناهونه کوی، داسے ډیرو چندونو طریقو سره بدلیږی رابدلیږی۔

او بله ډله وائی چه لوامه د لوم نه دے، ملامته کولو ته وئیلے شی، بیا ئے د حسن بصریؒ مخکښے قول ذکر کړیدے چه دا نفس ځان ډیر ملامته کوی۔

او بعضو وئیلی دی چه دا د مؤمن نفس دے چه په گناه ئے کښې اچوی بیا ئے ملامته کوی، نو دا ملامتیا د ایمان نخښه ده، په خلاف د هغه بدبخت نه چه خپل نفس په گناه باندے نۀ ملامته کوی بلکه دے هغه او هغه دۀ لره ملامته کوی په فوت کیدو د گناه۔

بیا لیکی: دا ټول اقوال حق دی او هیڅ منافات پکښې نشته لیکن نفس په دوه قسمه دے (۱) لوامة ملومة۔ دا هغه جاهل او ظالم نفس دے چه الله تعالیٰ او د هغهٔ ملائك ئے ملامته کوی۔

(۲) او بل لوامة غیر ملومة دے۔ او دا هغه نفس دے چه همیشه خپل صاحب ملامته کوی په تقصیر او کوتاهی کولو سره په طاعت د الله تعالیٰ کښې سره ددے نه چه خپل وس مطابق هغه په طاعاتو کښې لگوی۔ نو دا نفس لوامه دے خو ملامته کړے شوے به نۀ وی۔ او دریم نفس اماره بالسوء دے چه انسان ته همیشه په گناه باندے امر کوی او دا ئے طبیعت جوړ شوے وی، مگر هغه چه الله تعالیٰ توفیق ورکړی، نو ددے نفس د شر نه هیڅوك نشی خلاصیدے مگر په توفیق او مدد د الله تعالیٰ سره۔

او الله تعالیٰ پدے دوه نفسونو (اماره، او لوامه) سره بنده په امتحان کښې اچولے دے لکه څنگه ئے چه په نفس مطمئنه سره پرے اکرام کړیدے، نو دا یو نفس دے چه اول کښې اماره وی بیا لوامه وی بیا مطمئنه وی۔

او الله تعالیٰ ددے آخری نفس سره په ډیرو لښکرو سره مدد کړیدے، نو ملائك ئے ددے

سره قرین او هغه ملګرے جوړ کړیدے چه دهٔ سره نزدے نزدے وی او ددهٔ مشری کوی، او دهٔ ته د خیر ترغیب ورکوی. او شیطان د نفس لوامه سره قرین جوړ شویدے. (انتهیٰ ترجمة عبارة کتاب الروح ملخصا)

| |
|---|
| أَيَحْسَبُ الْإِنسَانُ أَلَّن نَّجْمَعَ عِظَامَهُ ﴿٣﴾ بَلَىٰ |
| آیا ګمان کوی انسان چه هیچرے به مونږ راجمع نکړو هډوکی ددهٔ. ولے نهٔ، بلکه |
| قَادِرِينَ عَلَىٰ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُ ﴿٤﴾ بَلْ يُرِيدُ الْإِنسَانُ |
| قدرت والا یو (مونږ) پدے چه برابر کړو بندونه د ګوتو ددهٔ. بلکه اراده لری انسان |
| لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ ﴿٥﴾ |
| چه نافرمانی وکړی په مخکښې راتلونکے زمانه کښې. (۲ چه انکار اُوکړی د مخے د حالاتو نه) (۳ چه ګناه والا اُوګرځوی مخه خپله). |

**تفسیر**: پدے آیتِ کریمه کښې الله تعالیٰ هم هغه خبره ذکر کړیده په کومه باندے چه مخکښې قسم وکړے شو. او پدے کښې رټنه ده کافر انسان ته.

الله تعالیٰ وفرمایل: آیا کافر او ملحد دا ګمان کوی چه هغه به مړ شی او خاورے او ذره ذره به شی، د هغهٔ وجود به همیشه دپاره ختم شی، او مونږ به ددهٔ هډوکی د زمکے نه را ونهٔ باسو او هغه به د دوباره ژوندی کولو لپاره راجمع نهٔ کړو؟ دا ددهٔ کچه سوچ دے.

بَلَىٰ قَادِرِينَ عَلَىٰ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُ: ددے دوه مطلبه دی:

(۱) یو دا چه مونږ یقیناً په دے باندے وس لرو چه ددهٔ هډوکی راجمع کړو، بلکه مونږ ددے نه په غټه خبره باندے وس لرو چه ددهٔ د لاسونو او خپو ګوتے د اوبښ او خرهٔ د سُم پشان رایوځائے کړو، دے دپاره چه د هغے نه هغه نرے او باریك کار وانهٔ خلی کوم چه هغه د خپلو ګوتو په ذریعه سره اخلی.

نو تسویه د بنان نه مراد دا دے چه اُوس ددهٔ ګوتے د یو بل سره یو ځای کړو او کومه فائده چه اُوس ددے نه اخلی هغه ختمه شی. یعنی ستا دا ګوتے چا جدا جدا کړے نو دغه ذات به ستا هډوکی هم راجمع کوی.

او قادرین منصوب دے په نَجْمَعُهَا مُقدر سره. یعنی آؤ مونږ به ددهٔ هډوکی راجمع

کوو په داسې حال کښې چه مونږ قادر یو۔

(۲) مطلب دا چه مونږ خو د انسان د ګوتو په جوړولو باندې قادر یو کومې چه وړې او نازکې وی، او د یو بل نه جدا او د خوزیدو صلاحیت لری، نو بیا دده د جسم غټ هډوکی دوباره جوړولو باندې به ولې قادر نهٔ یو، په داسې حال کښې چه اول ځل مونږ هم دا پیدا کړی وو۔

(۳) سعید بن جبیرؒ د ابن عباس ﷺ نه ددې آیت مطلب وتپوسلو نو هغهٔ وفرمایل:

[أَنْ نُسَوِّيَ بَنَانَهُ: لَوْ شَاءَ لَجَعَلَهُ خُفًّا أَوْ حَافِرًا]۔

یعنی که الله وغواړی دده نه به غوائی او اس جوړ کړی او ګوتې به ورله هموارې کړی۔ (المستدرك: ۳۸۷۷) صحیح)

بَلْ يُرِيْدُ الْإِنْسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ: دا هم رتنه ده، او پدې کښې هم استفهام توبیخی پټ دې۔ یا بَلْ جواب دې د مخکښې استفهام، یعنی ددې انسان تپوس کول مقصد نهٔ دې بلکه د فجور او انکار اراده ئې ده۔

ددې دوه مطلبه دی (۱) (بلکه انسان غواړی چه نافرمانی کوی په راتلونکې زمانه کښې) أَيْ يُوَاصِلُ فُجُوْرَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ۔ یعنی انسان غواړی چه خپل ګناهونه تر قیامته پورې ورسوی۔ یعنی که الله تعالیٰ دې انسان لره پریدی، او عذاب ورنکړی او مرګ پرې رانهٔ ولی، نو دې به تر قیامته پورې دا ګناهونه کوی او الله ته نهٔ راواپس کیږی۔ بلکه الله تعالیٰ یو وخت پورې مهلت ورکوی، او بیا به ئې وژنی او بیا به ورله سزا ورکوی۔

(ابن الانباریؒ)

یعنی دې قیامت نهٔ منی ځکه ګناهونه کوی، که دهٔ قیامت منلې نو دا اراده به ئې نهٔ کولې۔ لکه دا په محاوره کښې وئیلې کیږی چه فلانیه! تهٔ چه دا نیك عمل نهٔ کوې نوستا د بل کوم شر اراده ده۔

مجاهدؒ، حسنؒ، عکرمهؒ، سدیؒ، او سعید بن جبیرؒ وائی: دا انسان وائی:

سَوْفَ أَتُوْبُ وَلَا يَتُوْبُ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْمَوْتُ وَهُوَ عَلَى شَرِّ أَحْوَالِهِ۔

زر دې چه توبه وباسم لیکن توبه نهٔ وباسی تر دې چه مرګ ورته راشی په داسې حال کښې چه دې په ډیر بد حالاتو کښې وی۔

ضحاكؒ وائی: [هُوَ الْأَمَلُ يَقُوْلُ سَوْفَ أَعِيْشُ وَأُصِيْبُ مِنَ الدُّنْيَا وَلَا يَذْكُرُ الْمَوْتَ]

ددے نه مراد امیدونه دی چه دے وائی : زهٔ به ډیره موده ژوندے یم او دنیا به حاصله کړم او مرګ ئے یاد نهٔ وی۔ (نو دا خپله مخه خرابول دی چه د مرګ دپاره هیڅ تیارے نهٔ کوی په تابعداریٔ د حق سره، او حساب کتاب ئے یاد نهٔ وی)

(۲) لِيُكَذِّبَ اَمَامَهٗ اَیْ بِیَوْمِ الْقِيَامَةِ وَحِسَابِهٖ۔ یعنی انسان غواړی چه د قیامت او په هغے کښې د حساب کتاب تکذیب وکړی۔ اوله معنیٰ ظاهر د قرآن دے۔

(۳) بـل مطلب دا دے : بلکه غواړی انسان چه انکار وکړی د مخے ته راتلونکو حالاتو نه چه هغه عذاب د قبر او بعث او حساب او میزان دے۔

(٤) لِيَفْجُرَ بِالْحَقِّ اَمَامَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ۔ یعنی غواړی چه د حق نه انکار وکړی مخکښې د راتللو د قیامت نه۔

(۵) دا مطلب هم صحیح دے : بلکه اراده لری انسان چه ګناه والا وګرځوی مخه خپله په انکار د حق او انکار د قیامت سره۔

| |
|---|
| يَسْأَلُ اَيَّانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ ﴿٦﴾ فَإِذَا بَرِقَ |
| تپوس کوی چه کله به وی ورځ د قیامت۔ نو کله چه اوبریښیږی (کیرے برے شی) |
| الْبَصَرُ ﴿٧﴾ وَخَسَفَ الْقَمَرُ ﴿٨﴾ وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ ﴿٩﴾ يَقُولُ |
| سترګے۔ او توره شی سپوږمۍ۔ او راجمع کړے شی نمر او سپوږمۍ۔ وائی به |
| الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ اَيْنَ الْمَفَرُّ ﴿١٠﴾ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴿١١﴾ |
| انسان په دغه ورځ چه چرته دے ځائے د تیختے۔ هیچرته نشته، نشته بچ کیدل۔ |
| إِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ ۨالْمُسْتَقَرُّ ﴿١٢﴾ |
| (یا ځائے د پناهیٔ)۔ خاص رب ستا ته په دغه ورځ قرارے دے۔ (ځائے د قراری دے)۔ |

**تفسیر** : د مرګ نه پس ژوندی کیدو او د قیامت نه منکر د خندا په توګه تپوس کوی چه قیامت به کله راځی، ځکه چه د قیامت راتلل د عقل نه لرے خبره ګنړی۔

الله تعالیٰ ددهٔ د خندا نه ډك سوال جواب ورکوی په ذکر کولو د هیبتونو د ورځے د قیامت سره۔ فرمائی چه هاؤ، کله چه قیامت راشی نو د انسان سترګے به د سختے ویرے

او د هشت نه اوبریښیږي، او د حرکت کولو نه به بندے شي۔
الله تعالىٰ د سورتِ ابراهيم په (٤٢) آيت کښې فرمايلي دي:
﴿ إِنَّمَا نُؤَخِّرُهُمْ لِيَوْمٍ تَشْخَصُ فِيهِ الْأَبْصَارُ ﴾ (الله تعالىٰ دوئ ته هغه ورځې پورے مهلت ورکړے په کومه ورځ چه به سترګے ګړاغے رااوخی)۔
فَإِذَا بَرِقَ الْبَصَرُ: اَیْ تَحَيَّرَ /وَشَخَصَ۔ حيران به شي نظر او کولاؤ به پاتے شي او نيغ به راوخي۔ او دا حالت به په وخت د مرګ کښې وي او کله چه جهنمويني۔
وَخَسَفَ الْقَمَرُ: او په دے ورځ به سپوږمۍ همیشه دپاره خپله رنړا دلاسه ورکړي، او نمر او سپوږمۍ دواړه به راجمع کړے شي، د دواړو رنړا به ختمه شي۔
او د شپے او ورځے يو بل پسے راتلل به اُودریږي، په دے ورځ به انسان د ډیرے ویرے او ګهبراويدو نه څلور واړه طرفته د تیښتے کوشش کوي، لیکن دهٔ ته به د تیښتے هيڅ ځائے ملاوېږي نهٔ۔ دے وجے نه الله تعالىٰ وفرمايل:
﴿ كَلَّا لَا وَزَرَ ﴾ هرګز نهٔ، اُوس هيڅ يو ځائے د پناهئ نشته دے، اُوس خو تول د رب العالمين مخے ته ولاړ دي، او د خپل ځان په باره کښې د هغهٔ د فیصلے په انتظار دي، چه د جنت فیصله کیږي یا د جهنم۔
وَخَسَفَ: دا خُسُوف همیشه دپاره دے، او په دنیا کښې خسوف د قمر د لږ وخت دپاره وي۔
وَجُمِعَ الشَّمْسُ وَالْقَمَرُ: ١- حديث کښې دي: ثَوْرَانِ مُكَوَّرَانِ فِي النَّارِ۔
دواړه به په اُور کښې راجمع کړے شي يعنې د قيامت په ورځ به د نمر او سپوږمۍ نه د دوه غوايانو شکل جوړ کړے شي، او اُور ته به ګوزار کړے شي۔
(مشكل الآثار للطحاوي ١/٦٦) الصحيحة: (١/١٩٢) رقم (١٢٣) واصل الحديث في البخاري وله شاهد، مسند الطيالسي (٢١٠٣)۔
دا ددے دپاره چه چا د دوي عبادت کريدے هغه ملامته او خر کړے شي۔ چه ستاسو معبود خو اُور ته وغورزيدو۔ او د عذاب دپاره غورزول نهٔ دي مراد۔ (خطابیؒ)
اسماعیلیؒ وائي: اُور ته داخلولو نه دا نهٔ لازميږي چه دوي ته به په اُور کښې عذاب ورکولے شي ځکه چه الله تعالىٰ په اُور کښې ملائك وغيره پيدا کريدي دے دپاره چه د اُور والو دپاره عذاب شي او آله د عذاب شي۔ نو دا دواړه به هم د اُور خشاك جوړ شي۔

ابن قُتیبة فرمائی :

[وَنَحْنُ نَقُوْلُ : اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَمْ يُعَذَّبَا بِالنَّارِ حِيْنَ اُدْخِلَاهَا، فَيُقَالُ : مَا ذَنْبُهُمَا، وَلٰكِنَّهُمَا خُلِقَا مِنْهَا ثُمَّ رُدَّا اِلَيْهَا]

مونږ وايو چه نمر او سپوږمۍ ته اُور نۀ ورکړے کيږي چه دا ووئيلے شي چه ددے څه ګناه ده، بلکه دا دواړه د اُور نه پيدا کړے شويدي نو بيرته به اُور ته واپس کړے شي۔

(تاويل مختلف الحديث : ۱/۱۰۱، والبدور السافرة للسيوطی ص ۱۷۹)

۲- فراءؔ او زجاجؔ وائی : [جُمِعَ بَيْنَهُمَا فِي ذَهَابِ ضَوْئِهِمَا]

يعنی دواړه به په خسوف کښې راجمع کړے شي يعنی دواړو نه به رڼا واخستے شي۔ (قرطبی)

۳- د ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهما نه روايت دے:

[ قُرِنَ بَيْنَهُمَا فِي طُلُوْعِهِمَا مِنَ الْمَغْرِبِ اَسْوَدَيْنِ]

چه دواړه به د مغرب د طرف نه په يو ځای خړ رابښکاره شي۔

٤- بعض وائی : يُجْمَعُ حَرُّهُمَا عَلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ۔

راجمع به کړے شي ګرمي د دواړو په انسانانو باندے په ميدان د قيامت کښې۔ (قرطبی)

**سوال** : الشمس خو مؤنث دے نو جُمِعَتْ ئے ولے نۀ وئيل؟

۱- **جواب** : فراءؔ او زجاجؔ وائی : دا په اصل کښې داسے دے [وَجُمِعَ بَيْنَهُمَا فِي ذَهَابِ نُوْرِهِمَا] يعنی دواړو ترمينځ به جمع والے وکړے شي په رڼا ختميدو کښې۔ نو دلته د رعايت د معنیٰ د وجه نه د جُمِعَتْ په ځای جُمِعَ ووئيل شو۔

۲- يا دا تانيث مجازی غير حقيقی دے۔ نو تانيث ورسره جائز دے۔

**فائده** : پدے آيتونو کښې مقصد د رڼاګانو زائل کول دی په طريقه د ترقی د ادنیٰ نه اعلیٰ ته، يعنی اول ئے بصر ذکر کړو چه ددے رڼا کمه ده، بيا ئے قمر ذکر کړو چه د بصر نه ئے رڼا زياته ده، بيا ئے شمس ذکر کړو چه د ټولو نه زياتے رڼا والا دے۔ (احسن الکلام)

يَقُوْلُ الْاِنْسَانُ : دا هم د قيامت هيبت ذکر دے۔ د انسان نه مراد هر انسان دے مؤمن وي که کافر۔

اَيْنَ الْمَفَرُّ : دا مصدر دے په معنیٰ د فِرار (تيختے) سره۔ يا صيغه د ظرف ده۔ ځای د تيختے۔ (فراءؔ) او دا تيخته د الله تعالیٰ نه کوی د وجه د شرم نه، يا د جهنم نه ئے کوی د

وجه د سختیے یرے نه۔

کَلَّا: دا ردعیه دے، یعنی فرار (تیښته) نشي کیدے۔ او لا وَزَرَ د کَلَّا تفسیر دے۔ یا پدے کښې ترقي ده یعنې ځای د پناه ځے نشته نو تیښته به چرته وکړي۔

وَزَرَ: په لغت کښې هر هغه شي ته وائي چه په هغې سره پناهي حاصلیږي لکه قلعه، او غر وغیره۔ اَیْ لَا مَلْجَأَ۔ نشته ځای د پناه ځے او د آوړیدو۔

یا لَا وَزَرَ مِنِّیْ یَوْمَئِذٍ: الله فرمائي: زما نه هیچرته ستا ځای د پناه ځے نشي کیدے۔

إِلَى رَبِّكَ: دائے د تخصیص دپاره مقدم کړیدے۔

اَلْمُسْتَقَرُّ: ١- اَیِ الْمَرْجِعُ وَالْمُنْتَهٰى وَالْمَصِیْرُ۔ ځای د رجوع او انتهاء او ورګرزیدو۔

٢- یا ځای د آخري فیصلے۔

٣- یا مستقر مصدر دے په معنیٰ د قراري سره۔ یعنې په دغه ورځ به تول خلق الله تعالیٰ ته قرارے ونیسي، د هغۀ په مخکښې به ذلیله ولاړ وي۔

٤- یا معنیٰ دا ده خاص ستا رب ته سپارلے شویدے ځای د وسیدو د بندګانو چه یا به جنت وي یا به جهنم وي۔

| |
|---|
| يُنَبَّأُ الْإِنْسَانُ يَوْمَئِذٍ بِمَا قَدَّمَ |
| خبر به ورکړے شي انسان ته په دغه ورځ په هغه عمل چه مخکښې ئے لیږلے دے |
| وَأَخَّرَ ﴿١٣﴾ بَلِ الْإِنْسَانُ عَلٰى نَفْسِهِ بَصِيرَةٌ ﴿١٤﴾ وَلَوْ أَلْقٰى |
| او روستو ئے پریخے دے۔ بلکه انسان په ځان خپل باندے لیدونکے دے۔ اګر که کوزار |
| مَعَاذِيرَهُ ﴿١٥﴾ لَا تُحَرِّكْ بِهِ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهِ ﴿١٦﴾ |
| کړي عذرونه خپل۔ مۀ خوزوه پدے (قرآن) باندے ژبه خپله چه جلتي کوے پدے۔ |
| إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ ﴿١٧﴾ |
| یقیناً په مونږ باندے جمع کول ددے دي (په سینه کښې) او لوستل ددے دي (په ژبه |
| فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ﴿١٨﴾ |
| ستا)۔ نو کله چه اُولولو مونږ دا تا ته نو تابعداري کوه د لوستلو د هغې۔ (روان شه |

| ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ ﴿١٩﴾ |
|---|
| په لوستلو ددے پسے) بيا يقيناً په مونږ باندے بيانول ددے دی۔ |

**تفسير** : يُنَبَّأُ: يعنی په دے ورځ به هر انسان ته ددهٔ د ښو اعمالو او بدو اعمالو خبر ورکړے شی۔

بِمَا قَدَّمَ وَأَخَّرَ: ددے درے مطلبونه دی (١) بِمَا قَدَّمَ فِی الْحَيَاةِ وَاَخَّرَ بَعْدَ الْمَوْتِ۔

يعنی ژوند کښې ئے يو عمل کړيدے نيکی يا بدی، او د مرګ نه روستو ئے يوه صدقه جاريه يا ګناه پريخے ده۔ د نيکئ او بدئ دواړو سره لګی۔

(٢) بِمَا قَدَّمَ وَاَخَّرَ اَیْ بَاَوَّلِهٖ وَآخِرِهٖ۔ يعنی مخکنی او روستنی ټول اعمال د وړوکوالی نه تر مرګه پورے۔

(٣) بِمَا فَعَلَ وَمَا تَرَکَ۔ يعنی کوم عملونه ئے چه کړی وی او کوم ئے چه پريخی وی، ورته وئيلے به شی چه په فلانئ ورځ دے دا عمل وکړو او دا فلانے عمل دے پريخودو۔ دا کول پکار وو۔

او دا خبر به کله ورکړے کيږی؟ پدے کښې د مفسرينو دوه قوله دی:

(١) بعض وائی چه دا خبر به انسان ته ددهٔ د اعمالو د وزن کولو په وخت ورکړے کيږی،

(٢) او ځينے وائی چه دا خبر به دهٔ ته د مرګ په وخت ورکولے کيږی۔ د قرطبیؒ په نيز اولنے قول غوره دے۔

بَلِ الْإِنسَانُ عَلَىٰ نَفْسِهِ بَصِيرَةٌ: دا ترقی ده د (يُنَبَّؤُ) نه۔ يعنی اخبار ته ضرورت نشته بلکه انسان به خپله خپل ځان وينی۔

(١) ددے يو مطلب دا دے چه د انسان اندامونه او جوارح به ددهٔ د کړو ګواهی ورکوی، الله تعالیٰ فرمايلی دی:

﴿ يَوْمَ تَشْهَدُ عَلَيْهِمْ أَلْسِنَتُهُمْ وَأَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾

(په کومه ورځ چه د کافرانو ژبے، د دوئ لاسونه او د دوئ خپے به د دوئ په خلاف د دوئ د کړو ګواهی ورکوی)۔

(٢) حسن بصریؒ ددے تفسير دا بيان کړے چه په دے ورځ به هر انسان د خپلو عيبونو او نقصانونو نه ښهٔ خبر وی، اګرکه د عذاب نه د بچ کيدو ناکام کوشش کښې به دروغژن

عذرونه پیش کوی، لیکن د هغې هیڅ فائده به دهٔ ته نهٔ رسیږی۔ او پدې به پو هیږی چه زما دا عذرونه غلط دی او زهٔ لوی مجرم یم۔

(۳) قتادة وائی : د وَلَوْ أَلْقَىٰ مَعَاذِيرَهُۥ جزاء پټه ده أَیْ لَا تُقْبَلُ۔ یعنی اګرکه عذرونه وکړی خو هغه به نهٔ قبلیږی۔

بَصِيرَةٌ : کښې تاء د مبالغې دپاره ده، نهٔ د تانیث دپاره۔ یا د انسان نه مراد جوارح (اندامونه) دی۔ اَیْ جَوَارِحُهُ شَاهِدَةٌ۔ (ددهٔ اندامونه به ګواه وی)۔

مَعَاذِيرَهُ: ۱- جمع د مَعْذِرَةٌ ده خلاف القياس۔ عذرونو ته وائی۔

۲- زجاج وائی : معاذیر جمع د مِعْذَار ده پردو ته وائی۔ یعنی اګرکه په ځان باندې پردې واچوی، او خپل عملونه پټوی د وجه د شرم نه۔

لَا تُحَرِّكْ: اُوس د قرآن په باره کښې ادب بیانوی۔

## مناسبت :

ځینو مفسرینو دلته دا حیرانتیا ښکاره کړیده چه د قیامت پسې سمدست د قرآن کریم خبره څنګه شروع شی؟۔ مګر د حیرانتیا هیڅ خبره نشته ځکه چه یواځې خو پدې سورت کښې دا کار نهٔ دې شوې بلکه په اکثرو ځایونو کښې الله تعالیٰ د قیامت او د قرآن کریم جمع والې کوی نو هغې سره به څه کوی؟ لکه سورة الواقعه او سورة الحاقه کښې تیر شو۔

۱- نو بیا ئې ددې دپاره وجوهات بیان کړیدی چه مخکښې ذکر د عذاب وو، نو اُوس هغه کتاب بیانوی چه هغه مشتمل دې په اعمالو دپاره د دغه ورځې۔

۲- یا اَلْكَافِرُ يَسْتَعْجِلُ بِالْعَذَابِ وَالرَّسُوْلُ كَانَ يَتَعَجَّلُ بِالْقُرْآنِ۔

کافر انسان په عذاب باندې جلتی کوی۔ او رسول الله ﷺ به د قرآن په تلفظ باندې جلتی کوله۔ مګر دا خو څه مناسبت نهٔ دې۔

۳- زمونږ مشائخ داسې مناسبت بیانوی چه پدې سورت کښې د جمع العظام موضوع ده، او پدې ځای کښې هم جمع القرآن ذکر ده۔

لیکن حقه دا ده چه د قرآن او د قیامت ترمینځ ډیر زور تعلق دې، لکه د سلو نه په زیاتو آیتونو کښې دواړه جمع شویدی۔

﴿وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالآخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ﴾ (انعام: ۹۲) ﴿وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِآيَاتِنَا وَلِقَاءِ الآخِرَةِ﴾ (اعراف: ۱٤۷) لکه سورة التکویر بیا جمع کریدی۔

## شان نزول

په بخاریؒ او مسلمؒ کښې د ابن عباس ﷺ نه نقل شوی دی چه
[كَانَ النَّبِيُّ ﷺ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ الْوَحْيُ حَرَّكَ بِهٖ لِسَانَهٗ وَوَصَفَ سُفْيَانُ : يُرِيْدُ اَنْ يَّحْفَظَهٗ، فَاَنْزَلَ اللّٰهُ : ﴿لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ﴾

چه رسول الله ﷺ باندے به چه کله وحی نازلیدله نو هغویٔ به شونډے خوزولے۔(دے دپاره چه که جبریل ؑ لاړ شی نو بیا به ئے د چا نه یادوم) نو هغهٔ ته ووئیلے شو چه د آیتونو یادولو لپاره خپله ژبه مهٔ خوزوه، دا زمونږ ذمه داری ده چه مونږ به دا ستا په سینه کښې محفوظ کوو دے دپاره چه د وحی نازلیدو نه پس تهٔ دا اولولے۔ دے وجے نه کله چه مونږ پوره وحی نازله کړو، بیا تهٔ هغه لوله۔ بیا ددے د بیانولو ذمه واری هم په مونږ ده۔ (بخاری: ٤۹۲۷)

د بخاریؒ په یو بل روایت کښې دی:
[فَكَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ بَعْدَ ذٰلِكَ إِذَا أَتَاهُ جِبْرِيْلُ اسْتَمَعَ فَإِذَا انْطَلَقَ جِبْرِيْلُ قَرَأَهُ النَّبِيُّ ﷺ كَمَا قَرَأَهٗ] (بخاری رقم: ٥) مسلم: ۱۰۳)

چه ددے نه پس رسول الله ﷺ خواته به چه کله جبریل ؑ وحی راوړله نو هغهٔ به غور سره آوریدله، او کله به چه جبریل ؑ لاړ، نو هغهٔ به هغه شان لوستله څنګه چه به جبریل ؑ لوستلے وه۔

د سورتِ طه په (۱۱٤) آیت کښې الله تعالیٰ همدا مضمون داسے فرمایلے دے:
﴿وَلَا تَعْجَلْ بِالْقُرْآنِ مِنْ قَبْلِ اَنْ يُّقْضٰى إِلَيْكَ وَحْيُهٗ﴾
(تهٔ د وحی ختمیدو نه مخکښې په قرآن لوستلو کښې تادی مهٔ کوه)۔

حافظ ابن کثیرؒ د شعبیؒ، حسن بصریؒ، قتادهؒ، مجاهدؒ او ضحاکؒ او نورو نه نقل کړی دی چه ددے آیتونو د نازلیدو سبب هغه دے کوم چه پورته بیان شو، یعنی الله تعالیٰ خپل رسول ته د وحی د علم حاصلولو طریقه ښودلے ده۔ انتهیٰ۔

او دا د رسول الله ﷺ معجزه وه ګنے داسے لوی کلام په یو کرت یادیدل ګران کار وی۔

جَمْعَهُ : اَیْ فِیْ صَدْرِكَ - يعنى زما په ذمه باندے ستا په سينه كښ ددے راجمع كول دى۔

وَقُرْآنَهُ : او ددے لوستل دى۔ اَیْ تَقْرَاَهُ بَعْدُ عَلَى النَّاسِ - يعنى بيا به ئے ته په خلقو باندے لوستلے شے۔

فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ: اَیْ اِسْتَمِعْ وَاَنْصِتْ - يعنى هغے ته غوږ كيده، چپ شه او مشغله پريده۔

ثُمَّ اِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ: ددے دوه مطلبه دى :

(۱) اَیْ اِنَّ عَلَيْنَا تَوْضِيْحَ مُشْكِلَاتِهٖ۔

(يعنى زما په ذمه دے وضاحت د مشكلاتو ددے) يعنى كه په يو آيت نۀ پو هيدے نو ما نه تپوس كوه زۀ به درته جواب دركوم۔

(ځكه چه كله نا كله د قرآن كريم په بعض آيتونو به رسول الله ﷺ خپله هم نۀ پو هيدو نو بيا به ئے د جبريل عليه السلام نه تپوس وكړو نو جواب به راغے)

(۲) اِنَّ عَلَيْنَا تَوْضِيْحَهٗ بِلِسَانِكَ۔

يعنى بيا به زۀ ددے كتاب ستا په ژبه وضاحت كوم۔

مفسرينو ليكلى دى چه نبى كريم ﷺ په خپله دريشت كاله نبوى ژوند كښ د قرآن كريم د تشريح او توضيح دپاره چه څۀ وئيلى او كړى دى، او د څو مره خبرو تائيد ئے چه كړے دے او د څو مره خبرو نه ئے چه منع كړے ده، چه ديته د اسلام په ژبه كښ ((حديث)) وئيلے كيږى،

دا ټوله ذخيره د الله له طرفه د نازلے شوے وحى برخه وه، او اگركه قرآن نۀ وو، ليكن د قرآن په پورتنى آيت كښ د موجوده ربّانى وعدے مطابق، دا ذخيره د قرآن تشريح او ددے بيان وو، او امت دپاره د آسمانى وحى په حيثيت سره واجب الاتباع وه۔

الله تعالىٰ د سورة النجم په (۳/ ٤) آيتونو كښ ددے خبرے په تائيد كښ فرمايلى دى :

﴿ وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْیٌ يُّوْحٰى ﴾

(د الله نبى په خپل خواهش سره هيڅ خبره نۀ كوى، هغه خو صرف وحى ده چه هغه نازليږى)۔

نو پدے آيت كښ الله تعالىٰ د قرآن او د حديث دواړو د حفاظت ذمه وارى اخستے ده۔

| كَلَّا بَلْ تُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ ﴿٢٠﴾ |
|---|
| هیچرې د آخرت نه انکار نۀ دے پکار، بلکه تاسو مینه کوئ د دنیا سره۔ |
| وَتَذَرُوْنَ الْاٰخِرَةَ ﴿٢١﴾ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ ﴿٢٢﴾ اِلٰى رَبِّهَا |
| او پریدئ تاسو آخرت لره۔ بعض مخونه به په دغه ورځ تروتازه وی۔ رب خپل ته به |
| نَاظِرَةٌ ﴿٢٣﴾ وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍۢ بَاسِرَةٌ ﴿٢٤﴾ تَظُنُّ |
| کتونکی وی۔ او بعض مخونه به په دغه ورځ تراوۀ وی (بدرنګه وی)۔ یقین به کوی |
| اَنْ يُّفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ ﴿٢٥﴾ |
| چه ویه کړے شی د دوی سره آفت ملا ماتونکے۔ (ناکاره معامله)۔ |
| كَلَّا اِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ ﴿٢٦﴾ وَقِيْلَ مَنْ ۜ |
| هیچرې داسے نۀ ده، کله چه اُورسی روح مرئ ته۔ او اُوئیلے شی څوك دے |
| رَاقٍ ﴿٢٧﴾ وَّظَنَّ اَنَّهُ الْفِرَاقُ ﴿٢٨﴾ وَالْتَفَّتِ السَّاقُ |
| دم اچونکے۔ او ګمان اُوکړی چه دا وخت د جدائی دے۔ او یو ځائے شی یوه پونډئ |
| بِالسَّاقِ ﴿٢٩﴾ اِلٰى رَبِّكَ يَوْمَئِذِ الْمَسَاقُ ﴿٣٠﴾ |
| د بلے پونډئ سره۔ خاص رب ستا ته په دغه ورځ ورتلل دی۔(ورچلیدل دی) |

**تفسیر**: اُوس بیرته د آخرت خبره ذکر کوی۔ او انسان ته د آخرت په باره کښ د فکر کولو نصیحت کوی۔ فرمائی: چه تاسو دنیا، ددے د خوندونو او ددے د شهوتونو پسے منډے وهئ، او د آخرت د فکر نه غافله یئ، په دے وجه چه د دنیا خوندونه فوراً حاصلیږی، او د آخرت نعمتونه د سترګو نه غائب دی، حالانکه که تاسو د عقل او پوهے نه کار اخستلے، په ابدی انجام باندے ستاسو نظر پریوتلے، نو آخرت به مو په دنیا باندے غوره کولے، او د قیامت په ورځ به تاسو ته داسے همیشه خوشحالی ملاویدله چه د هغے نه پس به هیڅ کله بدبختی او غم او مصیبت ستاسو خوا ته هم نۀ درتلو۔

كَلَّا: دا ردع ده د انکار نه۔ یعنی هیچرې د آخرت نه انکار نۀ دے پکار۔

اَلْعَاجِلَةَ: هغه شے دے چه زر ملاویدونکے وی، او دا د دنیا نوم دے۔ یا ورته عاجله پدے وجه وائی چه زر فناء کیږی۔

❁ یعنی تاسو د دنیا سره مینه لرئ پدے وجه د آخرت نه انکار کوئ۔

❁ دارنګه کوم انسان چه د قرآن نه اعراض کوی نو دهغے وجه د دنیا محبت وی۔

❁ او دارنګه د دنیا محبت سبب دے د پریخودو د آخرت۔

او پدے کښې اشاره ده چه د قرآن او د دین د کارونو سره عجلت مناسب نهٔ دے۔

وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ: کوم خلق چه په دنیا باندے آخرت غوره کوی، د قیامت په ورځ به د دوئ مخونه تر او تازه، پرقیدونکی او رنړا والا وی، او جنت او ددے قیمتی نعمتونو موندلو سره به انتهائی خوشحاله وی۔ او دوئ ته به د ټولو نه لوئے نعمت دا ملاویږی چه د دوئ رب به د دوئ مخے ته راښکاره کیږی، چه د هغهٔ په لیدلو سره به دوئ ته داسے خوشحالی ملاؤ شی چه د هغے نه په الفاظو کښې تعبیر نشی کیدے، او ددے نه پس به دوئ د جنت تمام نعمتونه هیر کړی۔

نَاضِرَةٌ: د نضرت نه دے تر او تازه ګیٔ او خوشحالیٔ ته وائی۔

اِلٰى رَبِّهَا: دائے په نَاظِرَةٌ باندے مقدم کړو، پدے کښې اشاره ده چه ددے جنتیانو مقصد به صرف او صرف همدغه د خپل رب دیدار وی، ددے نه لوی به بل هیڅ نعمت نهٔ ښکاره کیږی۔

نَاظِرَةٌ: د عربی ژبے دا قانون دے چه کله د نظر په صله کښې (اِلٰى) لفظ راشی نو هغه صرف په معنیٰ د نظر او کتلو سره وی، او د انتظار په معنیٰ سره نهٔ وی لکه دا په ډیرو آیتونو کښې راغلی دی: (سورة توبه: (۱۲۷) اعراف (۱۹۸) و سورة یونس (٤٣) او سورة عبس (٢٤) او سورة احزاب (۱۹) او سورة محمد (۲۰) آیت۔

او دا خبره امام بیهقیؒ په کتاب الرؤیة رقم (٦۱) کښې ذکر کړیده۔

او دائے هم وئیلیٰ دی چه کله د وجوه (یعنی مخونو) سره نظر ذکر شی نو ددے معنیٰ د سترګو د نظر سره وی۔

او دا ښکاره دلیل دے چه په قیامت کښې او په جنت کښې د الله تعالیٰ لیدل حق دی، او دا د جنتیانو دپاره د ټولو نه لوی نعمت دے۔

عبد الله بن عباس ﷺ معنیٰ کوی: (نَظَرَتْ اِلَى الْخَالِقِ) خپل خالق ته به ګوری۔

(البیهقی فی الرؤیة رقم: ٦٤)

حسنؒ وائی: [نَظَرَتْ اِلٰی رَبِّهَا عَزَّ وَجَلَّ فَنَضَرَتْ بِنُوْرِهٖ]

پدے وجه به مخونه ښائسته شوی وی چه خپل رب ته به گوری.

الرؤیة للدارقطنیؒ: ١٦٧ عن الحسن)

او همدا مذهب د ټولو سلفو صالحینو دے.

او پدے باندے د قرآن کریم ګنړ آیتونه او د رسول الله ﷺ متواتر احادیث دلیل دے لکه چه ددے تفصیل په تفسیر د سورة الانعام کښې ذکر شویدے.

او په حدیث د مسلم کښې دی:

[اِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ رَبَّكُمْ عَيَانًا كَمَا تَرَوْنَ هٰذَا الْقَمَرَ، لَا تُضَامُّوْنَ فِیْ رُؤْيَتِهٖ].

یقیناً تاسو به خپل رب داسے ښکاره وینئ لکه چه دا سپوږمئ وینئ، د هغهٔ په لیدو کښې به ټیل ټال نهٔ کوئ. (مسلم: ١٤٦٦)

او د الله تعالیٰ لیدل د مخلوق د لیدو سره مشابهت لری.

او کوم علماء چه د الله تعالیٰ د رؤیت (لیدو) نه منکر دی، نو هغوی پدے مقام کښې داسے تاویلات کوی ((د ثواب او د نعمتونو د رب انتظار به کوی)).

نو په هغے باندے ثعلبیؒ او از هریؒ رد کړیدے او قرطبیؒ نقل کړیدی چه دا قول خطاء دے، د ظاهر د آیت او د احادیثو خلاف دے.

او په حدیث د صهیب ﷺ کښې دی:

[فَيُكْشِفُ الْحِجَابَ فَمَا اُعْطُوْا شَيْئًا اَحَبَّ اِلَيْهِمْ مِنَ النَّظَرِ اِلٰی رَبِّهِمْ عَزَّ وَجَلَّ].

الله به پرده لرے کړی نو دوی ته به د خپل رب ته د نظر کولو نه زیات محبوب بل کوم شے نهٔ وی ورکړے شوے. (مسلم: ٤٦٧)

او ددے مسئلے په باره کښې د علامه شوکانیؒ کتاب (اَلْبُغْيَةُ فِیْ مَسْأَلَةِ الرُّؤْيَةِ) او د حافظ ابن القیمؒ کتاب ((حادی الارواح الی بلاد الافراح ص: ١٩٦) الباب الخامس والستون))

وګورئ چه پدے کښې ئے د دواړو فریقینو تفصیلی دلیلونه عقلی او نقلی ذکر کړیدی.

وَوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍۢ بَاسِرَةٌ: او کوم خلق چه دنیا او ددے عارضی خوندونه په جنت او ددے په همیشه خوشحالیو باندے غوره کوی، د قیامت په ورځ به د دوی مخونه د غم او درد له وجے انتهائی بے رونقه او خړ او بدرنګه وی، په دوی به د غم او تکلیف په سبب توروالے

راخور شوے وی، ځکه چه دوئ ته به یقین راغلے وی چه نن دوئ لپاره هیڅ خیر نشته، دوئ لـه به داسے سزا ورکړے کیږی چه د دوئ د ملا تیر به ټکړے ټکړے کړی. یعنی دوئ به په بیحده سخت عذاب کښې اخته کړے شی۔

تَظُنُّ أَنْ يُفْعَلَ بِهَا فَاقِرَةٌ : یعنی یقین به ئے راشی چه دوئ سره به وکړے شی هغه آفت چه ملا به ورله ماته کړی۔

فَاقِرَةٌ : ١- د فَقَارُ الظَّهر نه دے، اَیْ كَسَرَتُ فَقَارَ ظَهْرِہٖ ۔ یعنی دا مصیبت به ورله د شا ډبرئ او تیر مات کړی۔ نو فاقره نه مراد ((آفت ملا ماتونکے)) دے۔

او چه کله د انسان ملا ماته شی نو بیا د ځای نه نشی پاځیدے او ډیر سخت درد کوی چه د برداشت نه بهر وی۔

٢- اَلدَّاهِيَةُ الْعَظِيْمَةُ۔ لوی آفت او مصیبت۔

٣- قتادة ئے په شر سره معنیٰ کوی،

٤- او سدیؔ ئے په هلاکت سره،

٥- او ابن زیدؔ ئے په دُخُولِ النار سره۔ او فاقره په اصل کښې دے ته وائی، د اُوښ په پوزه باندے په وسپنه یا اُور سره داغ ورکول تردے چه هډوکی ته ورسیږی۔

كَلَّا: دا ردع ده د حُبُّ الْعَاجِلَه نه۔ یعنی اے خلقو! د دنیا سره مینه مهٔ کوئ ځکه چه مرګ راروان دے۔ یا د قیامت نه انکار نهٔ دے پکار۔

إِذَا بَلَغَتِ التَّرَاقِيَ: پدے آیتونو کښې هم په مشرکانو باندے د بعث بعد الموت د عقیدے په باره کښې رد دے۔ چه ستاسو ګمان د آخرت په باره کښې غلط دے، بلکه تاسو به خامخا دوباره ژوندی کیږئ۔ کله چه ستاسو روح د مرئ هډوکی پورے را اورسی، او ستاسو خپل خپلوان ستاسو دا سخت حالت اووینی او په بے وسئ کښې چغے کړی چه څوك شته دے چه هغه د دَم درود په ذریعه ددهٔ بیماری او غم اودرد لرے کړی، او ستاسو یقین راشی چه اُوس به تاسو خپل اهل او عیال او خپل خپلوان پریدئ او کوچ به کوئ، په دے ورځ به تاسو آخرت طرفته روان کړے شئ۔

ستاسو بدنونه به په خاوره کښې دفن کړے شی، او ستاسو روح به ستاسو د رب خواته اورسیږی، دے دپاره چه د قیامت په ورځ تاسو ژوندی کړی او ستاسو د انجام په باره کښې خپله فیصله صادره کړی۔

اَلتَّرَاقِيَ: جمع د تَرْقُوَةٌ ده، او د هر انسان دوه ترقوته دي، او دا دوه هډوکي دي چه هغه د مرئ نه ښي او کس طرفته چاپیره وي. او جمع ئې ذکر کړه پدې کښې مبالغه ده چه د مرئ په هر طرف باندې به د ساه وتلو مصیبت وي.

رَاقٍ: ۱- (دم اچونکې) لکه د خلقو عادت دا وي چه کله څوك بیمار شي، نو ووائي چه دمګرې ورله راوغواړئ، سړې مري چه دم پرې واچوي، او دې وخت کښې ورله ډاکټر راغواړي لیکن دا یو ئې هم نشي بچ کولې.

۲- یا راق د رَقِیَ یَرْقٰی (سمع) نه دې په معنیٰ د ختلو سره. او دا وینا د ملائکو ده، یعنی ملائك به خپل مینځ کښې ووائي چه څوك دې چه ددهٔ روح بره وخیژوي د بدن نه مستقر د ارواحو ته. او په مَنْ باندې سکته د اولې توجیه مطابق د وجه د خفګان د حاضرینو نه ده، او د دویمې توجیه مطابق د وجه د ابهام د راقي نه ده.

اَنَّهُ الْفِرَاقُ: یعنی دا (مصیبت) وخت د جدایئ دې. اُوس زهٔ د خپل ښځې، بچو او مور او پلار او مال متاع او کور هر څه نه جدا کیږم، دلته ورته د عملونو او د ګناهونو حالت رامخې ته شي چه زهٔ خو بد عمله یم او هیڅ مې نهٔ دي کړي، تش تور روان یم. نو دومره غم به پرې راخور شي که نهٔ مري هم به مري.

وَالْتَفَّتِ السَّاقُ بِالسَّاقِ : ۱- یعنی دواړه پونډئ ورله خلق یو ځای نیغې کړي، دې دپاره چه خپې ئې کږې نشي.

۲- یا کنایه ده د سختئ د تکلیفونو نه. اَیْ تَتَابَعَتْ عَلَیْهِ الشَّدَائِدُ.

یعنی تکلیفونه او سختیانې پرې پرله پسې راشي.

دلته د مرګ تکلیف، د جدایئ تکلیف، د عملونو تکلیف، دلته د ملك الموت لیدل دي، ډیرې غټې خبرې مخې ته راروانې دي.

اِلٰی رَبِّكَ یَوْمَئِذِ الْمَسَاقُ : یعنی اې انسانه تهٔ اُوس خپل رب ته روانیږې، آیا تا د هغه دپاره څه تیارې کړیدې؟!.

که یو تن د الله تعالیٰ نه په بغاوت کښې زندګي تیره کړې وي نو په واقعه د ابو حازمؒ او سلیمان بن عبد الملكؒ کښې ددې مثال داسې ذکر شویدې لکه یو غلام چه د بد اخلاقه مولیٰ نه تښتیدلې وي او هغه پسې سړي ولیږي او هغه ئې راروان کړې وي نو هغه به څومره پریشانه وي، چه ما سره به مولیٰ څه کوي، نو الله تعالیٰ هم دغه شان سلوك ددې

بنده سره کوي۔ او د مؤمن مثال داسې وي كَالْغَائِبِ يَقْدُمُ عَلٰى اَهْلِهٖ۔

لکه يو تن په سفر تلې وي او بيرته خپلې ښځې او بچو او مور او پلار ته راواپس کيږي، نو ځو مره خوشحاله وي، په لاره کښې ورته د سفر د وجه نه تکليف وي ليکن زړه ئې خوشحاله وي، نو دارنګه په وخت د مرګ کښې مؤمن ته هم تکليف وي ليکن زړه ئې خوشحاله وي۔ (حلية الاولياء ۲۳٤/۳)

نو پدې آيت کښې مونږ ته هم دا دعوت دې، چه انسان روزانه خپلو سترګو سره دا ننداره وينې چه خلق د يې وسئ په حالت کښې مرهٔ کيږي، او هيڅوك دوئ نشي بچ کولې۔ د دوئ روحونه د خاکي بدن نه اوځي او خپل خالق خواته ورځي۔

پکار خو دا وه چه انسان د مرګ ددې ننداړو نه عبرت حاصلولې، او په آخرت کښې د اُور د عذاب نه ئې د بچ کيدو تدبير کولې، ليکن دا ددهٔ بد قِسمتي ده چه داسې نهٔ کوي۔

| فَلَا صَدَّقَ وَلَا صَلّٰى ﴿۳۱﴾ وَلٰـكِنْ كَذَّبَ |
|---|
| نو تصديق ئې نهٔ دې کړې او نهٔ ئې مونځ کړيدې۔ ليکن تکذيب ئې کړيدې (د حق) |
| وَتَوَلّٰى ﴿۳۲﴾ ثُمَّ ذَهَبَ إِلٰى أَهْلِهٖ يَتَمَطّٰى ﴿۳۳﴾ أَوْلٰى لَكَ |
| او اوړيدلې دې (د طاعت نه)۔ بيا لاړو خپل کور والا ته تکبر کوي۔ هلاکت دې تا لره |
| فَأَوْلٰى ﴿۳٤﴾ ثُمَّ أَوْلٰى لَكَ فَأَوْلٰى ﴿۳۵﴾ أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ |
| نو هلاکت دې۔ بيا هلاکت دې تا لره نو هلاکت دې۔ آيا ګمان کوي انسان چه |
| أَنْ يُتْرَكَ سُدًى ﴿۳٦﴾ أَلَمْ يَكُ نُطْفَةً مِّنْ مَّنِيٍّ يُّمْنٰى ﴿۳۷﴾ |
| پرې به خودې شي مهمل (بيکاره)۔ آيا نهٔ وو دې تکړه د مني چه اچولې شي په رحم |
| ثُمَّ كَانَ عَلَقَةً فَخَلَقَ فَسَوّٰى ﴿۳۸﴾ فَجَعَلَ مِنْهُ الزَّوْجَيْنِ |
| کښې۔ بيا شوه تکړه د وينې نو پيدا ئې کړو او برابر ئې کړو۔ نو وې کړ ځول ددهٔ نه دوه |
| الذَّكَرَ وَالْأُنْثٰى ﴿۳۹﴾ أَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلٰى أَنْ يُّحْيِيَ الْمَوْتٰى ﴿٤۰﴾ |
| جوړې نارينه او زنانه۔ آيا نهٔ دې دغه ذات قدرت لرونکې په دې چه ژوندي کړي مړي۔ |

**تفسیر**: اُوس د کافر او متکبر او غافل انسان حالت بیانوی چه دهٔ عیبونه راجمع کړیدی، الله تعالیٰ وفرمایل چه دهٔ د الله تعالیٰ آیتونه دروغژن وګڼړل، د هغهٔ د نعمتونو نه ئې انکار وکړو، په خپل ژوند کښې ئې د خپلو مونځونو اهتمام نهٔ دے کړے، حق دین ئې دروغژن وګڼړلو او د طاعت او بندګئ په لاره لانهٔ ړو، او ددے تمامو ګناهونو کولو باوجود هغه خاطر جَمعه اوسیږی، او د الله تعالیٰ د ویرے د وجے نه ئې هیڅ کله د توبے سوچ نهٔ دے کړے، بلکه تکبر سره په نخره روان خپل کور والو ته لاړو۔

کَذَّبَ: اَیْ بِالْقَلْبِ۔ یعنی دروغجن ئې وګڼړلو په زړه سره۔

وَتَوَلّٰی: اَیْ عَنِ الطَّاعَةِ۔ یعنی واوړیدو د طاعت نه۔ یعنی حق نهٔ منی چه هغه قرآن دے۔ دلته الله تعالیٰ د تصدیق سره صرف مونځ یو ځای ذکر کړو پدے کښې د مانځه ډیر لوی قدر ته اشاره ده۔ نو تکذیب ضد د تصدیق شو او تولی د مانځهٔ او نورو فرائضو پریخودل شو۔ او بیائې ددے نه روستو نور وعید بیان کړو۔

(تعظیم قدر الصلاة رقم: ٥٢) لمحمد بن نصر المروزی)

ثُمَّ ذَهَبَ اِلٰٓی اَهْلِهٖ یَتَمَطّٰی: اَیْ یَخْتَالُ وَیَتَبَخْتَرُ۔ یعنی تکبر او نخرے کوی په مزل کښې۔

یَتَمَطّٰی: دا د مَطَا نه دے ملا ته وائی۔ اَیْ یَلْوِیُ مَطَاهُ۔ کږوی او تاووی ملا خپله په مزل کښې او لاسونه وهی۔ بعض وائی: یتمطی په اصل کښې یَتَمَطَّطُ دے، تَمَطُّطُ اُوږدوالی او درون والی ته وائی۔ اَیْ یَتَثَاقَلُ وَیَتَکَاسَلُ عَنِ الدَّاعِیْ اِلَی الْحَقِّ۔

یعنی د حق د داعی نه ځان دروند کوی او سستی کوی۔

او په قرآن کریم کښې دا خبره هم زیاته ده چه په دنیا کښې ډیره خوشحالی کول د جهنمیانو صفت دے۔

قارون ته وویل شو: ﴿ لَا تَفْرَحْ اِنَّ اللّٰهَ لَا یُحِبُّ الْفَرِحِیْنَ ﴾ (القصص: ٧٦)

(په دنیا کښې ډیره خوشحالی مهٔ کوه ځکه چه الله تعالیٰ په تکبر سره خوشحالی کونکی نهٔ خوښوی)

او د آخرت او د قبر هیڅ غم ورسره نهٔ وی، مؤمن سرے به غمجن وی

﴿ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْٓ اَذْهَبَ عَنَّا الْحَزَنَ ﴾۔ (فاطر: ٣٤)

(شکر دے هغه الله لره چه زمونږ نه ئې ټول غمونه او خفګانونه ختم کړل)

أَوْلٰی لَكَ فَأَوْلٰی : شان نزول

واحدیؒ د مفسرینو قول نقل کړے دے چه رسول الله ﷺ د ابو جهل لاس اونیولو، بیائے ووېل چه ستا دپاره ډیره د بربادۍ دپاسه بربادي وي، نو ابو جهل ووئیل: ته ماته د څهٔ شئ ګوابن کوے، ته او ستا رب زما هیڅ شے نشئ خرابولے، زهٔ ددے علاقے معزز ترین انسان یم۔ نو دا آیتونه نازل شو، او الله تعالیٰ د خپل رسول په تائید کښ ددے کافر او متکبر انسان انجام اوښودلو چه دهٔ دپاره هلاکت او بربادي ده۔

مفسرینو لیکلي دي چه [أولیٰ] لفظ څلور کرته ذکرکولو نه مقصد دادے چه ددهٔ لپاره هلاکت او بربادي په ژوند کښ ده، او د مرګ نه پس هم ده، او په کومه ورځ چه دا دوباره اوچتیږي، او کله چه جهنم ته غورزیږي۔ او دا څکه چه دهٔ دغه څلور کارونه کړیدي۔

نسائيؒ، حاکمؒ، طبرانيؒ، ابن المنذرؒ او ابن جریرؒ اونورو د سعید بن جبیرؒ نه نقل کړي دي چه ما د ابن عباس ﷛ نه د ﴿أَوْلٰی لَكَ فَأَوْلٰی﴾ په باره کښ تپوس وکړو،

[أَشَيْءٌ قَالَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ أَوْ شَيْءٌ أَنْزَلَهُ اللّٰهُ ؟ قَالَ : قَالَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ ثُمَّ أَنْزَلَهُ اللّٰهُ]

آیا رسول الله ﷺ ابو جهل ته دا خبره د خپل طرفه کړے وه او که الله حکم ورکړے وو ؟ نو هغهٔ ووېل: نبي ﷺ دا د خپل طرفه وئیلي وو، بیا الله تعالیٰ دا په قرآن کښ نازل کړو۔ دے روایت ته حاکمؒ او ذهبيؒ د بخاريؒ او مسلمؒ د شرط مطابق صحیح وئیلي دي۔ (المستدرك: ۳۸۸۱) هیثميؒ وائي رجال ئے ثقات دي۔

أَوْلٰی : ۱- دا په معنیٰ د ویل (هلاکت) ده۔

۲- یا اَوْلٰی لَكَ الْهَلَاكُ مِنْ غَیْرِهٖ ۔ تا سره هلاکت لائق دے د سلامتیا نه۔ ❁ یا اَلْعَذَابُ اَوْلٰی لَكَ۔ عذاب ستا سره ډیر لائق دے۔ اوله معنیٰ ئے ظاهره ده۔

أَیَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَنْ یُّتْرَكَ سُدًی : یعنی انسان دا ګمان کوي چه دے به مُهمل پریخودے شي۔

یعنی الله تعالیٰ انسان بے غرضه او بیکاره نهٔ دے پیدا کړے، هغهٔ دا د خپل طاعت او بندګۍ لپاره پیدا کړے دے، دے وجے نه هغه دِے دا ګمان نهٔ کوي چه هغه په دے دنیا کښ د څناورو پشان پرېښودل شوے دے، بلکه الله تعالیٰ دا د اوامرو او منع کړو څیزونو مکلف جوړ کړے دے، او د قیامت په ورځ به دهٔ نه تپوس کیږي، او د ښو یا بدو اعمالو

مطابق به ورله جزاء يا سزا ورکړے کيږی۔

سُدًى: (۱) دا په دنيا کښ هم مراد دے، يعنى لَا يُؤْمَرُ وَلَا يُنْهٰى۔

چه دۀ ته به امر او نهى نۀ کيږى، او د الله تعالىٰ د کائناتو او نعمتونو نه به فائدے اخلى، او څه احکامو باندے به مکلف نۀ وى، څه عبادات او اعمال به ورته متوجه نۀ وى۔

(۲) سُدًى فِى الْقَبْرِ۔ يعنى په قبر کښ به مُهمل پروت وى، او هيڅ حساب او سوال وجواب به ورسره نۀ کيږى۔ او نۀ به بعث بعد الموت وى، او نۀ به روستو حساب کتاب وى۔ دا خيال ئے غلط دے ځکه چه دا د الله تعالىٰ د شان نه لرے ده چه ظالم او مظلوم او د عاصى او مطيع ترمينځ هيڅ فرق به نۀ کوى۔

اَلَمْ يَكُ نُطْفَةً: يعنى انسان که د خپل پيدائش په شروع باندے غور وکړى نو ايمان به راوړى چه واقعى الله تعالىٰ دۀ په دوباره ژوندى کولو باندے قادر دے۔

الله تعالىٰ وفرمايل: انسان ته بنۀ معلومه ده چه دا د منى يوه سپکه قطره وه چه دا دۀ د پلار د شا نه اوخکلے شوه او دۀ د مور په رحم کښ واچولے شوه، بيا څۀ ورځے پس د منى دا قطره وينه جوړه شوه،

بيا الله تعالىٰ دا د غوښے يوه بوټئ جوړه کړه، او اندامونه ئے په کښ جوړ کړل، او روح ئے په کښ واچولو، بيا د منى ددے قطرے نه د پيدا شوو انسانانو الله تعالىٰ (د نارينه او زنانه) دوه قِسمه انسانان جوړ کړل۔

الله تعالىٰ فرمائى: اے انسانانو! کوم الله چه ستاسو د منى نه په مختلفو پړاوونو تيرولو سره پيدا کولو باندے قادر دے، آيا هغه د مړو په ژوندى کولو قادر نۀ دے؟! هغه يقينًا په دے قادر دے، او هغه په هر څيز قادر دے۔

فَخَلَقَ: اَىْ اِنْسَانًا يعنى انسان ئے پيدا کړو بيا ئے برابر کړل اندامونه دۀ۔

اَلَيْسَ: دا نتيجه د مخکښ دليل ده۔

ذٰلِكَ: يعنى دغه ذات د الله تعالىٰ چه دغه قدرتونه لرى۔

په حديث د ابوداود کښ دى چه يو صحابى ﷺ به د کوټے په سر باندے مونځ کولو نو کله چه به هغۀ (اَلَيْسَ ذٰلِكَ بِقَادِرٍ عَلٰى اَنْ يُّحْيِىَ الْمَوْتٰى) ولوستلو نو داسے به ئے ورسره ووئيل:

[سُبْحَانَكَ فَبَلٰى]. (پاکى ده تا لره، آؤ، تۀ خامخا قادر ئے)

چا ترے تپوس وکړو؟ نو هغه وويل چه ما د رسول الله ﷺ نه دغسے آوريدلی دی۔

(ابو داود :۱/۱۴۱) رقم (۸۸۷) والبيهقی رقم : ۳۸۴۳) واسناده صحيح)

او د صحابی نوم که نهٔ دے خودلے شوے نو دا هيڅ ضرر نهٔ ورکوی، ځکه چه صحابه کرامؓ ټول عادلان دی۔

او په بل روايت کښې صرف (بَلٰی) راغلے دے۔ نو ددے وئيل مستحب دی، په نفل مانځه کښې، او بهر د مانځه نه لوستل ئے پکار دی۔

او کوم روايت کښې چه پرے امر راغلے دے نو هغه ضعيف دے۔ ابوداود راوړيدے، اسماعيل بن اميه وائی: [سَمِعْتُ أَعْرَابِيًّا] ما د يو اعرابی نه واوريدل، نو دا اعرابی مجهول دے۔ (ابو داود : ۸۸۷)

وبالله التوفيق۔

## امتيازات د سورة القيامة .

۱- جمع العظام پکښې بيان شو۔

۲- دا بيان شو چه نمر او سپوږمئ به اُوړته غورزولے شو۔

۳- د کافر انسان دپاره څلور کرته هلاکت ذکر شو۔

۴- د الله تعالیٰ رؤيت پکښې ذکر شو۔

ختم شو تفسير د سورة القيامة په مهربانئ د رب العالمين سره

❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

| رکوعاتها (۲) | (۷۶) سُوۡرَةُ الدَّهۡرِ مَکِّیَّةٌ | آیاتها (۳۱) |
|---|---|---|

سورة الدهر مدنی دے، په دے کښې یو دیرش آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة الدهر

**نوم :** (۱) په اولنی آیت کښې د [الدَّهۡر] لفظ راغلے، همدا ددے نوم کیښودلے شوے۔
(۲) ددے دویم نوم [سُوۡرَةُ الۡاِنۡسَان] دے۔ (۳) او دیته [سُوۡرَةُ الۡاَمۡشَاج]،
(٤) او سورة [هَلۡ اَتٰی] هم وئیلے کیږی۔

**د نازلیدو زمانه :** د جمهورو علماؤ په نیز دا سورت مدنی دے۔ او ابن النحاسؒ د ابن عباس ؓ نه، او ابن مردویةؒ د عبد الله بن زبیر ؓ نه روایت کړی دی چه دا سورت په مکه کښې نازل شوے۔

دریم قول دادے چه د سورت د شروع نه تر (۲۲) آیته پورے مدنی دے، او ددے نه پس آخره پورے مکی دے۔

## فضیلت :

امام بخاری او مسلمؒ د ابن عباس ؓ نه روایت کړی دی چه رسول الله ﷺ به د جُمعے په ورځ د صبا په مانځه کښې [الٓم سجده] او [هَلۡ اَتٰی عَلَی الۡاِنۡسَان] لوستلو۔

بخاری : (۸۹۱) ومسلم رقم : (۲۰٦۸)

## مناسبت :

۱- مخکښې سورت کښې د قرآن کریم په باره کښې ادب ذکر وو، نو پدے سورت کښې دا ذکر کوی چه قرآن کریم د الله تعالیٰ لوی نعمت دے، پدے باندے شکر پکار دے۔

۲- د مخکښ سورت په آخر کښ د اثبات د بعث دپاره دلیل ذکر وو نو ددے سورت په ابتداء کښ همدغه دلیل د اثبات د بعث دپاره ذکر کیږی، نو دے ته تشابه الاطراف وئیلے کیږی۔

۳- مخکښ سورت کښ رد وو په هغه خلقو چه د آخرت نه انکار کوی، نو دلته فرمائی چه اے انسانه! د آخرت نه انکار مهٔ کوه بلکه تهٔ په دنیا کښ یو مقصد له پیدا ئے، چه هغه د آخرت دپاره تیارے کول دی، تهٔ په امتحان کښ ئے۔ او ددے امتحان نتیجه به راوځی۔ د خپل ځان غم وکړه۔

## موضوع د سورت

خُلِقَ الْإِنْسَانُ لِلْإِبْتِلَاءِ۔ انسان د ابتلاء (امتحان) دپاره پیدا دے۔

او د امتحان قانون دا وی چه یو تن ته به اول سبق ووئیلے شی، بیا به ترے امتحان اخلی، نو دغه شان الله تعالیٰ فرمائی چه ما انسان ته غوږ او سترگے او عقل ورکړو، کتاب مے ورته راولیږلو، سبق ورته ووبل شو اُوس مے په امتحان کښ واچولو، نو دے به کوشش کوی چه په امتحان کښ کامیاب شی، او د هغے یوه ښه نتیجه راوځی، او ددے امتحان دپاره چه تیارے کوی، نو پدے کښ به د غلطو خلقو سره نهٔ ملگرے کیږی ځکه هغوی ئے د کار نه ورانوی، او د مقصد نه ئے اړوی نو بیا به امتحان کښ ناکامیږی،

بل په امتحان کښ دا خبره وی چه یا به انسان کامیابیږی یا به ناکامیږی، که ناکام شی نو د سکول او مدرسے د کلاس نه به شړلے کیږی، او که کامیاب شی نو د هغهٔ دپاره انعامات وی۔ نو دنیا هم الله تعالیٰ د امتحان ځای مقرر کړیدے، او په آخرت کښ به ددے امتحان نتیجه وځی، که څوك کامیاب وو نو د هغهٔ نعمتونه واوره، او که دے امتحان کښ ناکام شو نو بیا به ددهٔ تړل وی،

بیا د دنیا د امتحان په شان د الله تعالیٰ امتحان نهٔ دے، ځکه چه که دلته ناکام شوے نو دومره غټه خبره نهٔ ده، که یوه مدرسه یا سکول کښ داخله نهٔ ملاویږی بلے ته به لاړ شی، او هرچه د آخرت ناکامی ده، نو هلته ئے الله تعالیٰ تړی او اُور ته ئے غورزوی، سزا ورسره ده۔ ددے وجه نه دلته به د جنت او د جهنم تذکره وی، د جنت زیاته او د جهنم لږه۔

بیا اوقات د امتحان ذکر کوی، یعنی ددے امتحان دپاره به کوم اوقاتو کښ تیارے

کوی؟ نو هغه ذکر کوی چه دا تیاری به د شپی کوی، سهار کښې به ئے کوی، او دا دنیا به لوی شے نهٔ گنړی، دا ډیر د مقصد نه وران نکړی. ټول سورت پدی طرز روان دی۔

| |
|---|
| هَلْ اَتٰی عَلَی الْاِنْسَانِ حِیْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ یَکُنْ شَیْئًا مَّذْکُوْرًا ﴿۱﴾ |
| یقیناً راغلی دی په انسان باندی یو وخت د زمانی چه نهٔ وو هیڅ شے یاد کړی شوی۔ |
| اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ مِنْ نُّطْفَةٍ اَمْشَاجٍ نَّبْتَلِیْهِ |
| یقیناً پیدا کړیدی مونږ انسان د نطفی گډی وډی نه، ازمیښت کوو مونږ په دهٔ باندی |
| فَجَعَلْنٰهُ سَمِیْعًا بَصِیْرًا ﴿۲﴾ |
| نو کړځولی دی مونږ دهٔ لره آوریدونکی، لیدونکی۔ |

**تفسیر** : پدی آیت کښې الله تعالیٰ د انسان ابتدائی حالت ذکر کړیدی، او هغهٔ ته ئے دده کمزوری او سپك والی وریاد کړی دی، چه دده پلار (آدم ؑ) څلویښتو کالو پوری د خاوری یوه جوړه مجسمه پرته وه. د یو بل قول مطابق یو سلو شلو کالو پوری د خاوری، ختی او د تیکرکی مراحلو نه تیر شو، بیا الله تعالیٰ په دهٔ کښې روح اوپو کلو. په دی پوره موده کښې هغه د خاوری یو کالبوت وو، الله نه سوی هیچا ته معلومه نهٔ وه چه ددی کالبوت نه به څهٔ جوړیږی، او دده به څهٔ نوم وی. بیا الله تعالیٰ په دهٔ کښې روح اوپو کلو او دهٔ نه ئے انسان جوړ کړو۔

نو دی کښې دوه فائدی دی، یو دا چه انسان الله تعالیٰ ضائع نهٔ دی جوړ کړی بلکه دی ئے امتحان له پیدا کړیدی. دویم دا چه هرکله الله تعالیٰ ددی انسان په ابتدائی پیدائش باندی قادر وو، نو په دوباره ژوندی کولو باندی به خامخا قادر وی۔

هَلْ: دا استفهام تقریری دی په معنیٰ د قَدْ سره دی، ځکه چه هر عقلمند انسان ددی ابتدائی حال اقرار کوی. نو دهٔ له د دوباره ژوندون اقرار هم پکاردی۔

او په ابتداء کښې ددی لفظ راوړو کښې اشاره ده د انسان متوجه کولو ته۔

اَلْاِنْسَانِ: ددی انسان نه مراد یا جنس انسان دی لکه روستو (اِنَّا خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ) کښې هم راغلی دی. یا ددی نه مراد آدم ؑ دی چه هغه په جنت کښې وو او هیڅ تذکره ئے نهٔ وه۔

حِیْنٌ: دا د زمانی هغه حصی ته وائی چه اُوږده وی او محدوده او معینه نهٔ وی۔

او دلته بعض علماؤ ددے تعیین په څلویښتو کالو کړیدے،
او بعض وائی چه ددهٔ په ختم باندے څلویښت کاله تیر شو، بیا چه د هغے نه حمأ مسنون جوړ شو څلویښت کاله تیر شو، بیا چه تیکرکے جوړ شو څلویښت تیر شو نو ددهٔ پیدائش په (۱۲۰) کالو کښې پوره شو، او روح پکښې واچولے شو.
غوره دا ده چه دلته ئے څه خاص اندازه نهٔ ده معلومه.
لَمۡ یَكُن شَیۡـًٔا مَّذۡكُورًا: یعنی ددهٔ هیڅ تذکره نهٔ کیده، زمونږ سل کاله مخکښې هیڅ نوم او نښان هم نهٔ وو، بیا الله تعالیٰ راپیدا کړو نو دغه شان به مو دوباره وفات کوی، او بیا به مو ځان ته ودروی. پدے کښې الله تعالیٰ د انسان دا ذهن سازی کوی چه ستا خالق شته چه هغه الله تعالیٰ دے، او تهٔ ئے بیکاره بے فائدے نهٔ ئے پیدا کړے، بلکه روستو وائی :
إِنَّا خَلَقۡنَا: الله تعالیٰ بیا د آدم علیه السلام اولاد د گنده او سپکو اوبو د یوے مخلوطے قطرے نه پیدا کړو.
د (امشاج) نه مراد هغه مخلوط او گډه وډه شوے منی ده چه د نارینه او زنانه دواړو د مَنِی نه جوړیږی. د سړی مَنِی سپینه او تینګه وی، او د ښځے مَنِی زیړه او نرۍ وی، د دواړو د گډیدو نه انسان پیدا کیږی. نو دا د مختلفو اخلاطو او طبائعو نه جوړه کړے شویده.
بعض وائی : د ماشوم پلے او هډوکی د سړی د نطفے نه، او غوښه او وینه او ویښته د زنانه د نطفے نه پیدا کیږی.
اَمۡشَاجٍ: جمع د مَشَج ده، یا د مَشِیۡج ده لکه شَرِیۡف او اَشۡرَاف. اخلاطو (گډوډ څیزونو) ته وئیلے شی. **سوال** دا دے چه امشاج صفت د نطفے دے، او نطفه خو مفرد دے نو جمع ئے څنګه صفت واقع شو؟
**جواب :** نطفه په معنیٰ کښې جمع ده، نو صفت ئے په جمع سره جائز دے.
دویم جواب : د بعضو په نیز امشاج مفرد دے لکه د بُرۡمَةٌ اَعۡشَارٌ (او اَرۡضٌ سَبَاسِبُ) په شان. (قاله الزمخشری)
نَّبۡتَلِیهِ: دا پدے سورت کښې مقصودی جمله ده.
(۱) یعنی انسان مونږ دے دپاره پیدا کړو چه دے په امتحان کښې واچوو، او دا امتحان

پرے ولے کوی؟ ځکه چه په امتحان کښې د الله تعالیٰ بندګی بنه کیږی۔
یعنی الله تعالیٰ انسان د احکامو او شریعتونو پابند جوړ کړو دے دپاره چه په دهٔ امتحان اوکړی او اُوګوری چه دا د خپل رب فرمانبردار او خبره منونکے بنده جوړیږی، یا نافرمانی کوی، او هغهٔ له ئے د آوریدو او لیدو طاقت ورکړو، او عقل ئے ورکړو دے دپاره چه دا د خیر او شر او هدایت او ګمراهئ ترمینځه تمییز وکړی، او د هدایت په لاره باندے تلو سره یا خو د الله تعالیٰ شکر کونکے بنده جوړ شی، یا د هغهٔ نه مخ واړوی او نا شکری اوکړی، او د هلاکت او بربادئ په لاره روان شی۔
(۲) یا نَّبۡتَلِیۡهِ کښې ضمیر نطفے ته راجع دے، او ابتلاء په معنیٰ اړه ولو راړه ولو ده۔ یعنی مونږ دا نطفه په مختلفو اطوارو او حالاتو کښې اړه و راړه وو۔ اول قول غوره دے، د مضمون سره زیات مناسب دے۔
سَمِیۡعًۢا بَصِیۡرًا: دا آلات د علم ورله ځکه ورکوی چه د امتحان لائق شی۔ ځکه چه که دا نهٔ وی بیا په هغهٔ باندے امتحان نهٔ کیږی۔ او دلته ئے ابتلاء مخکښې ذکر کړه اګرکه د سمع او بصر ورکولو نه روستو ده ځکه چه هغه مقصد دے او اَهمه ده۔

| |
|---|
| اِنَّا هَدَیۡنٰهُ السَّبِیۡلَ اِمَّا شَاکِرًا وَّاِمَّا کَفُوۡرًا ﴿۳﴾ اِنَّاۤ |
| یقیناً مونږ خودلے ده دهٔ ته لاره یا به شکر کونکے وی او یا به ناشکره وی۔ یقیناً مونږ |
| اَعۡتَدۡنَا لِلۡکٰفِرِیۡنَ سَلٰسِلَاۡ وَاَغۡلٰلًا وَّسَعِیۡرًا ﴿۴﴾ |
| تیار کړیدے کافرانو لره زنځیرونه او طوقونه او اُور بل کړے شوے۔ |

**تفسیر**: اِنَّا هَدَیۡنٰهُ السَّبِیۡلَ: دا هدایت انسان ته په درے طریقو شویدے:
(۱) بِالۡفِطۡرَةِ۔ یعنی روغ فطرت مے ورکړیدے۔
(۲) بِالۡعَقۡلِ۔ په عقل سره ئے ورته خودنه کړیده۔ د چا چه عقل نهٔ وی هغه مکلف نهٔ وی۔ (۳) بِاِرۡسَالِ الرُّسُلِ وَاِنۡزَالِ الۡکُتُبِ ۔ د رسولانو په رالیږلو او د کتابونو په نازلولو سره دهٔ ته نیغه لاره وخودلے شوه نو اُوس مکلف شو۔ که دا پکښې نهٔ وی هم پوره مکلف نهٔ دے۔ او پدے درے واړو طریقو سره هدایت تقریباً هر انسان ته شویدے۔ نو حجت په دوی قائم دے۔ ګویا که دوی ته سبق وئیلے شویدے۔

السَّبِيلَ: ددے نه مراد صرف د حق او هدايت او د خير لاره ده۔

❁ يا د خير او د شر دواړو لاره مراد ده، لکه په سورة بلد (۱۰) آيت کښې دی: ﴿ وَهَدَيْنَاهُ النَّجْدَيْنِ ﴾۔

مجاهدؒ وائی: بَيَّنَّا السَّبِيلَ اِلَى الشَّقَاوَةِ وَاِلَى السَّعَادَةِ۔ يعنی موږ خودلے ده لاره بد بختئ او نيك بختئ طرفته۔

إِمَّا شَاكِراً: دا په امتحان کښې کاميابی ده۔ چه د الله تعالىٰ صحيح بندگی کونکے شکر گذار به وی۔

وَإِمَّا كَفُوراً: يا به د هغهٔ د نعمتونو ناشکره وی، او د هغهٔ د ذات او د حقوقو نه به منکر وی۔

بيا چونکه شاکرين لږ دی او کفر کونکی ډير دی نو ددے وجه نه ئے شاکر په صيغه د اسم فاعل او کفور ئے په صيغه د مبالغے سره ذکر کړو۔

إِمَّا شَاكِراً: دا يا حال دے د ضمير د (هَدَيْنَاهُ) نه۔ يا دلته كَانَ پټ دے۔ اَیْ اِمَّا كَانَ شَاكِرًا اَوْ كَفُوْرًا۔ يا به شکر گذار وی يا به ناشکره وی۔

مطلب دا شو چه څوك به په امتحان کښې ناکام وی او څوك به کامياب وی۔

إِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ: اُوس وائی چه څوك په امتحان کښې ناکام شو نو د هغهٔ يواځے د کلاس نه شړل نهٔ دی بلکه د هغهٔ تړل او جهنم ته غورزول دی نو دا سخت امتحان دے۔

نو دلته الله تعالىٰ د هغه عذاب خبر ورکړے کوم چه هغهٔ کافرانو لپاره تيار کړے۔

فرمائی: موږ کافرانو لپاره زنځيرونه، بيړئ او لمبے و هونکے اُور تيار کړے۔

سَلَاسِلَا وَأَغْلَالاً وَسَعِيراً: سَلَاسِلَ فِي الْاَرْجُلِ وَاَغْلَالًا فِي الْاَعْنَاقِ وَسَعِيْرًا فِي الْبَدَنِ۔

يعنی په خپو کښې بيړئ او په څټونو کښې طوقونه او په بدن کښې لمبه و هونکے اُور۔

د سورة المؤمن په (۷۲/۷۱) آيتونو کښې الله فرمايلی دی:

﴿ إِذِ الْأَغْلَالُ فِيْ أَعْنَاقِهِمْ وَالسَّلَاسِلُ يُسْحَبُوْنَ فِي الْحَمِيْمِ ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُوْنَ ﴾

(کله چه د دوئ په څټونو کښې طوقونه وی، او زنځيرونه وی، راښکلے کيږی به په جوشيدلو اوبو کښې، بيا به د جهنم په اور کښې سوزولے کيږی)۔

| إِنَّ الْأَبْرَارَ يَشْرَبُوْنَ مِنْ كَأْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا ﴿٥﴾ عَيْنًا |
|---|
| يقيناً نيكان خلق به څكى د كاسو ډكو نه چه وى به گډون د هغے كافور۔ يوه چينه |
| يَّشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللّٰهِ يُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِيْرًا ﴿٦﴾ |
| ده چه څكل به كوى د هغے نه بندگان د الله دوى به روانوى هغے لره په روانولو سره۔ |
| يُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُوْنَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيْرًا ﴿٧﴾ |
| دوى پوره كوى منختے او يره كوى د هغه ورځے نه چه شر د هغے خور وور دے۔ |
| وَيُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهِ مِسْكِيْنًا وَّيَتِيْمًا وَّأَسِيْرًا ﴿٨﴾ |
| او وركوى دوى خوراك لره په محبت د هغهٔ سره مسكين ته او يتيم ته او قيدى ته۔ |
| إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللّٰهِ لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ |
| (ورته وائى) يقيناً مونږ خوراك دركوو تاسو ته دپاره د مخ د الله، نهٔ غواړو ستاسو نه |
| جَزَاءً وَّلَا شُكُوْرًا ﴿٩﴾ إِنَّا نَخَافُ مِنْ رَّبِّنَا يَوْمًا عَبُوْسًا قَمْطَرِيْرًا ﴿١٠﴾ |
| بدله او نهٔ شكر۔ يقيناً مونږ يريږو د رب زمونږ نه د ورځے سختے نه ډيرے سختے نه۔ |
| فَوَقَاهُمُ اللّٰهُ شَرَّ |
| (د ورځے تندے تريوونكے ډيرے سختے نه)۔ نو بچ كړل دوى لره الله تعالىٰ د شر |
| ذٰلِكَ الْيَوْمِ وَلَقّٰهُمْ نَضْرَةً وَّسُرُوْرًا ﴿١١﴾ وَجَزَاهُمْ |
| د دغه ورځے نه او ورئے كړه دوى ته تازگى او خوشحالى۔ او بدله ئے وركړه دوى ته |
| بِمَا صَبَرُوْا جَنَّةً وَّحَرِيْرًا ﴿١٢﴾ |
| په دے وجه چه دوى صبر اُوكړو جنت او وريښم۔ |

**تفسير:** اُوس د كاميابو خلقو دپاره ښكلے نعمتونه او مزيدار ژوند بيانيږى، او د زيات ترغيب دپاره ددے زيات تفصيل كوى۔

فرمائى چه د نيك عمله مومنانو دپاره مونږ داسے نعمتونه تيار كړيدى چه داسے خلق

بـه نهایت مزیدار شراب څښکې چه په هغې کښې به کافور ملاؤ شوې وي، دې دپاره چه هغه یخ کړي او د هغې تیزي ختمه کړي. او دا کافور به انتهائي خوندور وي، او د دنیوي کافورو د خرابیانو نه به پاك وي.

اَلْاَبْرَارَ: جمع د بَرٌّ ده. دا هغه خلق دي چه هر وخت په نیکئ کښې مصروف وي. د الله حقوق هم ادا کوي او د مخلوق سره هم احسان کوي. او دا هغه خلق دي چه هیچا ته ضرر نۀ رسوي.

او څوك چه همیشه په نیکئ کښې ځان مصروف کوي، نو دا دلیل دې چه دا انسان به الله تعالیٰ په امتحان کښې کامیابوي او ښه نتیجه به ورکوي.

مِنْ كَاْسٍ: دا هغه لوخي ته وائي چه مشروب پکښې موجود وي، خالي ته کأس نۀ وئیلې کیږي بلکه هغې ته اِنَاءٌ وائي. او دا برابره ده که د شیشې نه وي یا د سرو او سپینو وغیره نه وي. او د عربو کأسې هم د مختلفو اجناسو نه وې. او عرب کله نا کله کأس عین شرابو ته هم وائي.

مِزَاجُهَا: د دنیا والو عادت دا دې چه د مشروباتو سره بل څیز ګډه وي دپاره د زیاتې فائدې او مزې حاصلولو نو دغه شان به جنت کښې هم کیږي.

كَافُوْرًا: دا په برودت (یخوالي) او خوشبوئي کښې مشهور دي، لیکن دا د دنیا کافور نۀ دي ځکه چه په هغې کښې بعض ضررونه هم شته، نو دلته تشبیه د کافور سره په صورت او شکل او نوم کښې ده. او حقیقت ئې روستو آیت کښې ذکر دې.

عَيْنًا: دا بدل دې د كَافُوْرًا نه. یعنې د کافور چینې د اُوبو ګډون به د دغه شرابو سره شوې وي، نو د هغې خوشبوئي او د هغې خوند به ئې نور هم مزیدار کړې وي.

يَشْرَبُ بِهَا عِبَادُ اللّٰهِ: (یعني څکل به کوي د هغې نه بندګان د الله تعالیٰ) باء کښې معنیٰ د زیادت ده، یعني په کامله طریقه به ترې څکل کوي. او دوی له به مرغ راولي، که صرف يَشْرَبُهَا ووائي نو دا به صرف څکل وي، اخوا مره ول راولي او که نۀ، او کله چه ورسره باء یو ځای شي نو بیا پکښې معنیٰ د کمال پرته وي.

عِبَادُ: کله چه په قرآن کریم کښې د عبد یا عباد اضافت د الله تعالیٰ یو نوم ته وشي نو مراد ترینه هغه خلق دي چه د الله تعالیٰ بندګي ئې کړي وي، او د هر قسم شرك نه ئې ځان بچ ساتلې وي، او دغه مؤمنان دي. او کله چه اضافت ضمیر ته وي، نو کله موحدین

مراد وي لکه اِنَّ عِبَادِیْ لَیْسَ لَكَ عَلَیْهِمْ سُلْطَانٌ، او کله عام مراد وي لکه ﴿وَلَا یَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْکُفْرَ﴾۔ (احسن الکلام)

یُفَجِّرُوْنَهَا تَفْجِیْراً : یعنی د هغې روانول او چلول به د دوئ په خوښه وي، که دوي ئې په کوم ځای روانول غواړي، نو د دوي تابع به وي، او دوي به ئې خپلو لاندې جنتیانو ته روانوي۔ او داسې به نهٔ وي چه یو ژور ځای کښې وي، او د هغې نه اوبه راوړل سخت وي بلکه دوي به ئې خپلو کورونو ته، او کوم ځای چه غواړي هلته روانوئ۔

او پدې کښې اشاره ده چه دا چینه به نهٔ ختمیږي او نهٔ به کمیږي بلکه د دوئ د خوښې مطابق به روانه وي۔

یُوْفُوْنَ بِالنَّذْرِ : اوس د دغه ابرارو نور صفتونه راوړي چه د هغې په وجه ددې نعمتونو مستحق گرزیدلي دي۔

بِالنَّذْرِ : د نذر نه مراد هغه نیك عملونه دي چه په خپل ځان باندې ئې واجب کول، نو هغه به ئې خامخا پوره کول، او دا دلیل دې ددې خبرې چه دوئ به د الله له خوا واجب کړي نیك عملونه په طریقه اولیٰ سره پوره کول۔

شرعي نذر دې ته وائي چه یو تن الله تعالیٰ ته د ځان نزدې کولو دپاره په ځان باندې د الله د طاعاتو نه یو شے لازم کړي که هغهٔ دهٔ نهٔ وې لازم کړے نو په دهٔ باندې نهٔ واجبیدو۔ لکه مثلاً نفلي مونځ، نفلي روژه، یا د مال نذر او منښته وکړي۔

او پدې آیت کښې د نذر نه عامه معنیٰ مراده ده، یعنی هر هغه شے چه د هغې وفا په بنده باندې واجب وي، لکه عقود، عهود، مونځ، زکاة، روژه، حج، عمره وغیره۔

وَیَخَافُوْنَ: یعنی دوي د هغې ورځې د عذاب نه یریږي چه د هغې شر به زمکه او آسمان ډکوي، او د همدې ویرې نتیجه وه چه دوئ د هر هغه بد عمل نه ډډه کوله چه هغه د قیامت په ورځ د عذاب سبب جوړیدلو۔

شَرُّهٗ: ددې شر نه مراد هغه سختیانې دي چه د قیامت په ورځ به واقع کیږي، لکه آسمانونه چودل، ستوري دوریدل، او زمکه باندې زلزله راتلل، او غرونه روانیدل وغیره۔

مُسْتَطِیْراً : یعنی اوږد، او خور وور تول عالَم ته۔

وَیُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ: او دوئ به مسکین، یتیم او قیدي له خوراك ورکولو، سره ددې چه

دوئ سره به خوراکه کمه وه۔
او طعام عام دے لږ وی او که ډیر، خوراکه وی او که نور مالونه وغیره وی۔
عَلٰی حُبِّه: (۱) (ه) ضمیر طعام ته راجع دے، یعنی طعام سره ئے محبت شته، خپله ورته محتاج دے، طعام ئے کم دے، او بیا هم قربانی کوی او مسکین او کمزورو ته ئے ورکوی۔ (فُضَیل بن عیاضؒ)
یا مطلب دا چه د مرګ نه مخکښ ئے ورکوی ځکه چه د مرګ په وخت کښ د طعام سره محبت ختم شی۔
(۲) یا ضمیر الله ته راجع دے۔ یعنی د الله په محبت طعام ورکوی۔ ځکه چه په صدقے کولو سره د الله تعالیٰ محبت او په زړه کښ د هغهٔ سره یو ښنا تعلق پیدا کیږی۔ یعنی دوئ باندے باعث د الله تعالیٰ محبت وو چه هغه ورته حاصل شی۔
(۳) یا ضمیر روستو مسکین ته راجع دے۔ یعنی دوی چه کوم طعام ورکوی نو پدے کښ د مسکین سره مینه لری، او د هغوی سپکاوے او تذلیل نهٔ کوی، یعنی په ډیره عاجزئ هغوی ته ورکړه کوی۔ اولنی احتمالونه ډیر ظاهر دی۔ او د روستو (لِوَجْهِ اللهِ) سره زیات مناسب دی۔
مِسْكِيْنًا: دے نه مراد هر غریب دے، فقیر ته هم شامل دے،
وَّاَسِيْرًا: قیدی اګرکه کافر وی او وینزه، مرئے، ښځه دے ټولو ته شامل دے۔
او ددے دریے وارو تخصیص او ترتیب پدے وجه سره دے چه دا ټول د کارو کسب نه عاجز دی۔
ابن عباس ﷺ وائی: د اسیر نه مراد مشرك دے، نو دا دلیل دے چه نفلی صدقه انسان مشرك ته هم ورکولے شی، فرضی صدقه به نهٔ ورکوی۔
اِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللهِ: دا بل صفت دے په تقدیر د يَقُوْلُوْنَ سره دے، او دا وینا په لسان قال یا په لسان حال سره ده۔ یعنی یا که مناسب وی نو هغوی ته مخامخ داسے وائی، او په عامو حالاتو کښ په زړهٔ کښ همدا اراده لری چه مونږ دا خوراك د الله تعالیٰ د مخ د خاطره ورکوو، د دوئ نه څه بدله اخستل مو اراده نهٔ ده۔
لَا نُرِيْدُ مِنْكُمْ جَزَآءً: خلق چه صدقے کوی، د هغے دوه مقصده وی، یو دا چه دا شخص به راله صبا څه کار وکړی، دویم دا چه صفت به راله وکړی چه فلانے داسے ښه

سړے او سخی سړے دے، په خلقو کښې به زما نوم وشی۔ او دا دواړه څیزونه صدقے باطلوی، نو دا مؤمنان نهٔ په صدقے سره د چا نه بدله او خدمتونه غواړی، او نهٔ ددهٔ صفت کول۔

وَلَا شُكُوراً: شکور په معنیٰ د شکر او صفت کولو سره۔ یعنی مونږ دا صدقه تاسو ته صرف او صرف د الله تعالیٰ د مخ او د رضا دپاره درکوو۔

او پدے کښې اشاره ده چه مؤمن به په خپلے صدقے سره دا دواړه ارادے نهٔ لری۔

اِنَّا نَخَافُ مِن رَّبِّنَا: یعنی دغه جنتیانو به په دنیا کښې دا هم وئیل چه مونږ د خپل رب له اړخه د هغهٔ ورځے نه یریږو چه هغه د خپلو خطرناکیو په سبب ډیره سخته او ناقابلِ برداشت وی۔

يَوْماً: اَیْ عَذَابَ یَوْمٍ مُتَّصِفٍ بِهَاتَیْنِ الصِّفَتَیْنِ۔ یعنی مونږ یریږو د عذاب د هغه ورځے نه چه دغه دوه صفتونه لری۔

عَبُوساً: داسے ورځ چه تندے تریوونکے ده د وجه د سخت والی او هیبت ددے نه۔

قَمْطَرِيراً: اَیْ صَعْبًا شَدِیْدًا۔ (ډیره سخته)۔

اخفش ؒوائی : په ورځو کښې لویه ورځ او په مصیبت او تکلیف کښې اوږده۔ (یعنی اوږد مصیبت والا)۔

مجاهدؒ وائی : عبوس دا ده چه شونډے راګونجے کړی، او قمطریر دا چه تندے او مخ او وروزمے راګونجے کړی۔ یعنی داسے سخت خالات به پکښې وینی چه مخ او شکل به ئے بدل شی۔

ابن عباس ﷺ وائی : عَبُوْسًا: ضَیِّقًا قَمْطَرِیْرًا : طَوِیْلًا ۔ عبوس معنیٰ ده تنګه او قمطریرًا اوږده۔

فَوَقَاهُمُ اللّٰهُ: یعنی الله تعالیٰ به د پورتنو نیکیو په سبب دوئ د دغه ورځے د عذاب نه بچ کړی، او ملائك به رامخے ته شی، او دوئ ته به وائی چه همدا هغه ورځ ده چه ددے وعده تاسو سره په دنیا کښې کیدلے شوه۔ الله تعالیٰ به د دوئ انتهائی عزت کوی، د دوئ مخونو له به تازګی او د دوئ زړونو له به خوشحالی ورکوی، یعنی په دوئ باندے به په تمام ظاهری او باطنی نعمتونو سره پیرزو کوی۔

وَلَقَّاهُمْ : تلقی دے ته وائی چه یو تن د یو شی مخے ته ورشی۔ یعنی الله تعالیٰ دا

خوشحالیانې او نعمتونه د دوئ مخې ته وروستل۔ یعنې دوئ ته به د هغې په حاصلولو کښې هیڅ تکلیف نهٔ وو۔
نَضۡرَةً: اَیۡ فِی الۡوُجُوۡهِ۔ په مخونو کښې به ئې تازه ګی وی۔ دا ظاهری نعمت دے۔
وَسُرُوراً : اَیۡ فِی الۡقُلُوۡبِ۔ په زړونو کښې به ئې خوشحالي وی۔ دا باطني نعمت دے۔
وَجَزٰاهُم بِمَا صَبَرُوا: یعنې چونکه دوئ په صبر او استقلال سره د الله تعالیٰ بندګی کوله، د ګناهونو نه به ئې پرهیز کولو، الله طرفته به ئې د دعوت ورکولو کار کولو، او ددے لارے تکلیفونه به ئې برداشت کول، دے وجے نه الله تعالیٰ به دوئ له جنت ورکوی، او د اغوستلو دپاره به ورله د ریښمو جامے ورکوی، چه دوئ په دنیا کښې د الله تعالیٰ د حکم منلو د وجے نه دا نهٔ وے اغوستے، ځکه چه په دنیا کښې د سړو دپاره د وریښمو اغوستل حرام دی۔
جَنَّةً: ددے نه مراد د خوراکونو او څکاکونو باغ دے، او دا سوئ دے د لوی جنت نه، ددے وجه نه دا نهٔ وئیلے کیږی چه جنت نه روستو حریر ذکر کولو ته ضرورت نشته، ځکه چه جنت کښې خو به خامخا وریښم وی۔

| مُتَّكِئِيْنَ فِيْهَا عَلَى الْأَرَائِكِ لَا يَرَوْنَ فِيْهَا |
|---|
| تکیه وهونکی به وی په هغے کښې په پالنګونو باندے، نهٔ به وینې په هغے کښې |
| شَمْسًا وَّلَا زَمْهَرِيْرًا ﴿١٣﴾ وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ ظِلَالُهَا وَذُلِّلَتْ |
| ګرمي او نهٔ یخني۔ او نزدے به وی په دوی باندے سوری د هغے او تابع کړے شویدی |
| قُطُوْفُهَا تَذْلِيْلًا ﴿١٤﴾ وَيُطَافُ عَلَيْهِم بِآنِيَةٍ |
| میوے (غونچکونه) د هغے په تابع کولو۔ او ګرځولے به شي په هغوی باندے لوښی |
| مِّنْ فِضَّةٍ وَّأَكْوَابٍ كَانَتْ قَوَارِيْرَا ﴿١٥﴾ قَوَارِيْرَ مِنْ فِضَّةٍ |
| د سپینو زرو او ګلاسونه چه وی به شیشه۔ شیشه د سپینو زرونه |
| قَدَّرُوْهَا تَقْدِيْرًا ﴿١٦﴾ وَيُسْقَوْنَ فِيْهَا |
| اندازه کړی به ئې وی هغه په خاص انداز۔ او څکولے به شي په دوی باندے په هغے کښې |

| |
|---|
| كَاْسًا كَانَ مِزَاجُهَا زَنْجَبِيْلًا ﴿۱۷﴾ عَيْنًا فِيْهَا |
| ډکه پیاله چه وی به ګډون د هغې زنجبیل (ادرك). چینه ده په هغې کښې |
| تُسَمّٰى سَلْسَبِيْلًا ﴿۱۸﴾ وَيَطُوْفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُوْنَ |
| نوم ورته وئیلې شی سلسبیل. او ګرځی به په دوی باندې هلکان همیشه به وی |
| إِذَا رَأَيْتَهُمْ حَسِبْتَهُمْ لُؤْلُؤًا مَّنْثُوْرًا ﴿۱۹﴾ وَإِذَا |
| کله چه ته وینې دوی لره ګمان به کوې په دوی ملغلرې خورې ورې. او کله چه |
| رَأَيْتَ ثَمَّ رَأَيْتَ نَعِيْمًا وَّمُلْكًا كَبِيْرًا ﴿۲۰﴾ عَالِيَهُمْ ثِيَابُ |
| ته اُووینې هغه ځائې ویه وینې نعمتونه او بادشاهی لویه. بره طرف د دوی به جامې وی |
| سُنْدُسٍ خُضْرٌ وَّإِسْتَبْرَقٌ وَحُلُّوْا |
| د نرو وریښمو شنو نه او غټ وریښم (به لاندې وی) او اچولې کیږی به دوی ته |
| أَسَاوِرَ مِنْ فِضَّةٍ وَسَقَاهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا ﴿۲۱﴾ إِنَّ |
| بنګړی د سپینو زرو، او څکوی به دوی ته رب د دوی د څکلو څیز پاکونکې. یقیناً |
| هٰذَا كَانَ لَكُمْ جَزَاءً وَّكَانَ سَعْيُكُمْ مَّشْكُوْرًا ﴿۲۲﴾ |
| دا ستاسو دپاره بدله وه، او دې کوشش ستاسو قبول کړې شوې. |

**تفسیر :** مُتَّكِئِيْنَ: دا حال دې د جَزَاهُمْ د ضمیر نه. یعنی دا جنتیان به په دې جنتونو کښې په پالنګونو باندې تکیه لګونکی انتهائی راحت او اطمینان سره ناست وی، هلته به نهٔ دوئ د نمر ګرمی وینی، او نهٔ سخته یخنی، بلکه هر وخت به د دوئ په سرونو باندې ګنړ راحت رسوونکے سورې وی.

**عَلَى الْأَرَائِكِ :** دا جمع د اَرِيْكَةٌ ده، د ناوې کټ او پالنګ، اشاره ده چه ښځې به هم ورسره وي، تش تخت او کټ ته اریکه نهٔ وئیلې کیږی.

**شَمْساً وَلَا زَمْهَرِيْراً :** نمر سره ګرمی راځی، او زمهریر سره یخنی، نو هلته به نهٔ ګرمی او نهٔ یخنی بلکه تر مزیدار موسم به وی.

دارنګه زمهریر په لغت د عربو کښې سپوږمۍ ته هم وائی، نو مراد ترے نه ورځ او شپه راتلل دی چه دا به پکښې نهٔ وی. یعنې یوه رڼړا به په کښې همیشه وی، او شپه به پکښې نهٔ راځي. او دا به د الله تعالیٰ رڼړا وی.

وَدَانِيَةً عَلَيْهِمْ: دا معطوف دے په مُتَّكِئِيْنَ باندے یا په محل د لَایَرَوْنَ باندے.

یعنی د دغه ځائے وُنے به هر وخت په هغوئ باندے سورے را خور کړے وی.

ظِلَالُهَا: پـه جنت کښې سورے د نمر د وجه نه نهٔ دے بلکه داسے سورے چه په دنیا کښې د صبا ختلو نه روستو د نمر ختنه پورے وی.

ظلالها کښې ضمیر ونو ته راجع دے.

وَذُلِّلَتْ قُطُوفُهَا: او د هغے میوے بـه هر وخت او هر حال کښې د دوئ په قبضه کښې وی، هیڅ یـو شے بـه د دوئ لاسونه هغے ته د رسیدو نه نهٔ منع کوی. په دنیا کښې بعض میوے د ونو په سرونو کښې وی چه انسان هغے ته رسیدل نشی کولے، مرغان ئے وخوری، یا ضائع شی، او د جنت د ونو میوے به تابع کړے شوی وی چه هر ولاړ، ناست، تکیه وهونکے به ئے راشوکولے شی.

قُطُوفُ: جمع د قِطف ده د میوو غونچکونه. یا هغه میوه چه په ونه کښې پخه شی او بیا د خوراك دپاره راتولولے شی.

وَيُطَافُ عَلَيْهِم: اُوس د خوراك څکاك حالات ذکر کوی.

یطاف ئے مجهوله راوړه اشاره ده چه خادمان به ډیر قسمونه وی، غِلمان، وِلْدَان، او حورے وغیره.

بِآنِيَةٍ: جمعه د اِنَاءٌ ده او د آنیة جمع اَوَانِیْ راځي.

مِّن فِضَّةٍ: دلتـه الله تـعالیٰ یو طرف ذکر کړیدے، او بل طرف ورسره مراد دے چه بعض لوښی به د سپینو او بعض به د سرو نه وی.

او بعض علماء وائی چه یو جنت هغه دے چه د هغے هر څه به د سپینو زرو نه وی، او بل جنت هغه دے چه په هغے کښې به ټول لوخی د سرو زرونه وی.

وَأَكْوَابٍ: جمع د كُوْبٌ ده، د څکلو هغه لوښے چه د هغے کړئ او مکوخه نهٔ وی، نو دا ګلاسونو، پیالو وغیره ته شاملیږی.

كَانَتْ قَوَارِيْرَا: یعنی په صفائی او شفافیت کښې به د شیشے په شان وی.

قَوَارِیۡرَ مِنۡ فِضَّةٍ : دلته عجیب کار شویدے چه په شیشه کښې زر ماتیدل وی نو الله فرمائی چه دا به د سپینو نه جوړے وی نو زر به نهٔ ماتیږی۔

دارنګه په شیشه کښې شفافیت وی چه هر څه ترے اخوا ښکاره کیږی او په سپینو زرو کښې داسے شفافیت نهٔ وی نو د الله په قدرت سره پکښې دوه متضاد صفتونه راجمع شویدی۔ نو دا به د سپینو زرو په شان سپین وی، او د شیشے په شان به شفاف وی چه هر څه به ترے اخوا ښکاره کیږی۔

قَدَّرُوۡهَا تَقۡدِیۡرًا : ضمیر جنتیانو ته، یا د جنت خادمانو ته راجع دے۔ یعنی خادمانو به دغه لوښی په داسے اندازے سره ډك کړی وی چه نهٔ به زیاتی کیږی او نهٔ به کمیږی، او نهٔ به هغه لوښی ډیر درانهٔ وی او نهٔ به ډیر سپك وی، بلکه د دویٔ د موړ والی په اندازه به وی، او داسے لوښی ډیر خوند کوی۔

که لوښے ډیر غټ وی نو د انسان نه هغه خوراك پاتے شی، ضائع شی او واوړی، او که وړوکے وی، نو د انسان مړخ نهٔ راولی۔

وَیُسۡقَوۡنَ : اُوس د څکاك سامان ذکر کوی۔ یعنی په جنتیانو باندے به په جنت کښې داسے شراب څښکولے کیږی چه په هغے کښې به د کافورو ګډون وی۔

د عربو خلقو به د زنجبیل د خوشبوئے نه د خوند حاصلولو دپاره دا په شرابو کښې ګډ څښکل خوښول، او په زنجبیل کښې ملاؤ شوی دا شراب به په جنت کښې د یوے سلسبیل نومے چینے نه روان وی، چه د هغے شراب به انتهائی مزیدار وی۔

زَنۡجَبِیۡلًا : دا په اصل کښې ادرك (سونټ) ته وائی، او دا په جنت کښې یوه چینه ده چه ددے بل نوم سلسبیل هم ده۔ امام بغویؒ وائی : د جنت شرابو کښې به د کافورو یخ والے او د زنجبیل خوند او د مشکو خوشبوئی وی بغیر د ضرر او سیزلو نه۔

تُسَمّٰی سَلۡسَبِیۡلًا : ددے بله معنیٰ ده [تُوۡصَفُ بِالسَّلَاسَةِ وَحُسۡنِ الۡجَرۡیِ] یعنی د هغے صفت کیږی پدے چه ډیره نرمه او ښائسته روانه ده۔

یا دا ماخوذ دے د سلاسة نه، دا هغه مشروب دے چه په مرئ کښې په آسانه سره تیریږی د وجه د خائسته خوند د هغے نه، او د ډیر لذت نه او د پوره صفائی د هغے نه۔ او پدے کښې باء زیاتی ده۔

او مقاتل بن حیانؒ وائی : دے ته سلسبیل پدے وجه وائی: چه دا به د دویٔ په لارو او

کورونو کښې په آسانئ سره بهيږي چه دا به د جنت عدن نه چه د عرش بيخ دے راروانه وي نورو جنتونو ته.

وَيَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُّخَلَّدُونَ: اوس د جنت خدمتګاران ذکر کوي.

د جنتيانو د خدمت لپاره به هر وخت د دوئ نه ګير چاپيره کم عُمره هلکان د هغوئ د اشارو په انتظار اوسيږي. دا هلکان به هميشه دپاره ښائسته شکل والا او تر او تازه اوسيږي، الله تعالىٰ به دوئ په جنت کښې پيدا کوي، نۀ به دوئ بوډاګان کيږي، نۀ به هيڅ کله د دوئ حُسن او جمال بدليږي. کله چه د جنتيانو نظر په دوئ پريوځي نو هغوئ به د بيحده حُسن او ښائست او د مخونو د بے انتهاء تر او تازګئ له وجے داسے معلوميږي لکه صفا او شفاف فرش باندے د ملغلرو خورے ورے دانے دي.

وَيَطُوفُ: د طواف نه مراد هر وخت د خدمت دپاره تلل راتلل او حاضر وسيدل دي.

وِلْدَانٌ: يعنى هلکان به وي چه د بلوغ نه خکته عمر کښې به وي.

بعض وائي : دا به الله تعالىٰ په جنت کښې پيدا کړي وي د مؤمنانو د خدمت دپاره، او بعض وائي چه دا د مؤمنانو اولاد دے چه دوي په وړوکوالي کښې وفات شوي وي.

ابن برحانٌ وائي : دا به د کافرانو اولاد وي چه په وړوکوالي کښې وفات وي، نو دوي لکه څنګه چه الله تعالىٰ د مؤمنانو دپاره په دنيا کښې غلامان او وينزے جوړے کړيدي نو په جنت کښې به د دوئ خدمتګاران وي، او هرچه د مؤمنانو اولاد دي نو هغوي به الله تعالىٰ د خپلو پلارانو سره يو ځاي کوي د هغوي د خوشحالولو دپاره.

مګر مفسر خازنؒ وئيلي دي چه صحيح دا ده چه دا جنت کښې پيدا دي لکه د حورو په شان.

مُّخَلَّدُونَ : يعني هميشه به همدغه شان هلکان وي، او تبديلي او مرضونه او بوډا والي او فناء به ورباندے نۀ راځي.

لُؤْلُؤًا مَّنثُورًا : دا تشبيه ده په حسن او صفائي کښې، او په ډير والي او خواره واره کيدو کښې د خدمت دپاره په جنت کښې.

مفسرين ليکي چه دا هلکان د خورو ورو ملغلرو سره په دے مناسبت سره مشابه شوي دي چه دوئ به د جنتيانو د خدمت لپاره هر اړخ ته خوريږي، او په تيزئ سره به د دوئ خدمت کوي. په خِلاف د (حُور عين) نه چه د هغوئ تشبيه په سيپو کښې بندو ملغلرو

سره ورکړے شوے ده، ځکه چه هغوئ به خدمت دپاره نهٔ وی، بلکه د جنتیانو د خوند او مزو دپاره به وی. (فتح البیان)

وَاِذَا رَاَیۡتَ: دا نبی کریم ﷺ ته او بیا هر مخاطب ته خطاب دے. یعنی چه ته کله په جنت او جنتیانو باندے نظر واچوے نو هلته به بیشماره نعمتونه په دومره فراخه او ارته علاقه کښې خوارهٔ شوی اُووینے چه د هغے د فراخیو اندازه به ته اونهٔ لګوے.

هر جنتی دپاره به جدا جدا ښکلی محلونه او بنګلے، سرسبز او تازه باغونه، انتهائی مزیدارے میوے، بهیدونکی نهرونه، چغے وهونکے مرغئ، او بیحده ښکلے او ښائسته ښځے وی، او د دوئ نه ګیر چاپیره به خوارهٔ وارهٔ غلامان وی، چه هغوئ به خدمت دپاره د دوئ د اشارے په انتظار وی.

او ددے تمامو نعمتونو نه لوی نعمت به جنتیانو ته دا ملاویږی چه د دوئ رب به د دوئ نه راضی کیږی. دوئ ته به د هغهٔ قرب او نزدیکت حاصلیږی، او دوئ به د جنت نه هیڅ کله نه اُوخکلے کیږی.

وَاِذَا رَاَیۡتَ: دا ئے په لنډه طریقه د جنت تفصیلی نعمتونو ته اشاره وکړه. چه هلته داسے لوی نعمتونه او لویه بادشاهی ملاویږی چه د هیڅ انسان په خیال او خاطر کښې هم نهٔ ده تیره شوے.

نَعِیۡمًا : یعنی نور ډیر شے نعمتونه، چه ددے نعمتونو بیان نهٔ دے شوے صرف الله تعالیٰ ته معلوم دی.

او بعض مفسرینو وئیلی دی چه د ملائکو او د الله تعالیٰ د طرف نه سلامونه په جنتیانو، د هغوی په سرونو باندے ښکلے او مزیدار تاجونه په سر کیخودل، او د الله تعالیٰ دیدار کول، او د جنت په بازارونو کښې سیلونه کول، او د هغوی د باغاتو نه مزے اخستل، او د یو بل ملاقاتونو ته تلل دی.

وَمُلۡكًا كَبِیۡرًا: نه معلومه شوه چه هر جنتی بادشاه دے، او دا په دنیا کښې په لږه سختئ تیرولو سره حاصلیږی.

عٰلِیَهُمۡ ثِیَابُ : اُوس د جنتیانو د لباس بیان کیږی. یعنی جنتیان به داسے لباس آغوندی چه هغه به د شنو باریکو ریښمو نه جوړ شوے وی، او ځهٔ به د نورو غټو ریښمو نه جوړ شوے وی، او دوئ به د چاندئ بنګړی آغوستی وی.

شوکانیؒ لیکی چه دلته الله تعالیٰ ذکر کړی دی چه جنتیان به د چاندئ بنګړی آغوندی، او د سورۂ فاطر په (۲۳) آیت کښې ئې فرمایلی دی چه دوئ به د سرو زرو بنګړی آغوندی، او د سورۂ الحج په (۲۳) آیت کښې ئې فرمایلی دی چه دوئ به د سرو زرو او ملغلرو بنګړی آغوندی،
نو ددې آیتونو مطلب دادې چه د جنتیانو بنګړی به درې قِسمه وی، او د خپل خواهش مطابق به ئې اغوندی۔
او جنتیانو باندې به د دوئ رب یو بل قِسم شراب هم اوڅکوی، چه د هغې نوم به [شرابِ طهور] وی، چه هغه به نۀ د دنیا د شرابو غونته ناپاکه وی، او نۀ به په هغې کښې څۀ قِسم خروالے او درونډ والے وی۔
کله چه جنتیان دا تمام نعمتونه په خپلو سترګو اووینی، او ددې نه خوندونه واخلی، نو دوئ ته به وئیلے کیږی چه دا هر څۀ ستاسو د ایمان او تقوٰی بدله ده، او ستاسو نیک عملونه الله تعالیٰ نۀ دی برباد کړی۔
عَالِيَهُمْ : دا ضمیر جنتیانو ته راجع دې، خادمان وی او ګۀ مخدومان۔ اګرکه د لباس په درجاتو کښې د دوئ تفاوت او فرق شته۔
سُندُسٍ: نری ریښمو ته وائی، او دا د هغه جامو دپاره استعمالیږی چه دپاسه طرف نه وی۔
خُضْرٌ: دا صفت د ثیاب دې، یعنی شنے جامے به وی د سندس نه۔
وَإِسْتَبْرَقٌ : دا غټو وریښمو ته وئیلے شی، چه په هغې کښې چمك وی ځکه چه د برق نه ماخوذ دې، او دا د جامے په استر کښې استعمالیږی۔ لکه چه په سورۃ رحمن (٥٤) آیت کښې تیر شویدی۔
شَرَابًا طَهُورًا: یعنی نجس به نۀ وی په شان د شرابو د دنیا؛ او د خیرو نه به هم پاك وی او ددې نه به واړه او لوئی بول هم نۀ جوړیږی۔
او دا د کافور او د زنجبیل نه علاوه ناشنا مشروبات دی چه د هغې نه به ئې روستو ورکوی، ددې وجه نه ئې شرابًا نکره ذکر کړیده۔ او نسبت د څکولو ئې الله تعالیٰ طرفته وکړو۔ او په طهوریت باندې ئې متصف کړل ځکه چه دا شراب به څکونکے کښې ناشنا پاکی پیدا کوی او د الله تعالیٰ د دیدار مستحق به ئې جوړه وی۔ بس صرف د الله د جمال

کتلو ته به وزګار وي، د هغهٔ په ملاقات به خوند اخلي.
مقاتلؒ وائي: دا د يوې چينې اوبه دي چه د جنت په دروازه کښې ده څوك چه ددې نه څکل وکړي نو الله به ددهٔ د زړهٔ نه غش او کينه او حسد وباسي.
ابو قلابهٔ او ابراهيم النخعيؒ فرمائي: جنتيانو ته به طعام راوړې شي کله چه آخر شي نو دوی ته به شراب طهور راوړې شي، دوی به ئې وڅکي نو ددې په وجه به ئې خيټې خوارې شي، او د دوی د بدنونو نه به خولې وبهيږي لکه د مشکو د خوشبوئي په شان.
(فتح البيان والقرطبي وغيره)
**إِنَّ هٰذَا:** يعني دا جنت او ددې نعمتونه ستاسو د عملونو بدله ده.
**مَّشْكُوْرًا:** يعني ستاسو کوشش قبول شوې وو. د الله تعالیٰ شکر د بنده د عمل دا دې چه هغه ئې خوښ او قبول کړي. نو دا هغه سرټيفيکيټ دې چه انسان ته د الله تعالیٰ د طرفنه د امتحان په کاميابيدو کښې ورکړې شو.

| |
|---|
| إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ تَنْزِيْلًا ﴿٢٣﴾ فَاصْبِرْ لِحُكْمِ |
| يقيناً مونږ نازل کړيدې په تا باندې قرآن په نازلولو سره. نو صبر کوه فيصلې د |
| رَبِّكَ وَلَا تُطِعْ مِنْهُمْ آثِمًا أَوْ كَفُوْرًا ﴿٢٤﴾ وَاذْكُرِ اسْمَ رَبِّكَ |
| رب خپل ته او خبره مهٔ منه د دوی نه د ګناهګار يا د کفر کونکي. او يادوه نوم د رب |
| بُكْرَةً وَّأَصِيْلًا ﴿٢٥﴾ وَمِنَ اللَّيْلِ فَاسْجُدْ لَهُ وَسَبِّحْهُ لَيْلًا طَوِيْلًا ﴿٢٦﴾ |
| خپل صبا او بيګاه. او د شپې نه سجده کوه هغهٔ ته او پاکي بيانوه د هغهٔ شپه اوږده. |

**تفسير :** اوس وائي چه د امتحان کتاب قرآن کريم دې، نو د قرآن رشتين والې ذکر کوي، او دې ته ترغيب ورکوي. بيا ئې آخرت او قرآن جمع کړل.
او پدې کښې هغه خلق ذکر کوي چه تا په امتحان کښې ناکام کول غواړي نو د هغوی خبره به نهٔ منې، او نهٔ به د هغوی تابعداري کوې.
مطلب دا دې چه دا قرآن مونږه په تا باندې نازل کړې، دا تا د ځانه نهٔ دې جوړ کړې لکه څنګه چه مشرکان په تا باندې تور لګوي، دې وجې نه تهٔ د خپل رب د پيغمبرئ ذمه داري قبوله کړه، او يې له کوم زياتي او نقصان نه دا خلقو ته اورسوه، او د قريشو د

مشرکانو نه د ابو جهل او عتبه بن ربیعه غونته گنهکارانو،

او د ولید بن مغیره پشان نافرمانو او ناشکره خلقو خبره مهٔ منه، او خپل دعوت واخله او مخ په وړاندے ځه، او د خپل رب دپاره مونځ کوه، په ذکر او تسبیح کښې مشغوله اوسه، او لاس خوارهٔ کړه او د هغهٔ مخامخ ژړا او زاری کوه، او په شپو کښې پاسیږه او تهجد مونځ کوه، او ډیر وخته پورے د خپل رب پاکی بیانوه۔

تَنۡزِیۡلًا : یعنی لږ لږ نازل شو بدے دپاره د تربیت د اُمت، او پدے کښې اشاره ده چه د قیامت حالات په قرآن کریم کښې لږ لږ په جدا جدا سورتونو کښې ذکر کیږی دپاره د عبرت اخستو۔

فَاصۡبِرۡ لِحُكۡمِ رَبِّكَ: یعنی د دین د دشمنانو په مقابله کښې په دین باندے کلك شه او پدے باره کښې چه کوم تکلیفونه راځی نو په هغے صبر کوه۔ او د دین د مخالفینو د تابعداریٔ نه ځان ساته۔

[آثِمًا] (گنهگار) نه مراد عتبه بن ربیعه او د [كَفُوۡرًا] (ناشکره) نه مراد ولید بن مغیره دے۔ ځکه چه دے دواړو نبی کریم ﷺ ته وئیلی وو چه تهٔ خلقو ته د اسلام دعوت ورکول بند کړه، مونږ به تاله مالونه درکړو، او د خپلے ډیرے ښکلے ښځے سره به ستا وادهٔ وکړو۔ نو الله تعالیٰ ﴿ إِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا عَلَيۡكَ الۡقُرۡآنَ تَنۡزِيۡلًا ﴾ او ددے نه روستنی آیتونه نازل کړل۔

د آثم نه مراد منافق یا عام گناهگار دے۔

اَوۡ كَفُوۡرًا : ښکاره کافر او مشرك او هغه چه زړه کښې کفر ساتی، داسے کسان د قرآن کریم نه منع کول کوی، شرك او مداهنت ته بلنه کوی، نو د دویٔ خبره به نهٔ منے۔

(اَوۡ) ئے ولے ذکر کړو سره ددے نه چه د گناهگار او کافر دواړو خبره منل حرام دی؟

نو ددے جواب دا دے چه د هر یو تابعداری جدا جدا حرامه ده، او که واو ئے وئیلے وے، نو دا وهم راتللو چه د دواړو په یو ځای اطاعت حرام دے، او جدا جدا اطاعت جائز دے۔

او فراءٔ وئیلی دی چه (اَوۡ) دلته په معنیٰ د (لَا) سره دے۔ یعنی مهٔ د آثم خبره منه او نهٔ د کفور۔

وَاذۡكُرِ اسۡمَ رَبِّكَ : دا دا متحان دپاره تیاری ده۔ یعنی د الله تعالیٰ په ذکر اذکار کښې صبا او بیگاه مشغوله شه۔

بُكۡرَةً وَّأَصِيۡلًا : دے کښې د مونځونو اوقاتو ته هم اشاره ده۔ بکرةً د صبا مونځ او

اصیلًا د ظهر او عصرِ مونځ او وَمِنَ الَّیْلِ د ماښام او ماسخوتن مونځ شو۔ او سَبِّحْهُ لَیْلًا طَوِیْلًا کښې د تهجدو مونځ۔ او مونځ هم په تسبیح او ذکر باندے مشتمل دے۔

یا ددے ذکر نه مراد عام دے چه په مانځه کښې وی او که بهر د مانځه نه وی۔

او بکرةً او اَصِیْلًا کښې ذکر د ورځے د دوه طرفونه دے او مراد ترے ټول اوقات دی۔ یا خاصکر صبا او بیګاه خو ذکر له وخت ورکول پکار دی، چه د الله تعالیٰ پدے حکم باندے عمل راشی۔

او په وَاذْکُرِ اسْمَ رَبِّكَ : کښې د الله نومونه په وخت د مصیبت کښې یادول. یا الله یا رحمن یا رحیم، یا ذا الجلال والاکرام وئیل، او هغهٔ ته رامدد شه وئیل او د هغه په نومونو باندے د الله نه غوښتل کول دا ټول داخل دی۔

وَمِنَ الَّیْلِ: مِنْ ئے راوړو پدے کښې اشاره ده چه ټوله شپه مونځ او ذکر نهٔ شته همیشه دپاره بلکه په څه حصه د شپه کښې خوب کول هم شته۔

وَسَبِّحْهُ: ددے نه مراد یا خو عام تسبیحات وئیل دی، او یا ددے نه مراد په مانځه کښې تسبیحات وئیل دی۔

| |
|---|
| إِنَّ هٰؤُلَاءِ يُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ وَيَذَرُوْنَ وَرَاءَهُمْ يَوْمًا ثَقِيْلًا ﴿٢٧﴾ نَحْنُ |
| یقیناً دا کسان (کافران) مینه کوی د دنیا سره او پریدی شاته خپل ورځ درانهٔ۔ مونږ |
| خَلَقْنَاهُمْ وَشَدَدْنَا أَسْرَهُمْ وَإِذَا شِئْنَا |
| پیدا کړیدی دوی او مضبوط کړیدی مونږ بندونه د دوی او کله چه اُوغواړو مونږ |
| بَدَّلْنَا أَمْثَالَهُمْ تَبْدِيْلًا ﴿٢٨﴾ |
| بدل به کړو شکلونه د دوی په بدلولو سره۔ (په بدل کښې به راولو پشان د دوی |
| إِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ فَمَنْ شَاءَ اتَّخَذَ |
| بدل راوړل)۔ یقیناً دا (سورت) نصیحت دے پس څوك چه غواړی اُودے نیسی |
| إِلٰى رَبِّهٖ سَبِيْلًا ﴿٢٩﴾ وَمَا تَشَاءُوْنَ إِلَّا أَنْ يَّشَاءَ اللّٰهُ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا |
| رب خپل ته لاره۔ او نهٔ شئ غوختے تاسو مګر چه وغواړی الله۔ یقیناً الله پو هه |

| حَكِيْمًا ﴿۳۰﴾ يُدْخِلُ مَنْ يَّشَآءُ فِيْ رَحْمَتِهٖ وَالظّٰلِمِيْنَ |
|---|
| حکمتونو والا دے۔ داخلوی چا له چه اُوغواړی په رحمت خپل کښې او ظالمان |
| اَعَدَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۳۱﴾ |
| تیار کړے ئے دے دوی لره عذاب دردناك۔ |

**تفسیر** : اُوس دا خبره بیانوی چه تاسو د امتحان دپاره ځکه کوشش وکړئ چه دلته څه بَطالین (سست/ بیکاره) خلق دی چه هغوی دنیا غوره کړیده، او د آخرت دپاره هیڅ کوشش نهٔ کوی ځکه چه د هغه نتیجے ورځے ته ئے فکر نشته۔ او د دنیا بے رغبتی بیانوی۔

نو پدے کښې د مکے د کافرانو او د نورو کافرانو په باره کښې وئیلے کیږی چه دا خلق د دنیا عارضی فائدے خوښوی، او ددے د حاصلولو دپاره د دوئ منډه تړره ده، او د قیامت د ورځے خطرناکی ئے هیره کړے ده، دنیا طرفته داسے منډے وهی چه آخرت طرفته روستو هډو ګوری نهٔ، تهٔ به وائے چه دوئ د دنیا دپاره پیدا شویدی، او دوئ له به مرګ نهٔ راځی۔

**يُحِبُّوْنَ الْعَاجِلَةَ:** اَیْ فَلِذٰلِكَ لَايَذْكُرُوْنَ رَبَّهُمْ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا۔

یعنی دا مشرکان د دنیا سره مینه لری پدے وجه خپل رب صبا او بیګاه نهٔ یادوی، او نهٔ هغه ته سجدے لګوی او نهٔ د هغه تسبیح او پاکی وائی۔ او د الله تعالیٰ سره شرکونه کوی، برخه داران جوړوی۔

ددے ځای نه مونږ ته د دنیا پرستئ او د دنیا د محبت تعریف راښکاره کیږی چه هر هغه څوك چه سهار کښې اُوده وی، او مازیګر کښې چکرے وهی، او د شپے هم اُوده دے، او د الله تعالیٰ بندګی نهٔ کوی نو دغه دنیا پرست دے اګرکه ددهٔ به د یو بے روپئ سره هم مینه نهٔ وی۔ نو د دنیا محبت همدغے ته وائی چه انسان استراحتونه زیات اخلی، او مزے او چکرے وهی، او د آخرت دپاره تیارے نهٔ کوی، دنیا پرستی یو اځے د پیسو محبت ته نهٔ وائی۔ پیسے ګټه خو د الله تعالیٰ بندګی ورسره پابندئ سره کوه، نو ستا د دنیا سره محبت نشته۔ د الله تعالیٰ عبادتونه په دنیا باندے خرابول دنیا پرستی ده۔

**نَحْنُ خَلَقْنٰهُمْ :** دا دلیل دے د اثبات د آخرت دپاره، او دارنګه دنیا پرستو خلقو ته

زورنه او رتینه ده.
الله تعالیٰ وفرمایل: مونږ دوئ پیدا کړی دی، او د دوئ په بدنونو کښې مو پلے، رګونه، ریشے، او هډوکی پیدا کړی، او دوئ مو مضبوط جوړ کړی دی.
او هر کله چه مونږ اول ځل دوئ داسے پیدا کړی، نو د دوئ په دوباره پیدا کولو به مونږ یقینًا قادر یو، دے دپاره چه د دوئ د عملونو بدله دوئ ته ورکړو، او مونږ چه کله اوغواړو، په دے هم قادر یو چه دوئ هلاك کړو، او د دوئ په ځائے د دوئ پشان بل قوم راولو، یا د دوئ شکلونه مسخ کړو او دوئ انتهائی درجه بدشکله جوړ کړو.
اَسْرَهُمْ: دا د اَسَار نه ماخوذ دے هغه مزی ته وئیلے شی چه په هغے سره د اُوبښ پالان تړلے شی. اسیر (قیدی) هم ددے نه اخستلے شویدے.
او د اَسر نه مراد دلته اندامونه او پیوندونه د یو بل سره یو ځای کول او په پَلو سره تړل دی.
ابن عباس رضی الله عنه د اسر معنیٰ په خلق (پیدائش) سره کړیده. ابو هریره رضی الله عنه ئے په مَفَاصِلو یعنی جوړونو سره معنیٰ کړیده.
د الله څومره عظیم قدرت دے چه یو پړے یو اُوبښ ته په غاړه کښې واچوه کال پس به هغه زوړ شوے او ختم شوے وی. او د انسان په سترګو کښې نری رګونه دی چه انسان شپیته اویا کاله ژوندے وی او هغه رګونه ئے کار کوی.
اَمْثَالَهُمْ: ۱- ددے یو مطلب دا دے چه که دوی بندګی نهٔ کوی نو الله تعالیٰ به نور خلق راولی چه هغوی به د الله تعالیٰ ډیره بندګی کونکی وی.
لکه په سورة نساء (۱۳۳) آیت او سورة ابراهیم (۲۰/۱۹) او سورة فاطر (۱۷/۱٦) آیت کښې ذکر دی.
۲- یا د امثال نه مراد شکلونه دی. چه دوی به ناکاره شکلونو ته بدل کړے شی لکه په سورة یسٓ (٦٨) آیت کښې دی.
اِنَّ هٰذِهٖ تَذْكِرَةٌ: هٰذِهٖ اشاره ده پورتنی آیتونو ته. یعنی دا پورتنی آیتونه د عبرتونو نه ډك دی، اوس چه څوك غواړی د ایمان او بندګئ په لار دے روان شی او خپل رب دے راضی کړی، دے دپاره چه په آخرت کښې خوشحاله وی او د اُور د عذاب نه بچ شی.
وَمَا تَشَاؤُونَ: یو تن به هدایت قبول کړی بیا به فخر کوی او خپل کمالات به ذکر

کوی نو الله تعالیٰ دلته دغه فخر زائل کوی چه اے خلقو ! په نیغه لاره باندے ستاسو د تللو مشیت (خوښه) د الله تعالیٰ د مشیت تابع دے، یعنی کله چه الله تعالیٰ تاسو له هدایت درکول غواړی، او تاسو له د خیر توفیق درکوی، هله به تاسو په دے لاره روانیږئ.

نو په دے کښې دفع د فخر او عجب شوه، او دویم په دے کښې دعوت دے، تضرع او عاجزئ ته، چه هر څه د الله تعالیٰ په واك کښې دی نو هغه ته وژاړئ چه اے الله ! مونږ ته هدایت خامخا راکړه او په نیغه لاره مو روان کړه.

یُدْخِلُ: دا د مخکنئ خبرے زیات تاکید دے چه الله تعالیٰ وفرمایل چه هغه چه چاته غواړی په خپل رحمت کښې ئے داخلوی، د هغهٔ په مشیت کښې هیڅوك کوتے نشی وهلے، نو څوك چه په خپل رحمت کښې داخلوی، نو دا ئے رحم دے او چه څوك نهٔ داخلوی نو دائے عدل دے. نو ځکه هغوی ته ظالمان وائی.

یعنی څوك ئے چه په رحمت کښې داخل نهٔ کړل نو دا ظالمان وو، نو ځکه فرمائی چه ظالمانو دپاره هغهٔ دردناك عذاب تیار کړے، د هغهٔ فیصلے څوك بدلولے نشی.

یعنی اهل د جنت او اهل د اُور جدا جدا پیژنی، انابت والو ته هدایت کوی، دے وجے نه بندګانو له پکار دی چه دوئ د خپل رب نه د هغهٔ د رحمت سوال وکړی، هغهٔ نه د خیر توفیق، او د آخرت د عذاب نه نجات وغواړی.

اے الله رحمن او رحیم ! مونږ ستا نه ستا د رحمت او د دنیا او د آخرت د خیرونو سوال کوو او ستا د عذابونو نه په تا پورے پناه غواړو. وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة الدهر

۱- په دے کښې د انسان حالت ذکر شو چه داسے وخت پرے راغلے وو چه دے هیڅ نهٔ وو.

۲- د ابتلاء طریقه دے سورت خودلے ده او د هغے دپاره تیارے.

۳- او د جنت د نعمتونو ناشنا تفصیلات.

٤- د انسان د اندامونو مضبوطوالے.

٥- پنځو مونځونو ته اشاره.

ختم شو تفسیر د سورة الانسان په توفیق د رب العزت سره په ۱۳ رمضان ۱٤۳۷ هـ موافق (۲۰۱٦/جون/۱۸ مازیګر.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

| آیاتها (٥٠) | (٧٧) سُوْرَةُ الْمُرْسَلٰتِ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة المرسلات مکی دے، په دے کښې پنځوس آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة المرسلات

**نوم :** (١) سورة [اَلْمُرْسَلٰتِ] (٢) [سُوْرَةُ الْعُرْف] هم دے، [الْعُرف] لفظ هم په اولنی آیت کښې راغلے۔

**د نازلیدو زمانه :** دا سورت مکی دے۔ قتادة صرف (٤٨) آیت : ﴿ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ ﴾ تـه مـدنـی وئیلی دی۔ ابن مردویهٓ او بیهقیٓ د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړی چه سورة المرسلات په مکه کښې نازل شوے۔

بخاریٓ او مسلمٓ او نورو د ابن مسعود ﷺ نه نقل کړی دی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د مِنیٰ په یو غار کښې وو، نو سورهٔ [وَالْمُرْسَلٰتِ عُرْفًا] نازل شو۔ رسول الله ﷺ لوستلو، او ما دا حاصلولو ...... الحدیث۔ (بخاری : ١٨٣٠) مسلم : ٥٩٧٢)

### مناسبت

١- مـخـکښې سورت کښې د آخرت منکرینو ته لږ زجرونه وو نو پدے سورت کښې ډیر زجرونه دی، لس کرته ئے ورله (وَيْلٌ) کلمه ذکر کړیده۔

٢- مـخـکـښې د اثبات د بـعـث بعد الموت دپاره یو دلیل ذکر وو نو پدے سورت کښې د هغے اثبات په ډیرو شواهدو او عقلی دلیلونو سره کوی۔

### د سورت مقصد

اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ : الله تعالیٰ چه کومے وعدے کړیدی هغه به خامخا واقع کیږی، لکه

د جنت، د جهنم، د عذابونو، د حسابونو۔ نو پدے کښں هم اثبات د آخرت دے۔
اول کښں قسمونه دی په اثبات ددے دعوے باندے، او بیا د قیامت احوال ذکر کوی چه قیامت به څنګه راځی۔ او بیا چه د قیامت ورځ راشی نو د انسانانو دوه قسمه حاله، یو مکذبین او بل متقین، نو د مکذبینو سزاګانے او د متقیانو جزاګانے۔ او مینځ کښں د اثبات د آخرت دپاره دلیلونه دی۔

## فضیلت :

رسول الله ﷺ به د مابنام په مانځه کښں کله نا کله لوستلو۔ (بخاری: ۷٦۳)

| وَالْمُرْسَلَاتِ عُرْفًا ﴿۱﴾ |
|---|
| قسم دے په هغه ملائکو چه رالیږلے شویدی په نیکئ۔ (یا: قسم دے په هغه هواګانو چه رالیږلے شی په نرمئ سره یا (پړله پسے))۔ |
| فَالْعَاصِفَاتِ عَصْفًا |
| نو هغه هواګانے چه ماتول کوی ماتول۔(یا هغه هواګانے چه په سختئ رالوزی په سختئ سره)۔ |
| ﴿۲﴾ وَالنَّاشِرَاتِ نَشْرًا ﴿۳﴾ فَالْفَارِقَاتِ |
| او هغه هواګانے چه خورول کوی په خورولو۔ نو جدا کونکی دی (وریځو لره) |
| فَرْقًا ﴿٤﴾ فَالْمُلْقِيَاتِ ذِكْرًا ﴿٥﴾ |
| په جدا کولو۔ پس قسم دے په هغه ملائکو چه غورزونکی دی وحی لره۔ |
| عُذْرًا أَوْ نُذْرًا ﴿٦﴾ إِنَّمَا |
| دپاره د عذر زائله کولو یا دپاره د یرولو۔ یقیناً هغه څه |
| تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ ﴿۷﴾ |
| چه تاسو سره ئے وعده کیدیشی خامخا واقع کیدونکے دے۔ |

**تفسیر** : وَالْمُرْسَلَاتِ: (۱) پدے کښں آسان تفسیر دا دے چه دا د مختلفو څیزونو

دپاره صفتونه دی، نو مرسلات نه مراد ملائك دی. او عاصفات او ناشرات او فارقات هواګانے دی، او مُلقيات بيا ملائك دی.

او مناسبت ئے د جواب قسم (اِنَّمَا تُوْعَدُوْنَ لَوَاقِعٌ) سره ښهٔ جوړیږی چه ملائك الله تعالیٰ په وحی رالیږلی دی، او وحی حياة الارواح دے، روحونه ژوندی کوی، او هواګانے وريځے راپورته کوی، او بارانونه راوروی، او باران حياة الاجسام دے. يعنی جسمونه (زمکه وغيره) پرے ژوندیٔ کیږی.

نو لکه څنګه چه الله تعالیٰ ستاسو بدنونه په باران سره او روحونه په وحی او په قرآن سره ژوندی کړیدی، نو دغه شان به قيامت کښې به ستاسو اجسام او ارواح دواړه راژوندی کړی.

نو معنیٰ دا جوړیږی: قسم دے په هغه ملائکو چه رالیږلے شی په عرف يعنی معروف (نیکیٔ) باندے چه هغه وحی ده، او نور د خیر کارونه دی.

نو پدے کښې په هغه ملائکو قسم شویدے چه هغویٔ په اِلٰهی وحی او په نورو امرونو او منع شوو څیزونو سره دنیا ته رالیږلے کیږی.

فَالْعَاصِفَاتِ : پس قسم دے په هغه ملائکو چه سختی کونکی دی د کافرانو د روحونو سره په سختی کولو سره.

وَالنَّاشِرَاتِ : (واو ئے راوړو اشاره ده چه ددے نه نور څیزونه مراد دی) يعنی قسم په هغه هواګانو چه خورونکی دی وريځو لره په خورولو سره.

فَالْفَارِقَاتِ: پس قسم دے په هغه هواګانو چه جدا کونکی دی وريځو لره په جدا کولو سره.

فَالْمُلْقِيَاتِ: پس قسم دے په هغه ملائکو چه راغورزونکی دی وحی لره.

عُذْرًا: اَیْ لِاِزَالَةِ الْعُذْرِ. دپاره د زائل کولو د عذر.

اَوْ نُذْرًا: او دپاره د يره ولو د بندګانو.

يعنی د [اَلْمُلْقِيَاتِ] نه مراد هغه ملائك دی چه هغه د الله هغه وحی انبياء کرامو عليهم السلام ته رسوی چه د هغے نه مقصد د انسانانو دپاره د حق دين وضاحت کول وی، دے دپاره چه د ګمراهیٔ دپاره د هیچا هیڅ عذر باقی پاتے نشی، دارنګه مقصد دویٔ لره د الله د عذاب نه ویرول وی، دے دپاره چه د الله نافرمانی ونکړی.

(۲) بعض مفسرینو دا ټول صفات د هواګانو جوړ کړیدی۔ او د فالملقیات نه په اتفاق سره ملائك مراد دی کما قال القرطبی۔ نو معنیٰ به دا وی۔
قسم دے په هغه هواګانو چه رالیږلے شی (عرفا) اَیْ مُتَتَابِعَةً۔ یعنی پرله پسے۔(نرمے)
فَالْعَاصِفَاتِ : پس قسم دے په هغه هواګانو چه تیزے او تندے رالوزی په تیزئ او سختئ سره۔ او عصف په معنیٰ د ماتولو سره هم راځی۔
یعنی قسم دے په هغه هواګانو چه ماتول کوی په ماتولو سره۔ (ځکه چه بعض هواګانے نرمی رالوزی په یو ترتیب سره وی، او بعض ګډے وډے سختی رالوتونکی وی)
وَالنَّاشِرَاتِ : او قسم دے په هغه هواګانو چه خورونکی دی وریځو لره په خورولو سره۔
فَالْفَارِقَاتِ: پس قسم دے په هغه هواګانو چه جدا کونکی دی وریځو لره په جدا کولو سره۔
فَالْمُلْقِيَاتِ : دا صرف صفت د ملائکو دے۔ یعنی قسم دے په هغه ملائکو چه راګوزارونکی دی وحی لره انبیاؤ علیهم السلام ته۔
او بعض علماؤ دا هم د هواګانو صفت ګرځولے دے، او ذکر په معنیٰ د باران سره او عُذْرًا په معنیٰ د طمع سره۔ نو بیا معنیٰ داسے ده :
پس قسم دے په هغه هواګانو چه راغورزونکی دی باران لره دپاره د طمع ورکولو بندګانو ته یا دپاره د یره ولو د هغوی۔ لیکن دا تفسیر بعید دے۔
(۳) ځینی مفسرینو دا ټول صفات د ملائکو جوړ کړیدی معنیٰ دا ده :
قسم دے په هغه ملائکو چه رالیږلے شی په وحی سره،
والعاصفات : قسم دے په هغه ملائکو چه په سختئ سره روحونه ویستوونکی دی د کافرانو نه په سختئ سره۔
وَالنَّاشِرَاتِ : قسم دے په هغه ملائکو چه خورونکی دی وریځو لره (یعنی هغه ملائك چه په وریځو مقرر دی او هغه د یو ځای نه بل ځای ته بوځی)
❁ یا هغه ملائك چه خورونکی دی وزرے خپلے په وخت د نازلولو د وحی کښں۔
❁ ضحاكؒ وائی : قسم دے په هغه ملائکو چه خورونکی دی عملنامے د بنیادمانو)۔
❁ یا ددے نه مراد ملائك دی چه هغه په زمکه باندے د شریعت احکام، علم او حکمت

او نبوت او هدایت خوروی۔
فَالْفَارِقَاتِ: پس قسم دے په هغه ملائکو چه جدائی راوستونکے دی په مینځ د حق او د باطل کښې (په وحی سره)۔ (ابن عباس ﷺ)
نو د [اَلْفَارِقَاتِ] نه مراد هغه ملائك دی چه هغه وحی را واخلی او د حق او باطل او حلال او حرام ترمینځه فرق کولو دپاره د آسمان نه په زمکه راکوزیږی۔
❁ بعضو ددے نه قرآنی آیتونه مراد کړیدی چه هغه د حق او باطل ترمینځه فرق کوی۔
فَالْمُلْقِیَاتِ ذِكْراً: ددے معنیٰ واضحه شوه۔
بعضو د المرسلات او الفارقات او الملقیات نه د انبیاء علیهم السلام نفسونه مراد کړیدی۔ چه تفصیل ئے په فتح البیان کښې کتلے شی۔ اول تفسیر پکښې زیات مناسب دے۔
د حافظ ابن کثیرؒ په نیز غوره داده چه د المرسلات، العاصفات، او الناشرات درے واړو نه مراد هواګانے شی، چه ددے تفصیل پورته تیر شو۔
اِنَّمَا تُوعَدُونَ لَوَاقِعٌ: دا جواب قسم دے۔ یعنی دا قسمونه ددے دپاره خوړلے کیږی چه تاسو سره د قیامت د راتللو او په هغے کښې د احوالو کومه وعده شویده نو هغه یقینی واقع کیدونکے ده۔ او ددے جواب او د قسم ترمینځ عمومی مناسبت دادے چه لکه څنګه چه دغه امور واقعیه محسوسه دی، نو قدرت د الله تعالیٰ په دغه امورو باندے دلیل دے چه الله تعالیٰ د قیامت په امورو راوستو باندے قادر دے۔

| فَإِذَا النُّجُومُ طُمِسَتْ ﴿٨﴾ وَإِذَا السَّمَآءُ فُرِجَتْ ﴿٩﴾ وَإِذَا |
| --- |
| پس کله چه ستوری بے رڼرا کړے شی۔ او کله چه آسمان کولاؤ کړے شی۔ او کله |
| الْجِبَالُ نُسِفَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا الرُّسُلُ أُقِّتَتْ ﴿١١﴾ لِأَيِّ يَوْمٍ |
| چه غرونه والوزولے شی۔ او کله چه رسولان راجمع کړے شی۔ د کومے ورځے دپاره |
| أُجِّلَتْ ﴿١٢﴾ لِيَوْمِ الْفَصْلِ ﴿١٣﴾ وَمَا أَدْرَاكَ |
| روستو کړے شویدی (دا احوال)۔ دپاره د ورځ د فیصلے۔ او څه پوهه کړے ئے ته |

| مَا يَوْمُ الْفَصْلِ ﴿١٤﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِينَ ﴿١٥﴾ |
|---|
| چه څه ده ورځ د فیصلې۔ هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو۔ |

**تفسیر** : فَإِذَا النُّجُومُ: اُوس وائی چه دا به کله راځی؟۔ نو ددے وخت د واقع کیدو بیانوی۔

یعنی کله چه قیامت واقع شی نو ستوری به خوارهٔ وارهٔ شی او خپله رنړا به دلاسه ورکړی، او آسمان به اُوشلیږی، او د هغے اړخونه به رابنکته شی، او غرونه به ټکړے ټکړے شی او گرد به ترے جوړ شی چه په فضاء کښ به آلوزی۔ الله تعالیٰ د سورهٔ طه په (۱۰۵) آیت کښ فرمایلی دی : ﴿ وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ﴾ (دوئ تانه د غرونو په باره کښ تپوس کوی، نو ته اووایه چه دا به زما رب ریزه ریزه کړی او وابه ئے لوزوی)۔ او په دے ورځ به انبیاء او رسولانو علیهم السلام دپاره مقرر کړے وخت راشی، دے دپاره چه د دوئ او د دوئ د اُمتونو ترمینځه فیصله وکړے شی۔

طُمِسَتْ: طمس، ورانول، زړیدل، بے نوره کیدل دی۔ یعنی اول به ترے رنړا ختمه شی بیا به ودوړیږی او ختم به شی۔

وَإِذَا السَّمَاءُ : دا اسم جنس دے تولو آسمانونو ته وئیلے شی۔

فُرِجَتْ : فرج په لغت کښ چودل او کولاویدو ته وائی۔ لکه روستو سورة کښ راځی ﴿وَفُتِحَتِ السَّمَاءُ فَكَانَتْ أَبْوَابًا﴾ (النبأ : ۱۹) آسمان به کولاو شی او دروازے دروازے به شی۔

وَإِذَا الْجِبَالُ نُسِفَتْ : نسف، د ویخ نه ویستل، په جلتئ سره تختول، د دانونه بوس آلوزول، او د یو شی اجزاء د بل نه جدا کیدو ته وئیلے شی۔

وَإِذَا الرُّسُلُ أُقِّتَتْ: دا په اصل کښ وُقِّتَتْ دے، د وقت نه اخستے شویدے،

اَیْ جُمِعَتْ وَانْضَمَّتْ فِیْ وَقْتٍ مَعْلُوْمٍ۔

یعنی په مقرر وخت کښ به رسولان راجمع او یو ځای کړے شی۔

یا معنیٰ ده : جُعِلَ لَهَا وَقْتٌ لِلْفَصْلِ وَالْقَضَاءِ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ الْأُمَمِ۔

یعنی کله چه د رسولانو دپاره وقت مقرر کړے شی دپاره د فیصلے د دوی او د دوئ د امتونو ترمینځ۔ لکه الله فرمایلی دی : ﴿ يَوْمَ يَجْمَعُ اللَّهُ الرُّسُلَ ﴾ (المائده : ۱۰۹)

۳- اُرْسِلَتْ لِاَوْقَاتٍ مَعْلُوْمَةٍ عَلٰى مَا عَلِمَ اللّٰهُ بِهٖ]
یعنی کله چه رسولان معلوم اوقاتو ته ولیږلے شي کوم چه الله تعالیٰ ته معلوم دي۔
اُجِّلَتْ: دلته یُقَالُ لفظ پټ دے (یعني وئیلے به شي چه دوی د کومے ورځے دپاره روستو کړے شویدي؟)۔ او دا تپوس دپاره د عظمت او هیبت د هغه ورځے دے۔
اُجِّلَتْ: دے کښې ضمیر رسولانو ته راجع دے۔ یا مخکنو تیر شوو ټولو احوالو ته۔
لِيَوْمِ الْفَصْلِ: دا جواب دے د مخکني تپوس۔
یوم الفصل د قیامت د نومونو نه یو نوم دے۔ دے ته یوم الفصل ځکه وائي چه پدے ورځ به جدائي راشي د مخلوق د یو بل نه، او فیصلے به وکړے شي په مابین د پیغمبرانو او امتونو کښې۔
قتادهٗ وائي : پدے ورځ به د خلقو ترمینځ جدائي راځي په اعمالو سره چه څوك به جنت ته روان وي، او څوك به اُور ته۔
وَمَا اَدْرٰىكَ مَا يَوْمُ الْفَصْلِ: دا دوباره تپوس د عظمت او هیبت دپاره کوي، یعني ته څه پوهه کړے ئے چه یوم الفصل څه شے دے؟ یعني دا خو یوه ناشنا هیبتاکه ورځ ده چه د هغے اندازه نشي کیدے۔
او په دے ورځ به د آخرت په حقله هغه ټولے خبرے راښکاره کړے شي چه د هغے نه انبیاء کرامو علیهم السلام خپل قومونه ویرول۔
وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ: اُوس رټنه تکذیب کونکو ته بیانیږي ۔یعني کوم خلق چه په دنیا کښې د فیصلے ورځ دروغژنه ګڼړي، هغوئ له په دے ورځ هلاکت او بربادي ده۔
الله تعالیٰ د سورۃ المطففین په (۱۰/۱۱) آیتونو کښې فرمایلي دي :
﴿ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴾
(په دے ورځ دروغژن ګڼړونکو دپاره لویه بربادي ده، چه هغوئ د قیامت ورځ دروغژنه ګڼړي)۔
پدے سورت کښې ئے ویل کلمه لس کرته ذکر کړیده ځکه چه حق څیزونه ډیر دي، او د هر یو تکذیب مستقل سبب د ویل (هلاکت) دے، او دے سورت کښې ئے لس حق څیزونه ذکر کړیدي، نو ځکه ئے لس کرته ویل هم ذکر کړیدے۔
نو ویل ئے تقسیم کړیدے په اندازه د تکذیب د خلقو۔ ځکه چه د هر مکذب دپاره هغه

ویل وي چه د بل دپاره هغه نهٔ وي، اول پدې آیت کښې ویل د هغه چا دپاره دے چه تکذیب د یوم الفصل کوي.

او ویل یا په جهنم کښې یو ه کنده ده چه په هغې کښې د جهنمیانو وینې زوے بهیږي، یا په معنیٰ د هلاکت دے.

ویل مبتداء ده او لِلْمُكَذِّبِيْنَ ئې خبر دے، او ویل اګرکه نکره ده، لیکن دا دعاءِ شر ده، او په مقام د دعاء کښې نکره هم مبتدا واقع کیدے شي.

او زمخشري وئیلي دي چه ویل په اصل کښې مصدر دے چه د خپل فعل قائمقام دے لیکن بیا د نصب نه رفع ته نقل شو دے دپاره چه په دوام او ثبات باندے دلالت وکړي. لیکن دا خبره غوره نهٔ ده.

| |
|---|
| اَلَمْ نُهْلِكِ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۶﴾ ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ |
| آیا نهٔ دي هلاك كړي مونږ مخكني. بیا وروسے كړيدي مونږ د هغوی پسے |
| الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۷﴾ كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ ﴿۱۸﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ |
| روستني. دغسے كار كوو مونږ د مجرمانو سره. هلاكت دے په دغه ورځ |
| لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۹﴾ اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ مِّنْ مَّآءٍ مَّهِيْنٍ ﴿۲۰﴾ |
| دپاره د تكذيب كونكو. آیا مونږ تاسو نهٔ يئ پيدا كړي د اوبو سپكو نه. |
| فَجَعَلْنٰهُ فِيْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ ﴿۲۱﴾ اِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ ﴿۲۲﴾ |
| نو كرځولي مونږ هغه په ځائے د قراري مضبوط كښې. تر اندازے معلومے پورے. |
| فَقَدَرْنَا فَنِعْمَ الْقٰدِرُوْنَ ﴿۲۳﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۴﴾ |
| نو اندازه كړيده مونږ نو ښه اندازه كونكي يو (مونږ). هلاكت دے په دغه ورځ دپاره د تكذيب كونكو. |

**تفسیر** : په راتلونکو آیتونو کښې الله تعالیٰ د هغه کافرو قومونو ذکر کړے چه هغوئ په تیره شوے زمانه کښې د خپلو ګناهونو په سبب هلاك شوي دي.

فرمائي : آیا مونږ هغه قومونه هلاك كړي نهٔ دي چه هغوئ په تیره شوے زمانه کښې

زمونږ رسولان دروغژن ګڼرلي وو، او زمونږ د آيتونو نه ئې انكار كړے وو، لكه قومِ نوح، قومِ عاد او قومِ ثمود او قوم لوط او اصحاب مدين او قوم تبع او قوم د فرعون چه دا په قرآن كريم كښې ذكر دي. د دوئ نه پس د راتلونكو قومونو هم همدا طريقه را روانه ده، مونږ دوئ هم پرے نبنودل. او مونږ مجرمانو سره هميشه داسے سلوك كوو.

ثُمَّ نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِيْنَ: دا مرفوع دے او مستقله جمله ده، په اصل كښې:

(ثُمَّ نَحْنُ نُتْبِعُهُمْ فِي الْهَلَاكِ) دے (ابو البقاءٓ)

نو معنىٰ دا ده چه بيا به په هلاكت كښې وروسته كړو روستني خلق هم.

مفسرين ليكي چه په دے آيتونو كښې د قريشو مجرمانو دپاره لويه دهمكي ده، چه كه دوئ خپل حالت بدل نهٔ كړو نو څهٔ تعجب دے چه دوئ به هم هلاك كړے شي، دے وجے نه الله تعالىٰ وفرمايل چه هلاكت او بربادي ده هغه مجرمانو دپاره چه هغوئ د الله تعالىٰ د رسول او د هغهٔ د آيتونو نه انكار كوي.

كَذٰلِكَ نَفْعَلُ: دا تاكيد دے د (نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِيْنَ) او پدے كښې بيان دے د الْآخِرِيْنَ چه د دوئ نه مراد مجرمان دي. يا نُتْبِعُهُمُ الْآخِرِيْنَ مكے والا مراد دي،

او د كَذٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِيْنَ نه تر قيامته پورے د ټولو زمانو مجرمان مراد دي.

يا په دنيا كښې به پرے عذاب راشي يا به په آخرت كښې.

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ: دلته د مكذبين نه مراد هغه خلق دي چه د مخكنو مجرمانو قصے او واقعات د هلاكت نهٔ مني، او آينده كښې عبرت نهٔ اخلي.

اَلَمْ نَخْلُقْكُّمْ: په دے آيتونو كښې الله تعالىٰ انسان ته د خپل حقيقت يادوونه كړے ده، چه ددے تقاضا دا وه چه دهٔ د كبر او غرور په ځائے تواضع اختيار كړے وے، او د الله تعالىٰ د عظيم قدرت او د هغهٔ د ژور علم اقرار ئے كړے وے.

دارنګه الله تعالىٰ ددهٔ په زړه او دماغو كښې د مرګ نه پس د دوباره ژوندي كيدو عقيده كوزول غوښتلي دي، چه كوم قادرِ مطلق چه تاسو اول ځل د يوے سپكے قطرے نه پيدا كړي يئ، هغه يقيناً ستاسو په دوباره پيدا كولو باندے قادر دے.

فرمائي: اے خلقو! آيا مونږ تاسو د سپكو اوبو د يوے قطرے نه پيدا كړي نهٔ يئ، مونږ دا قطره د مور رحِم ته اُورسوله چرته چه هغه لاړه او هلته هغې قرارے اُونيوهٔ، او هلته يوے معلومے مودے پورے ايساره شوه، په دے كښې ترقي كيدله تردے پورے چه هغه يو

مکمل ساه والا ماشوم جوړ شو، او د بهر راوتو قابل شو۔

الله وفرمایل: دا الله وو چه هغهٔ د منی دا قطره د رحم په تیارو کښې د مختلفو پړاوونو نه تیره کړو، او په دے کښې ئے روح اوپو کلو او بهر ئے را اوخکلو، دا په حقه سره الله تعالیٰ ډیر زیات زوور قدرت والا دے، او هم هغه د تمامو صفتونو یواځے لائق دے،

دے وجے نه هلاکت او بربادی ده هغه مجرمانو لره چه هغوئ د الله تعالیٰ د قادرِ مطلق او علام الغیوب کیدو نه انکار کوی، یا په دے باره کښې شك شبه کوی چه هغه د مړو په دوباره ژوندی کولو باندے قادر دے۔

مَّهِيْنٍ: ددے نه مراد نطفه ده چه کمزورے او سپکے اُوبهٔ دی۔

فِىْ قَرَارٍ مَّكِيْنٍ: ددے نه مراد رحم دے، یعنی د مور بچه دانئ چه په هغے کښې دغه منی د خرابونکو آفاتو نه ساتی لکه هواء وغیره۔

اِلٰى قَدَرٍ مَّعْلُوْمٍ: یعنی یو ے اندازے پورے چه هغه الله تعالیٰ ته معلومه ده چه هغه موده د حمل ده نهه میاشتے یا کم او زیات۔

مَّعْلُوْمٍ: یعنی د زنانو په عرف او عادت کښې معلوم دے۔

❁ یا د هغے پوره تفصیلات او د ورځ او وخت د پیدائش صرف الله تعالیٰ ته معلوم ده۔

فَقَدَرْنَا: دا د قدرة نه دے، یعنی مونږ قادر یو په دغه منی باندے چه انسان ترے پیدا کړو، نو دغه شان مونږ په دوباره ژوندی کولو باندے هم ښه قدرت لرونکی یو۔

یا قدرنا د قدر نه دے اندازے ته وائی۔ او قَدَرْنَا مخفف او مشدد (قَدَّرْنَا) دواړه په یوه معنیٰ دی۔ یعنی مونږ اندازه کړے دے نو ښه اندازه کونکی یو۔

یعنی مونږ وخت د ولادت او د بچی احوال او د هغهٔ سعادت او شقاوت او د هغهٔ قد وقامت اندازه کړو او دنیا ته مو رابهر کړو۔

لِّلْمُكَذِّبِيْنَ: دلته د مکذبین نه هغه خلق مراد دی چه د انسان پیدائش د الله تعالیٰ په قدرت سره نهٔ منی، ❁ یا د هغهٔ تقدیر نهٔ منی۔

❁ یا داسے قدرت د الله تعالیٰ نه سویٰ بل چا لره ثابتوی۔

| أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ كِفَاتًا ﴿٢٥﴾ أَحْيَآءً وَّأَمْوَاتًا ﴿٢٦﴾ وَجَعَلْنَا |
|---|
| آیا نهٔ ده کرځولے مونږ زمکه راجمع کونکے۔ ژوندو لره او مړو لره۔ او کرځولی دی |
| فِيهَا رَوَاسِيَ شَامِخَاتٍ وَّأَسْقَيْنَاكُم مَّآءً |
| مونږ پدے کښې غرونه اُوچت اُوچت او څکولی دی مونږ په تاسو باندے اُوبه |
| فُرَاتًا ﴿٢٧﴾ وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ ﴿٢٨﴾ |
| خوږے۔ هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو۔ |

**تفسیر**: دا نور دلائل دی د الله تعالیٰ د معرفت، او د دوباره ژوند دپاره۔

او په دے آیتونو کښې الله تعالیٰ انسان ته خپل ځینے نعمتونه وربښودلی چه ددے تقاضا داوه چه دے د خپل رب شکر گذار او ذکر کونکے بنده جوړ شوے وے۔

الله وفرمایل: اے خلقو! آیا مونږ زمکه ستاسو د ژوندو او مړو دپاره د اوسیدو ځائے نهٔ ده جوړه کړے، ستاسو ژوندی په زمکه باندے جوړ شوو کورونو کښې پناه اخلی، او ستاسو مړو له زمکه په خپل ځان کښې دننه ځائے ورکوی، هغه خپل ځان سره لگوی، لکه څنگه چه محلونه او بنگلے د الله نعمت دے، دغه شان قبرونه هم د هغهٔ نعمت دے، چه په هغے کښې مړی ښخیږی، دے دپاره چه ځناور او نور څیزونه د دوئ سپکاوے ونهٔ کړی۔

**كِفَاتًا**: کَفت په لغت کښې یو ځای کول او جمع کولو ته وئیلے شی۔

او کفات په معنیٰ د هغه ځای چه په هغے کښې یو شے یو ځای کیږی او لگیږی۔

(مختار الصحاح والقاموس)

او کفات اسم مکان دے، یا اسم آله ده۔ او بعض وائی چه دا جمع د کافِت ده۔

او اخفش" وائی: جمع د كَافِتَةٌ ده۔ او د ارض نه مراد جمع ده، نو صفت ئے جمعه راغلے دے۔

**أَحْيَاءً وَّأَمْوَاتًا**: ژوندی ئے پدے طریقه راجمع کړیدی چه په زمکه باندے آبادیانے کوی، کروندے کوی، گرځی راگرځی، او نورے فائدے ترینه اخلی، او مړی راجمع کوی چه هغوی پکښې ښخیږی۔ او دا دلیل دے چه د مړو دفن کول ضروری دی۔

حافظ ابن عبد البرؒ د امام مالکؒ د شاګرد ابن القاسمؒ دا وینا نقل کړے چه د کفن غلا کونکی لاس پریکول جائز دی، هغهٔ ددے آیت نه استدلال کړے، او وئیلی ئے دی چه د قبر حیثیت مړی دپاره داسے دے څنګه چه ژوندی دپاره کور دے.

وَجَعَلْنَا فِیْهَا رَوَاسِیَ : او آیا مونږ په زمکه باندے د لویو غرونو میخونه نهٔ دی وهلی، دے دپاره چه په دے کښې حرکت پیدا نشی، او تاسو په دے باندے په آسانئ سره ژوند تیر کړئ. او آیا مونږه تاسو له خوږے صفا اُوبهٔ نهٔ دی درکړی.

ددے تمامو سوالونو جواب یو دے چه هاؤ، واقعی چه دا ټول نعمتونه الله درکړی دی.

نو بیا اے کافرو! تاسو ولے د الله تعالیٰ نعمتونه دروغژن ګڼرئ، ولے د هغهٔ رسول او د هغهٔ کتاب دروغژن ګڼرئ، یاد لرئ چه د قیامت په ورځ هلاکت او بربادی ده داسے دروغژن ګڼرونکو دپاره.

رَوَاسِیَ: جمع د رَاسِیَةٌ ده، کلکو غرونو ته وائی چه زمکه مضبوطوی.

شَامِخٰتٍ: اَیْ طِوَالٍ. یعنی اُوږده غرونه چه د هغے سرونو ته ختل مشکل وی. شامخ هر دنګ اُوږد څیز ته وئیلے شی.

فُرَاتًا: یعنی خوږے. (ابن عباس رضی الله عنه) او فُرات هغه خوږے اُوبهٔ دی چه خلق ئے څکی او فصلونه ترے خړوبه کوی.

**فائده** : پدے درے دلیلونو کښې د انسان د پیدائش او د زمے او د غرونو د پیدائش ترمینځ مناسبت دا دے چه د نطفے نه د انسان پیدائش دے، او د زمکے نه د بوټو پیدائش دے، او د غرونو نه د ونو او بوټو، معدنیاتو او اُوبو پیدائش دے،

نو هغه الله تعالیٰ چه په دے درے قسمونو پیدائش باندے قدرت لری، نو ضروری ده چه هغه په بعث بعد الموت باندے قدرت لری، او داسے وصف په آسمان کښې ښکاره نشته ددے وجه نه ئے دلته آسمانی دلیل نهٔ دے ذکر کړے. (احسن الکلام)

لِلْمُكَذِّبِيْنَ: دلته د مکذبین نه هغه خلق مراد دی چه د زمکے د پیدائش او ددے د فائدو نه او د غرونو او د اُوبو د پیدائش نه انکار کوی چه دا الله تعالیٰ نهٔ دی پیدا کړی ❁ یا د الله تعالیٰ سره پدے کښې شریکان جوړوی.

| |
|---|
| اِنْطَلِقُوْۤا اِلٰی مَا كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۹﴾ اِنْطَلِقُوْۤا اِلٰی ظِلٍّ ذِیْ ثَلٰثِ |
| لاړشئ هغه څه ته چه تاسو به په هغې تکذیب کولو. لاړ شئ سوری ته چه درے |
| شُعَبٍ ﴿۳۰﴾ لَّا ظَلِیْلٍ وَّ لَا یُغْنِیْ مِنَ اللَّهَبِ ﴿۳۱﴾ اِنَّهَا تَرْمِیْ بِشَرَرٍ |
| څانګو والا دے. نهٔ یخ دے او نهٔ فائده ورکوی د لمبو نه. یقیناً دا (اُور) اُولی سپرغے |
| كَالْقَصْرِ ﴿۳۲﴾ كَاَنَّهٗ جِمٰلَتٌ صُفْرٌ ﴿۳۳﴾ وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ |
| پشان د بنګلے. ګویا کښې هغه اُوښان دی بے مهاره. هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د |
| لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۳۴﴾ هٰذَا یَوْمُ لَا یَنْطِقُوْنَ ﴿۳۵﴾ وَلَا یُؤْذَنُ |
| تکذیب کونکو. دا هغه ورځ ده چه دوی به خبرے نشی کولے. او اجازه به نهٔ ورکړے |
| لَهُمْ فَیَعْتَذِرُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۳۷﴾ |
| کیږی دوی ته پس چه عذر پیش کړی. هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو. |
| هٰذَا یَوْمُ الْفَصْلِ جَمَعْنٰكُمْ وَالْاَوَّلِیْنَ ﴿۳۸﴾ فَاِنْ كَانَ لَكُمْ |
| دا ورځ د فیصلے ده، راجمع کړل مونږ تاسو او مخکنی. نو که چرته وی تاسو لره |
| كَیْدٌ فَكِیْدُوْنِ ﴿۳۹﴾ وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ ﴿۴۰﴾ |
| څه چل نو چل جوړ کړئ ما ته. هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو. |

**تفسیر** :اِنْطَلِقُوْا: اَیْ یُقَالُ لَهُمْ. (یعنی دوی ته به وئیلے شی) یعنی کومو خلقو چه په دنیوی ژوند کښې آخرت او د اُور عذاب دروغژن ګنړلو، د قیامت په ورځ به دوی ته په جهنم باندے مقرر ملائك د رټنے په طریقه ووائی چه کوم جهنم چه تاسو ګپ ګنړلو په هغے کښې داخل شئ، تاسو د جهنم د لوګی هغه سوری طرفته ور وړاندے شئ، چه هغه پورته تلے دے، او پورته تلو سره د خپل سخت سوزولو د وجے نه په درے ویرونکو شغلو کښې ویشلے شوے دے،

دا سورے به د کومے ونے یا دیوال د سوری غونتے نهٔ وی چه هغه انسان د ګرمئ د سختئ نه بچ کوی، دے وجے نه دا به جهنمی لره د اُور د بهراس نه نهٔ بچ کوی، هغه اُور

به داسې وي چه د هغې نه به د محلونو او بنګلو پشان لوئې لوئې بڅرکي او سپرغۍ را اوځي، چه هغه به د خپل توروالي او زیړوالي له وجې زیړ رنګ ته مائل تورو اوښانو غونته وي، یعني دا لمبې به انتهائي ډیرې هیبتناکې وي.

د سورة الزمر په (١٦) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلي دي: ﴿ لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ﴾ (جهنمیانو دپاره به د دوئ دپاسه د اور شغلې د چونترې پشان وي، او د دوئ د لاندې نه به هم دغسې د اور شغلې د چونترې پشان وي).

او په سورة اعراف (٤١) آیت کښې فرمائي: ﴿ لَهُم مِّن جَهَنَّمَ مِهَادٌ وَمِن فَوْقِهِمْ غَوَاشٍ ﴾ (جهنمیانو دپاره به د جهنم د اُور بستره وي او د دوئ دپاسه به ددې اغوستل وي).

دې نه پس الله تعالیٰ وفرمایل چه هلاکت او بربادي ده هغه چا لره چه هغوئ په دنیا کښې د آخرتِ ورځ، جنت، جهنم، او د الله تعالیٰ رسول او د هغهٔ قرآن دروغژن ګنړلو.

اِلٰى مَا كُنتُم بِهِ تُكَذِّبُونَ: مَا موصوله ده، او ددې نه مراد د جهنم د اُور عذاب دې.

❁ یا مَا مصدریه ده، او مضاف پټ دې، اَیْ اِلٰى جَزَاءِ تَكْذِیْبِكُمْ ـ یعنی د خپل تکذیب سزا ته لاړ شئ.

اِلَى ظِلٍّ ذِیْ ثَلَاثِ شُعَبٍ: د ظل (سوري) نه مراد د جهنم د لوګي / لوخړې سورې دې چه هغې ته په سورة الواقعه (٤٣) کښې ﴿ فِیْ سَمُوْمٍ وَحَمِیْمٍ وَظِلٍّ مِّن یَحْمُوْمٍ ﴾ وئیلې شوېدې. او دا لوګې به درې څانګو والا وي څکه چه کله یو لوګې په زور سره راوځي نو هغه درې حصو ته تقسیم شي، اشاره ده چه دا به ډیر سخت اُور وي چه لوګي به ئې په ډیر زور او سختۍ سره راوځي.

بعض وائي: د ظل نه مراد د اُور دیوالونه دي چه دا به د جهنم د اُور نه راجدا شوي وي، او د دوئ نه به ئې ګیره اچولې وي، بیا به درې حصو ته تقسیم شي، نو په دوي باندې به ګرم سورې وکړي، تردې چه د دوي حساب کتاب ختم شي او بیا اُور ته روان شي.

لَا ظَلِیْلٍ: د ظل نه معلومه شوه چه سورې خو فائده ورکوي، نو دلته دا وَهَم ختموي چه دا سورې به د نمر نه سورې او آرام ورکونکې نهٔ وي. او نهٔ به د نمر نه فائده او آرام ورکوي. یعني یخ سورې به نهٔ وي.

وَلَا یُغْنِیْ مِنَ اللَّهَبِ: اغناء دفع کولو ته وائي، یعني نهٔ به دفع کوي د دوي نه لمبې د اُور. یا د فائدې ورکولو په معنیٰ دې.

پدے کښې اشاره ده چه دا ظل د مؤمنانو د ظل نه خلاف دے چه هغه ظل ظلیل دے۔
إِنَّهَا تَرْمِیْ بِشَرَرٍ : جمع د شِرَّةٌ ده، دا د اُور هغه تکړے دی چه هر طرف ته آلوزی او هغے ته بڅری / بڅرکی او سپرغئ وائی۔
لیکن دا به د دنیا د اُور د بڅرکو په شان نری نهٔ وی بلکه :
كَالْقَصْرِ : لکه د لوی بنګلے / یا لرګی پریکړے شوی-/ یا د غټو ونو بیخونه یا سرونه۔ او دا تشبیه په غټ والی کښې ده۔
كَأَنَّهُ جِمَالَتٌ صُفْرٌ : جِمَالَةٌ په وزن د فِعَالَةٌ جمع د جَمَل ده لکه حِجَارَةٌ جمع د حَجَرٌ ده۔ اُوښانو او غټے رسئ د کشتئ ته وئیلے کیږی۔ او پدے کښې بل قراء ت جِمَالاتٌ دے۔ هغه جمع د جِمَالٌ ده۔ همدغه معنیٰ ئے ده۔
او په تسهیل کښې ئے لیکلی دی چه د جمالات معنیٰ : (قِطَعُ النُّحَاسِ الْكِبَار) ده، یعنی د تانبے غټے تکړے)۔
صُفْرٌ: زیړ / یا بے مهاره۔ (خالي د مهار نه) صفر جمع د اَصْفَر ده، خالي د مهار نه۔
واحدیؒ او فراءؒ وئیلی دی چه صفر د عربو په ژبه کښې تورو اُوښانو ته وائی۔ ځکه چه تور اُوښان زیړ والی ته مائل وی۔ او پدے باندے ئے د عربو استعمالات ذکر کړیدی۔
**سوال** دا دے چه بنګله خو د اُوښ نه غټه ده، نو بیرته ئے د سپرغئ تشبیه د اُوښ سره څنګه ورکړه؟۔
**جواب** دا دے چه دا تشبیه ده په شر او په لزوم کښې ده۔
سپرغئ چه په سړی ولګی نو آلوزی او د اُوښانو طریقه دا ده چه یو سړی ته په قهر شی او په سړی وخیژی نو هغه کښې کینه او حسد زیات دے نو انسان بیا نهٔ پریدی، په خپو کښې ئے داسے پائیمال کوی چه بیخ ورله اُویاسی۔ نو دلته اشاره ده چه دا سپرغئ به د بنګلے په شان غټه وی، لیکن د اُوښ په شان به په انسان باندے غوبل کوی، او نهٔ به ترے اخوا کیږی ترڅو پورے ئے چه ورله بیخ نهٔ وی ویستلے۔
❁ یا د اُوښانو سره تشبیه پدے کښې ده چه اُوښان چه کله بے مهاره شی نو ګډوډ خوارهٔ وارهٔ شی نو دغه شان به دا بڅرکی هم هر طرفته خوارهٔ وارهٔ وی۔
❁ یا دا تشبیه په رنګ کښې ده، یعنی کله چه دا بڅرکی په انسان راپریوزی نو دا به داسے ښکاره کیږی لکه تور اُوښان۔ ځکه چه پدے بڅرکو کښې به د اُور تور رنګ راغلے

وی۔
او د رسو سره تشبیه په اُوږدوالی کښې ده۔ چه دا بخرکی به داسې اُوږده وی لکه د رسۍ په شان۔
هٰذَا يَوْمُ لَا يَنطِقُونَ: پدې کښې بیا د آخرت تخویف دې، او مختلف قسمه هیبتونه ئې ذکر کړیدی۔ یعنې څوك چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول دروغژن ګڼړی هغوی دپاره به دا ورځ دومره سخته وی چه د ډیرې ویرې نه به د دوئ ژبې ګونګې شی، یوه خبره به هم د دوئ د خُلو نه نهٔ راوځی۔
مفسرین لیکی چه د قیامت په ورځ به میدانِ حشر والا د ګڼړو حالاتو نه تیریږی، په څینو حالاتو کښې به دوئ خبرې کوی بلکه خپلو کښې به یو ... سره جګړې کوی، لکه د سورۃ الزمر په (۳۱) آیت کښې راغلی دی:
﴿ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ﴾
(بیا تاسو به د قیامت په ورځ د خپل رب خواته یو بل سره جګړې کوئ)۔
او اَتباع او متبوعین به د یو بل سره جګړې کوی، او په بعضِ حالاتو کښې به هر نفس د خپل ځان د طرفنه جګړه او بحث کوی۔ ﴿يَوْمَ تَأْتِي كُلُّ نَفْسٍ تُجَادِلُ عَن نَّفْسِهَا﴾
او کله به د یو بل نه تپوسونه کوی، او په بعضِ حالاتو کښې به د ډیرې ویرې نه د دوئ د ژبو نه یوه کلمه هم نهٔ راوځی، لکه چه دلته راغلی دی۔
او په څینې حالاتو کښې به د الله تعالیٰ له اړخه د دوئ په خُلو باندې مهر ولګولې شی، لکه د سورتِ یسٓ په (٦٥) آیت کښې راغلی دی:
﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ﴾
(نن به مونږ د دوئ په خُلو باندې مهر لګوو)۔
اودې دروغژن ګڼړونکو ته به په دې ورځ د عذر کولو اجازت ورنهٔ کړې شی، دې دپاره چه دوئ خپل عذر پیش کړی۔
د سورتِ نحل په (٨٤) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی:
﴿ثُمَّ لَا يُؤْذَنُ لِلَّذِينَ كَفَرُوا وَلَا هُمْ يُسْتَعْتَبُونَ﴾
(بیابه کافرانو ته (د عذر پیش کولو) اجازت ورنهٔ کړې شی، اونهٔ به د هغوئ نه د توبه کولو مطالبه کیږی)۔

فَيَعْتَذِرُونَ: دا عطف دے په (لَا يُؤْذَنُ) باندے، نو دلته نفی د دوه څيزونو ده، يو د اجازت ملاويدو، او بل د عذر پيش کولو۔

هَذَا يَوْمُ الْفَصْلِ: دا بـل قسم تخويف دے، مخکښ ئے وويل چه په عذرونو سره نشی بـچ کيدے، او نۀ به ورته اجازه د عذر ورکړے شی، نو دلته فرمائی چه په حيلو او کيدونو سره هم نشی بچ کيدے، او دلته هم يُقَالُ (ويه وئيلے شی) پټ دے۔

الله به فرمائی : هـمدا د فيصلے هغه ورځ ده چه د هغے وعده تاسو سره کيدلے شوه، نن مـونږ د مـحشر په ميدان کښ تاسو او ستاسو غونته په تيره شوے زمانه کښ د آخرت ورځ دروغـژن کـنـړونـکی راجـمـع کـړی دی۔ کـه چرے خپل خلاصون دپاره څۀ چل ول جوړولے شئ نو زما د عذاب نه د ځانونو د بچ کولو دپاره ئے وکړئ۔

مـفسـريـن ليـکـی چه د خبرو ددے انداز نه مقصد جهنميانو له روحانی عذاب ورکول دی، چه دا د بدنی عذاب نه سخت وی، ګنے معلومه ده چه په دے ورځ به جهنميان بے يار او مـدد ګـار وی، د دوئ په زړۀ او دماغو به د افسوس او نا اميدئ يوه درنه وريځه را خوره شوے وی، او د خپل نجات نه به په يقينی توګه نا اميده شوے وی۔

وَالْأَوَّلِينَ: **سوال :** وَالآخَرِينَ ئے ولے ونۀ وئيل ؟

**جواب :** دلته خطاب آخری امت ته دے او اولين نه مراد مخکنی امتونه دی، يعنی اے مـوجـوده امتـه ! مـونږ تـاسو لره هم راجمع کړئ او پخوانی امتونه هم۔ او ددے امت نه روستو بل امت نشته نو ځکه ئے آخرين ورسره ونۀ وئيل۔

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِينَ: پـه دے ورځ هلاکت اوبربادی ده هغه کافرانو لره چه هغوئ د خلقو راجمعه کول او د هغوی حساب کتاب نۀ منی۔

| |
|---|
| إِنَّ الْمُتَّقِيْنَ فِيْ ظِلَالٍ وَّعُيُوْنٍ ﴿٤١﴾ وَفَوَاكِهَ مِمَّا |
| یقیناً متقیان به په سورو کښې او په چینو کښې وی۔ او میوے د هغے نه |
| يَشْتَهُوْنَ ﴿٤٢﴾ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِيْئًا بِمَا |
| چه د دوی ورته شوق کیږی۔ خورئ او څکئ په خوشحالئ سره په سبب د هغے عملونو |
| كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ﴿٤٣﴾ إِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٤٤﴾ وَيْلٌ |
| چه تاسو به کول۔ یقیناً مونږ دغسے بدله ورکوو ښائسته عمل کونکو ته۔ هلاکت |
| يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٤٥﴾ كُلُوْا وَتَمَتَّعُوْا قَلِيْلًا إِنَّكُمْ |
| دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو۔ خورئ او مزے واخلئ لږه زمانه یقیناً تاسو |
| مُّجْرِمُوْنَ ﴿٤٦﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٤٧﴾ وَإِذَا قِيْلَ |
| مجرمان یئ۔ هلاکت دے په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو۔ او کله چه وویلے شی |
| لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا يَرْكَعُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ |
| دوی ته رکوع کوئ (نو) دوی رکوع نهٔ کوی۔ هلاکت دے په دغه ورځ |
| لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿٤٩﴾ فَبِأَيِّ حَدِيْثٍ بَعْدَهُ يُؤْمِنُوْنَ ﴿٥٠﴾ |
| دپاره د تکذیب کونکو۔ نو په کومه خبره به روستو ددے (قرآن) نه دوی ایمان راوړی۔ |

**تفسیر** : اُوس د کافرانو د احوالو او د هغوی د انجام نه روستو د الله تعالیٰ نه د یریدونکو خلقو حال او بدله بیانوی۔

نو مخکښې ترهیب ذکر شو اُوس ترغیب ورکوی چه د مخکښنو عذابونو نه د بچاؤ لاره اختیار کړئ، او د راتلونکی نعمتونو د حاصلولو کوشش وکړئ۔

الله تعالیٰ وفرمایل : کوم خلق چه د الله تعالیٰ د گرفت نه یریږی، فرائض اداء کوی، او گناهونو نه ډډه کوی، دوئ به د گنړو وُنو په سورو کښې وی، او ددے وُنو د مینځ نه به نهرونه روان وی، او دوئ چه د کومو میوو شوق لری خپلے مخے ته به ئے مومی، او د دوئ د ډیر عزت کولو دپاره به الله تعالیٰ دوئ ته اووائی چه تاسو په دنیا کښې د خپلو کړو

نیکو عملونو په بدله کښې خورئ څکئ، او د راحت او آرام ژوند تیروئ. مونږ د خپل رب نه یریدونکو او ایمان او نیك عمل والا ژوند تیرونکو له دغسې بنه بدله ورکوو.

فِیْ ظِلٰلٍ: دا سورې د ونو او د بنګلو دې، او دا په مقابل د ظل د جهنم کښې دې.

وَعُیُوْنٍ: دا ئې جمع راوړه ځکه چه ددې چینو به ډیر انواع او اقسام وې لکه د جنت د نهرونو په شان.

وَفَوَاکِهَ مِمَّا یَشْتَهُوْنَ: یعنی داسې میوې به وې چه کله ورته د دوی شوق وشی نو هغه به خپلې مخې ته حاضرې مومی. نو دا میوې د موسمو سره تعلق نهٔ لری، بلکه هر قسمه میوې به هر وخت حاضرې وی.

کُلُوْا: یعنی دوئ ته به د ملائکو یا د الله تعالیٰ د طرفنه ونیلې کیږی چه خورئ او څکئ.

هَنِیْئًا: (په خوشحالئ سره) هنیء هغه خوراك او څکاك دې چه مبارك او د فائدو نه ډك وی، هیڅ مرض او عیب نهٔ پیدا کوی. او دا صفت دې په ځای د مصدر قائم دې.

اَیْ کُلُوْا وَاشْرَبُوْا هَنِئْتُمْ هَنِیْئًا. (تفسیر ابن ابی زمنین والقرطبی)

(خورئ او څکئ مبارك دې وی تاسو لره په مبارکئ سره) (یا تاسو دې خوشحاله یئ په خوشحالئ سره)

او هنئ معنیٰ دا هم ده چه تاسو به نهٔ مړه کیږئ ځکه چه کوم شے همیشه نهٔ وی یا انسان د هغې سره همیشوالے نهٔ کوی نو هغه په مرئ کښې نهٔ تیریږی نو هغه هنئ نهٔ وی. (عکرمهٔ، قرطبیؒ)

بِمَا کُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ: پدې تکی کښې دعوت دې، چه دا هر څه د نیك عمل په بدله کښې ملاویږی.

اَلْمُحْسِنِیْنَ: دا خلق متقیان هم دی، او محسنین هم، پدې کښې اشاره ده چه د جنت دپاره عمل سبب دې خو په شرط د احسان سره، او احسان دې ته وائی چه په عمل کښې اخلاص او اتباع د سنت وی.

وَیْلٌ: یعنی دا نعمتونه خو به متقیانو ته ملاویږی لیکن په دې ورځ به هلاکت او بربادی وی هغه کافرانو لره چه هغوئ الله تعالیٰ، د هغهٔ رسول، د هغهٔ کتاب، او د آخرت ورځ او دا بنکلې نعمتونه دروغژن ګنړی.

كُلُوا وَتَمَتَّعُوا : د مکے مشرکانو ته د دھمکئ په توګه وئیلے کیږی چه اے مجرمانو! خورئ څکئ او یو څو ورځو دپاره بنهٔ عیش عشرت وکړئ، ډیر زر به تاسو خپل انجام ته اورسیږئ۔ نو همدغسے وشوه چه د قریشو زیاتره مشران په بدر کښ اووژلے شو۔ او د قیامت په ورځ به د هغوئ استوګنه جهنم وی۔

قَلِيْلًا: اَیْ زَمَانًا قَلِيْلًا ۔ لږه زمانه۔ څکه چه د دنیا ټول ژوند په نسبت د آخرت ډیر کم دے۔ یا صفت دے د تَمَتُّع۔ یعنی لږے فائدے۔ څکه چه د دنیا خوندونه او مزے هم همیشه او په هر حالت کښ نهٔ وی، دے سره هم ډیر مصیبتونه ترلے شویدی۔

وَإِذَا قِيْلَ لَهُمْ : پدے کښ د مکے کافرانو ته بله رټنه ده۔

یعنی د مکے دے مجرمانو ته به چه ووئیلے شو چه تاسو حق دین قبول کړئ، الله تعالیٰ دپاره مونځ کوئ، او هغهٔ دپاره خشوع او خضوع اختیار کړئ، نو د دوئ څټونه به کاږهٔ شول۔

❁ یا دا وینا به په آخرت کښ وی چه کله دوئ ته د سجدے حکم وکړے شی، نو دوئ به طاقت نهٔ لری څکه چه دوی الله تعالیٰ ته په دنیا کښ سجده نهٔ لګوله۔ (ابن عباس ﷺ) (نقله ابن جریرؒ) عموم غوره دے۔

ارْكَعُوْا : د رکوع نه مراد مونځ دے، ذکر د جزء او مراد ترے نه کل، (اَیْ صَلُّوْا لِلّٰهِ لَا يُصَلُّوْنَ) یعنی کله چه دوی ته وئیل شی چه مونځ وکړئ په اخلاص سره، نو دوی مونځ نهٔ کوی۔ (مجاهدؒ)

یا رکوع کښ معنیٰ د خشوع او خضوع وی، یعنی الله تعالیٰ ته او د هغهٔ توحید ته غاړه کیږدئ او تکبر مهٔ کوئ۔

او همدا د هغوی جرم وو چه د الله تعالیٰ توحید ته ئے غاړه نهٔ کیخوده، او د هغه دپاره ئے په اخلاص سره مونځ او عبادتونه نهٔ کول۔

نو پدے کښ هغه چا ته هم سخت وعید او زورنه ده چه کله هغهٔ ته د مانځه حکم وکړے شی نو هغه مونځ نکوی۔

د امام مالك رحمه الله رائے دا وه چه د مازیګر مانځه نه روستو نفل مونځ نهٔ کیږی، نو یوه ورځ مسجد ته د مازیګر نه روستو ننوتو نو کیناستو۔ یو ماشوم ورته ووئیل : مَالَكَ لَا تُصَلِّیْ؟ ۔ مونځ ولے نهٔ کوے؟ هغه پاځیدو دوه رکعاته ئے وکړل۔ چا ورته ووئیل

چه ستا خو دا رائے نهٔ وه، داسے ډیے ولے وکړل؟ نو هغه وفرمایل :
زهٔ ددیے آیت نه ویریدم چه ﴿ وَاِذَا قِیْلَ لَهُمُ ارْكَعُوْا لَا یَرْكَعُوْنَ ﴾ چه کله دوی ته وویل شی رکوع وکړئ نو دوی رکوع نهٔ کوی۔ سلفو کښې ډیر کمال وو، د الله په کتاب پو هیدل هم او یریدل هم۔
ددیے نه دا هم معلومه شوه چه چا د یوے نیکئ دعوت درکړو نو هغه ورله ومنه۔
او پدیے کښې د رکوع زیات اهتمام ته هم اشاره ده۔
عبد الله بن مسعود ﷺ یو تن ولیدو چه په مانځه کښې ئے سمه رکوع نهٔ کوله، نو وے خندل، چا ترے تپوس وکړو، نو وے فرمایل چه ما دے سړی پورے وخندل چه هسے ځان کړوی او الله تعالیٰ ددهٔ مونځ نهٔ قبلوی۔ (ابن جریر الطبریؒ)
حذیفه ﷺ یو تن ولیدو چه مونځ ئے کولو لیکن رکوع ئے سمه نهٔ کوله نو وے فرمایل : که دا سړے مړ شو نو دے به په هیڅ شی د طریقے د اسلام باندے مړ نشی۔
(الدر المنثور وابن جریر وعبد بن حُمید)
او قتادهؒ نه نقل دی : (عَلَیْكُمْ بِاِحْسَانِ الرُّكُوْعِ فَاِنَّ الصَّلَاةِ مِنَ اللّٰهِ بِمَكَانٍ) تاسو باندے د رکوع ښائسته کول لازم دی ځکه چه مونځ د الله په نیز لویه مرتبه لری۔
او د رکوع تخصیص ئے وکړو ځکه چه پدیے کښې معنیٰ د خضوع او طاعت هم ده،
او دارنګه دا د مسلمانانو د مانځه پورے خاص ده، ځکه چه اهل کتابو او مشرکانو په خپلو مونځونو کښې رکوع پریخودلے وه۔
او دا آیت دلیل دے چه کفار د شریعت په احکامو (فروعو) باندے مخاطب او مکلف دی۔
وَیْلٌ یَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِیْنَ: مکذبینو دپاره ځکه هلاکت دے چه په قیامت کښې په اعمالو حساب کیږی، او د مکذبینو سره هیڅ رکوع (عبادات) او اعمال نشته۔ معلومه شوه چه رکوع او مونځ نهٔ کول د مکذبینو علامه ده۔
فَبِاَیِّ حَدِیْثٍ بَعْدَهٗ یُؤْمِنُوْنَ: یعنی د قریشو کافران چه کله هغه قرآن دروغژن ګنړی، چه د هغے د الله تعالیٰ د کتاب کیدو دلائل د روښانه ورځے پشان واضح دی، نو بیا به دوئ په کوم کتاب باندے ایمان راوړی۔ یعنی که دوئ په دیے کتاب ایمان نهٔ راوړی نو د کفر او ګمراهئ په تیارو کښې به سرګردانه ګرځی، تردے پورے چه مرګ ورله راشی، او همیشه

دپاره جهنم ته اورسی۔ او د یو انسان دپاره ددے نه لویه بله کومه بد نصیبی کیدے شی چه دے په کفر باندے مړ شی، او مرګ نه پس ددهٔ ځای جهنم وی۔
حدیث: هغه خبرے چه نقل ئے کیدے شی او دا صفت په قرآن کښې هم شته ځکه ورته حدیث وئیلے شی۔ نو قرآن د الله تعالیٰ نه رانقل شوے خبرے دی۔
بَعْدَهُ: په دے کښې اشاره ده چه روستو د قرآن کریم نه وحی منقطع ده، د قرآن کریم نه روستو بل کوم کتاب د الله تعالیٰ کلام نشی کیدے۔
په یو ضعیف روایت کښې دلته دا راغلی دی چه پدے مقام کښې به (آمَنَّا بِاللّٰهِ) وئیلے شی۔ (ابوداود (۸۸۷) والترمذی (۳۳٤۷) : واسناده ضعیف فیه راو مجهول عند الاکثر وحسنه الحافظ ابن حجر فی نتائج الافکار (۲/ ٤۰) ومقدمة فتح الباری باکثر طرقه)
او احادیثو کښې د قرآن کریم آیتونو ته جوابونه ورکول نقل دی، (فَكَانُوْا اَحْسَنَ مَرْدُوْدًا مِنْكُمْ) لکه د سورت رحمن په تفسیر کښې هغه روایت ذکر شو۔
ددے وجه نه په نفل مونځونو او بهر د مانځه نه دا جواب ورکول پکار دی۔
وبالله التوفیق.

## امتیازات د سورة المرسلات

۱- اثبات د آخرت په ناشنا انداز سره وشو۔ او د هغے دپاره ئے دلائل ذکر کړل۔
۲- د اثبات د آخرت دپاره ډیر قسمونه وشو۔
۳- او ویل للمکذبین پکښې لس کرته ذکر شو۔
٤- او د جهنم یو بل قسم تذکره پکښې وشوه چه د هغے سپرغئ د قصر سره او د جمالت صفر سره د هغے تشبیه ورکړے شوه۔
ختم شو تفسیر د سورتِ مرسلات په فضل د رحمن او رحیم په ورځ د خالی۔
۱٤ رمضان۔ وفرغت من التصحیح لیلة عید الاضحی۔ ساعت (۳۰ : ۱۰)

❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

| آیاتها (٤٠) | (٧٨) سُوۡرَةُ النَّبَاِ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (٢) |
|---|---|---|

سورة النبأ مکی دے، په دے کښې څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة النبأ

**نوم** : (١) دے ته سورة النبأ (٢) او سورة عَمَّ (٣) او سورة الْمُعْصِرَات .(٤) او سورة التَّسَاؤُل هم وئیلے کیږی۔

**د نازلیدو زمانه** : دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔ ابن مردویۃ او بیهقیؒ د ابن عباس ﷺ نه نقل کړی دی چه [عَمَّ يَتَسَاءَلُوۡنَ] په مکه کښې نازل شوے۔ ابن مردویۃ د ابن زبیر رضی الله عنهما نه هم دا روایت نقل کړے۔

### مناسبت

١- مخکښې سورت کښې ئے د یوم الفصل تذکره وکړه، نو دلته ادله او اجتماعی نعمتونه بیانوی، یعنی دنیا شریکه ده، او آخرت کښې بیلتون دے۔ په دنیا کښې بارانونه، وریځے او آسمانونه او زمکے او نمر او سپوږمۍ شریك دی۔ غریب مالدار او کافر او مؤمن ترے یو شان فائده اخلی۔ او په آخرت کښې به جدائی راځی ځکه چه د عملونو ترمینځ فرق دے۔

٢- هلته ئے ویل چه مکذبین هلاك دی، نو دلته یو نوع تشریح ذکر کوی ﴿اِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتۡ مِرۡصَادًا﴾ چه په جهنم سره به هلاك شی۔

٣- مخکښې سورت کښې د قیامت نوم په یوم الفصل سره ذکر شو، نو دلته د مکذبینو او متقیانو په مینځ کښې فصل او فرق ذکر کوی په لسو لسو وجو سره۔

دا سورتونه ټول د انسانانو په راویښولو او هغوی ته د آخرت په یره ورکولو روان دی۔

او په آخرت کښې دوه ډلے د متقیانو او د سرکشانو دی. چه دا په مختلفو تعبیراتو سره په راتلونکو سورتونو کښې ذکر کیږی.
غالباً به همدا خبره وی چه نیك عمل وکړئ، او د بد عمل نه ځان وساتئ ځکه چه ستاسو مخے ته دوه درانهٔ کورونه (جنت او جهنم) راروان دی. د الله بغاوت مهٔ کوئ، د هغهٔ سره شریکان مهٔ جوړوئ، او دا لنډ لنډ بیانات دی او ډیر فائده مند دی.

## د سورت مقصد

(۱) اَلْاِنْذَارُ بِالْعَذَابِ الْقَرِیْبِ ۔ یعنی په نزدے عذاب باندے یره ورکوی دا په دوه ځایونو کښې راغلے دے (کَلَّا سَیَعْلَمُوْنَ) او په آخر د سورت کښې (اِنَّآ اَنْذَرْنٰکُمْ عَذَابًا قَرِیْبًا)
بیا چونکه قرآن کریم کښې کمال وی نو ددے سره ئے دا خبره ملګرے کړیده چه اَلْبِشَارَةُ لِمَنْ یَّقْبَلُ الْاِنْذَارَ۔ یعنی زیرے ورکول هغه چاته چه انذار (یره) قبلوی.
یعنی څوك چه دنیا کښې یره قبلوی، نو هغه کښې به په دنیا کښې پرهیزګاری راشی، نو الله تعالیٰ به جنت ورکړی ﴿اِنَّ لِلْمُتَّقِیْنَ مَفَازًا﴾
ددے وجه نه د قیامت په باره کښې چه څوك تپوسونه کوی نو هغوی ته رټنه ورکوی، بیا دهمکی، او بیا فرمائی: چه دوی آخرت ولے نهٔ منی، د هغے د اثبات دلیلونه راوړی. تر (۱٦) آیت پورے. بیا د هغه ورځے هیبت بیانوی چه هغه ورځ الله تعالیٰ مقرر کړیده ضرور به راځی، او پدے طریقه به راځی.
بیا په هغے کښې د انسانانو تقسیم چه یو طاغین او بل متقین دی، د طاغینو ځای جهنم او د متقیانو ځای جنت.
په آخره کښې فرمائی چه ددے عذاب نه ویریږئ دا لرے نهٔ دے، بیا به کافران آرمان کوی نو تاسو ورته د اُوس نه تیاری وکړئ چه آرمانونه ونکړئ.
۲- بعض مشائخ وائی: پدے سورت کښې د بعث بعد الموت منکرینو ته رټنه ده، او د هغے د اثبات دپاره دلیلونه ذکر دی، او د منکرینو او د متقیانو احوال بیان شویدی دپاره د تخویف او د بشارت. (احسن الکلام).

| عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ ﴿١﴾ عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيْمِ ﴿٢﴾ الَّذِيْ هُمْ |
|---|
| د څه په باره کښې دوی تپوسونه کوی. په باره د خبر لوئی کښې. هغه چه دوی |
| فِيْهِ مُخْتَلِفُوْنَ ﴿٣﴾ كَلَّا |
| په هغې کښې اختلاف کونکی دی. هیچرے اختلاف نۀ دے پکار، |
| سَيَعْلَمُوْنَ ﴿٤﴾ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ﴿٥﴾ |
| زر دے چه دوی به پو هه شی. بیا هیچرے داسے نۀ ده پکار زر دے چه دوی به پو هه شی. |

**تفسير**: امام شوكانیؒ د واحدیؒ په حواله د مفسرینو وینا نقل کړے، چه کله نبی کریم ﷺ را اولیږلے شو، د کافرانو سره ئے د الله تعالیٰ د توحید او د مرګ نه پس د دوباره ژوند خبره اوکړه، او ددے حقائقو په حقله ئے د قرآنی آیتونو تلاوت وکړو،

نو هغوئ خپلو کښې خبرے شروع کړے چه محمد د قیامت د کومے ورځے خبره کوی، او دا څنګه کلام پیش کوی؟! نو الله تعالیٰ ﴿عَمَّ يَتَسَآءَلُوْنَ﴾ نازل کړو، او استفهامی طریقه د تعبیر ئے استعمال کړه، دے دپاره چه اول د مکے د مشرکانو ذهن د هغے خبرے اهمیت طرفته واړوی د کومے ذکر چه اُوس کیدونکے دے،

بیانئے ووئیل: ﴿عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيْمِ﴾ یعنی د کوم بعث بعد الموت او قیامت په باره کښې چه دوئ خپلو کښې خبرے کوی، دا خو به ډیره لویه ورځ وی، او ددے خبر ډیر لوئے دے.

(فتح البيان)

عَمَّ: دا په اصل کښې عَنْ مَا دے، نون په میم بدل شو ځکه چه دواړه قریب المخرج دی، او بیا ادغام وکړے شو او په آخر کښې الف د اختصار دپاره حذف شو. او دے دپاره چه فرق راشی په مینځ د مَا استفهامیه او خبریه کښې.

يَتَسَآءَلُوْنَ: تَسَاؤُل باب تفاعل دے، د یو بل نه تپوسونو کولو ته وئیلے شی، او کله د خلقو خپل مینځ کښې نفس خبرو اترو دپاره استعمالیږی اګرکه تپوس پکښې نۀ وی. (قاله الفرآء). او دلته د همدے دواړو معنو دپاره استعمال دے.

یعنی خپل مینځ کښې ئے د تعجب په طریقه وئیل چه محمد څه راوړیدی؟ او څه

خبرے کوی؟!۔ دارنگه د رسول الله ﷺ نـه به ئے تپوس کولو په طریقه د انکار او استهزاء سره چه قیامت به کله راځی۔

يَتَسَاءَلُونَ کښې ضمیر کافرانو سرکشانو ته راجع دے۔

عَنِ النَّبَإِ الْعَظِيمِ: ددے نه څه مراد دے ؟ :

(۱) مجاهدؒ وغیره د [نَبَأ عَظِيم] نـه مـراد قرآن کریم اخستے دے، او په دے باندے ئے دریم آیت ﴿ ٱلَّذِينَ هُمْ فِيهِ مُخْتَلِفُونَ ﴾ نه استدلال کړے، دوئ وائی چه د مکے مشرکانو د اسلام په شروع کښې د قرآن کریم په باره کښې اختلاف کړے وو، چا دیته جادو، چا شعر، چا کهانت، او چا دیته د مخکنو قومونو قیصے وئیلے وے۔ په دغه ورځو کښې خو د (بعث بعد الموت) په انکار باندے تمام کافران متفق وو۔

شوکانیؒ لیکی چه د [نبأ عظیم] نه مراد د قرآن کریم کیدو دلیل د سورتِ صٓ (٦٧/٦٨) آیتونه دی چه په دے کښې قرآن کریم ته [نبأ عظیم] وئیلے شوے۔

(۲) دویمه رائے دا ده چه د [نبأ عظیم] نه مراد (بعث بعد الموت) دے، دوئ وائی چه مړی دوباره ژوندی کیدل هغه خبره وه چه د هغے نه مشرکانو انکار کولو، چه دا د دوئ جاهلانه عقل نۀ قبلولو۔ دارنگه یهودو او نصاراؤ د بعث بعد الموت په طریقه کښې اختلاف کولو، او د عربو د کافرانو نه بعضِ خلقو ددے نه بیخی انکار کولو، او ځینو ته په دے کښې شك وو۔ او همدا قول ددے مقام سره زیات مناسب دے۔

(۳) دریمه رائے داده چه د مرگ نه پس د دوباره ژوندون په باره کښې تپوس کونکی مومنان او کافران ټول وو، مومنانو به د نبی کریم ﷺ نه د زیاتی دینی بصیرت او یقین حاصلولو دپاره سوال کولو، او کافرانو به د نبی کریم ﷺ او قرآن پورے د خندا کولو دپاره تپوس کولو چه د مرگ نه پس هغه ژوندون چه د هغے تاسو خبره کوئ آخر هغه به کله وی ؟! (فتح القدیر وفتح البیان)

مګر دا قول د روستو سیاق سره سمون نۀ خوری۔

مُخْتَلِفُونَ: د اختلاف ډیر شکلونه دی : (۱) یو دا چه څوك ئے تصدیق کوی، منی چه قیامت به راځی، او دا خلق مؤمنان دی، او بعض تکذیب کونکی دی، او دا کفار دی۔

(۲) دویم د اختلاف نه مراد آوړیدل دی، یعنی لوی خبر دے او دوی ترے اختلاف کوی او ددے نه اوړی بلکه دے سره خو اتفاق پکار وو او ددے دپاره تیارے پکار وو۔

(۳) دویم: څوك وائي چه د ارواحو بعث به كيږي، او څوك وائي: بعث به د لږ وخت دپاره وي.

كَلَّا سَيَعْلَمُونَ: دا ردع ده د تساؤل نه. يعني د قيامت په باره كښې تپوسونه او انكار نهٔ دے پكار.

او دويم كَلَّا سره ردع ده د اختلاف نه. او سَيَعْلَمُونَ ئے مكرر كړيدے، پدے كښې د عذابونو ډير والي ته اشاره ده.

❀ يا اول اشاره ده دنياوي عذاب ته، او دويم اشاره ده اُخروي عذاب ته.

دارنګه دا هم صحيح ده چه كَلَّا په معنىٰ د حَقًّا سره شي، يعني د قيامت راتلل يقيني او حقيقي دي.

او دا دليل دے چه دا اختلاف كونكي د قيامت په باره كښې كافران وو نو ځكه هغوي ته سخته دهمكي بيان شويده چه زر دے چه دوئ ته به خپل انجام معلوم شي.

كله چه ددوي روحونه د دوي د بدنونو نه د مرګ په وخت وځي، نو بيا به ئے يقين راشي چه قيامت او توحيد او رسالت د رسول الله ﷺ حق وو.

او كله چه د خپلو قبرونو نه ژوندي شي، او را پورته كړے شي او جهنم طرفته ليږلے كيږي نو دوئ ته به د خپل كفر او انكار نتيجه ډيره ښه معلومه شي.

او كومو مفسرينو (ضحاكؒ) چه اول سَيَعْلَمُونَ د كافرانو، او دويم د مؤمنانو سره لګولے دے چه دوئ ته به د خپل تصديق انجام معلوم شي. نو دا خبره ضعيفه ده ځكه چه دا الفاظ د دهمكئ دي، او الله تعالىٰ مؤمنانو ته دهمكي نهٔ وركوي.

| أَلَمْ نَجْعَلِ الْأَرْضَ مِهَادًا ﴿٦﴾ وَّالْجِبَالَ أَوْتَادًا ﴿٧﴾ |
| --- |
| آيا نهٔ ده ګرځولے مونږ زمكه فرش (خوره). او غرونه ميخونه. |
| وَخَلَقْنَاكُمْ أَزْوَاجًا ﴿٨﴾ وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا ﴿٩﴾ |
| او پيدا كړي يئ مونږ تاسو جوړئ. او ګرځولے دے مونږ خوب ستاسو آرام. |
| وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ لِبَاسًا ﴿١٠﴾ وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشًا ﴿١١﴾ |
| او ګرځولے ده مونږ شپه جامه. او ګرځولے ده مونږ ورځ وخت د ګټلو د رزق. (وخت |

| وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعًا شِدَادًا ﴿١٢﴾ |
|---|
| د تيرولو د ژوند)۔ او جوړ کړيدي مونږ دپاسه ستاسو اُوه (آسمانونه) مضبوط۔ |
| وَجَعَلْنَا سِرَاجًا وَهَّاجًا ﴿١٣﴾ |
| او کړځولے دے مونږ چراغ پرقيدونکے (بليدونکے)۔(ډيره رڼا کونکے) |

**تفسير** : اُوس الله تعالىٰ لس دليلونه ذکر کوی دپاره د اثبات د قيامت، او دا نعمتونه هم دی، او د الله تعالىٰ د معرفت، د هغهٔ د توحيد، د هغهٔ د قدرت او علم او رحمت د راښکاره کيدو ځايونه هم دی چه په دے کښې غور او فکر کول د الله تعالىٰ په وحدانيت او د مرګ نه پس د دوباره ژوند په عقيده باندے د ايمان راوړو دعوت ورکوی۔

او دا ادله د اجتماعيت دی چه ټول انسانان ترے فائده اخلی، ليکن د عملونو په وجه به د دوی جدائی راځی۔

الله تعالىٰ وفرمايل : اے خلقو! آيا مونږ زمکه تاسو دپاره فرش نۀ ده جوړه کړے، چه په دے باندے تاسو پټی کرئ، آرام سره ژوند تيروئ، او په دے کښې په موجود لارو باندے ځئ، او لرے او نزدے سفر کوئ۔ او آيا مونږ غرونه د زمکے دپاره ميخونه نۀ دی جوړ کړی، دے دپاره چه په دے کښې حرکت پيدا نشی، او تاسو په دے باندے راحت او سکون سره ژوند تير کړئ۔ د زمکے د ثابت ساتلو دپاره د غرونو حيثيت هغه دے ځنګه چه د خيمو دپاره د لرګو دے، لکه ځنګه چه لرګی دا هر طرفته راښکلے ساتی، دغه شان غرونه د زمکے کنارے راښکلے ساتی، ګنے زمکه په خپلو داخلی مادو کښې د جوش او خروش د وجے نه هر وخت خوزيدونکی اوسی، او مخلوق په دے باندے ژوند نشی تيرولے۔

**اَلَمْ**: پدے استفهام کښې مطلب دا دے چه پدے راتلونکی کارونو باندے زمونږ قدرت لوی دے د زمونږ قدرت نه په دوباره ژوندی کولو باندے، نو بيا ستاسو د انکار څه وجه کيدے شی؟، ځکه چه دا خبره ثابته شويده چه ټول اجسام په قبلولو د صفاتو او اعراضو کښې يو شان وی۔ (فتح البيان)

**مِهَادًا**: فرش او بسترے ته وائی۔ دا د مَهْد نه دے تيارئ ته، او د ماشوم زانګو ته وائی

چه د هغهٔ د خوب او آرام دپاره تیارولے شي۔

نو معنیٰ دا ده: ((تیاره کړے شوے دپاره د آرام))۔

أَوْتَادًا : جمع د وتد ده، میخ ته وائي۔ یعنې لکه څنګه چه په میخ سره خیمه مضبوطیږي، او د خوزیدو نه محفوظه کیږي نو دغه شان غرونه د زمکے دپاره دي۔

او لکه څنګه چه د میخ څه حصه ښښه وي او څه بهر وي، نو دغه شان غرونه هم دي چه څه ئے حصه ئے په زمکه کښ ننوتے ده او څه بهر ده۔

دا دلائل هم دا خبره راښکاره کوي چه مخکښ تساؤل د خلقو د بعث بعد الموت (د قیامت) په باره کښ دے، نهٔ د قرآن په باره کښ ځکه چه دا استدلال د قرآن دپاره نهٔ صحیح کیږي۔

وَخَلَقْنَاكُمْ أَزْوَاجاً : دا دریم انعام دے۔ او مونږ تاسو مذکر او مونث پیدا کړي یئ، دے دپاره چه ستاسو ترمینځه اُنس او محبت پیدا شي، او دے دپاره چه د ژوند مسائل حل کولو او د انساني نسل د زیاتولو او ددے په تعلیم او تربیت کښ تاسو یو بل سره تعاون وکړئ۔ انساني پیدائش او ددے مذکر او مونث کیدل د الله تعالیٰ د قدرت، د هغهٔ د علم، او د هغهٔ د حکمت او رحمت د راښکاره کیدو ځایونه دي۔

أَزْوَاجاً: د ازواج نه مختلف قسمونه، او مختلف شکلونه هم مراد کیدے شي۔

وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتاً : او مونږ ستاسو خوب ستاسو د راحت او سکون سبب جوړ کړے۔ که چرے خوب نهٔ راتلے نو د انسان بدن به ستړے شوے او ژوړ ژوړ شوے وَے، ددهٔ سکون به ختم شوے، او دا به لیونے شوے وَے۔

خوب د الله تعالیٰ رحمت دے چه ددے په ذریعه د انسان ضائع شوے طاقت دهٔ ته واپس راځي، او دا تازه دَم شي، او دوباره د ژوند په کاروبار او عبادت کښ سرگرم شي۔

سُبَاتاً : سبت په اصل کښ قطع کولو ته وئیلے شي، خوب ته ئے سبات ددے وجه نه وئیلے دے چه د کارونو او د شغل نه قطع کول کوي۔

او بعض وائي چه سبت اُوږدوالي ته وائي، او ددے نه مراد راحت دے او په وخت د راحت کولو کښ انسان خپے اُوږدوي۔ او خوب پدے وجه نعمت دے چه انسان کله راحت وکړي نو انسان په کارونو او په عبادت باندے طاقت مونده کوي۔

او په جنت کښ کارونه او ستړے والے نشته نو هلته خوب هم نشته۔ نو معنیٰ دا ده:

(خوب قطع کونکے ستاسو ستړی والی لره او ستاسو مصیبتونو او تکلیفونو لره)

وَجَعَلْنَا اللَّيْلَ لِبَاساً : او مونږ شپه ستاسو دپاره لباس جوړه کړے، لکه څنګه چه لباس د انسان جسم پټوی، دغه شان د شپے تیارهٔ دا پټوی، او دهٔ ته راحت او سکون رسوی۔ نو سعید بن جبیرؒ چه ددے معنیٰ په سکن (آرام) سره کړیده نو هغه حاصل ترجمه ده۔

وَجَعَلْنَا النَّهَارَ مَعَاشاً : ((اومونږ ورځ د معاش تالاش کولو وخت جوړ کړے))۔

معاش په معنیٰ د معیشة دے، او مضاف پټ دے، یعنی وخت د معاش۔ او معاش هغه شی ته هم وائی چه انسان په هغے سره ژوند تیروی۔

یعنی الله تعالیٰ ورځ دوی لره روښانه کړیده دے دپاره چه پدے کښ د خپل معاش او اسباب د ژوند، زراعت، تجارت باندے مشغول شی، او رزقونه طلب کړی۔

وَبَنَيْنَا فَوْقَكُمْ سَبْعاً شِدَاداً: او مونږ ستاسو دپاسه اووهٔ آسمانونه جوړ کړی دی، اُوسه پورے په دے کښ هیڅ سورے یا چود پیدا نشو۔ هم هغه شان دی او وی به، تردے چه کله قیامت راشی نو هغه به د الله تعالیٰ په حکم زوال قبول کړی۔

شِدَاداً: یعنی قَوِيَّةَ الْخَلْقِ مُحْكَمَةَ الْبِنَاءِ۔

یعنی قوی پیدائش والا مضبوط جوړخ والا۔ او دا دلیل دے چه آسمانونه مضبوط اجسام دی، او هسے هواګانے نهٔ دی۔

وَجَعَلْنَا سِرَاجاً وَهَّاجاً: او مونږ نمر پیدا کړے چه دا دنیا والو له رڼا ورکوی، او په دے کښ دهوپ او ګرمائش دے چه ددے په وجه میوے پخیږی او نورے فائدے حاصلیږی۔

سراج ډیوے ته وائی مراد ترے رڼا کونکے دے۔

وَهَّاجاً : (اَیْ وَقَّادًا) ډیره رڼا کونکے /ډیر پرقیدونکے چه نظر ورته نهٔ شی کیدے، او دلته ئے سپوږمئ ذکر نکړه ځکه چه د نمر رڼا ډیره هم ده، او فائدے ئے هم ډیرے دی نو د هغے ذکر ته ضرورت رانغلو۔

| |
|---|
| وَّاَنْزَلْنَا مِنَ الْمُعْصِرَاتِ مَآءً ثَجَّاجًا ﴿۱۴﴾ لِّنُخْرِجَ |
| او رالیږلی دی مونږ د وریځو نه اوبه ډیرے بهیدونکی۔ دے دپاره چه را اوباسو مونږ |
| بِهٖ حَبًّا وَّنَبَاتًا ﴿۱۵﴾ وَّجَنّٰتٍ اَلْفَافًا ﴿۱۶﴾ اِنَّ يَوْمَ الْفَصْلِ كَانَ |
| پدے سره دانے او گیاه۔ او باغونه گنړ۔ یقیناً ورځ د فیصلے دے |
| مِيْقَاتًا ﴿۱۷﴾ يَّوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ فَتَاْتُوْنَ |
| وخت مقرر۔ په هغه ورځ چه پوکے به اوکړے شی په شپیلئ کښ نو راځئ به تاسو |
| اَفْوَاجًا ﴿۱۸﴾ وَّفُتِحَتِ السَّمَآءُ فَكَانَتْ اَبْوَابًا ﴿۱۹﴾ وَّسُيِّرَتِ |
| ډلے ډلے۔ او کولاؤ به کړے شی آسمان نو شی به دروازے۔ او روان به کړے شی |
| الْجِبَالُ فَكَانَتْ سَرَابًا ﴿۲۰﴾ |
| غرونه نو شی به پشان د پړق د شګے (شکو ګل)۔ |

**تفسیر** : نهم انعام : او مونږ د وریځو نه شیبے شیبے باران را اُوره وو، دے دپاره چه ددے په ذریعه غنم، جوار، باجره، وریژے او نورے دانے را اوباسو چه هغه انسانان خوری، او هغه بوټی را اوباسو چه هغه د دوئ مالونه خوری، او ګنړے وُنے مو پیدا کړی دی چه د هغے ښاخونه خپلو کښ ښښتی وی، او ددے نه مختلف قِسم میوے پیدا کیږی۔

**اَلْمُعْصِرَاتِ** : (۱) هغه هواګانے چه وریځے نچوړوی او باران ترینه راوباسی (مجاهدؒ، مقاتلؒ، قتادةؒ، کلبیؒ)

(۲) یا هغه وریځے چه باران وریدو ته نزدے وی لیکن باران ترینه لا وریدلے نهٔ وی۔ (سفیانؒ، ربیعؒ، ابو العالیة، ضحاکؒ) (یعنی بارانی وریځے)

**ثَجَّاجًا** : د ثَجَّ نه دے ډیر بهیدو ته وائی۔ لازم او متعدی دواړه استعمالیږی۔ لکه حدیث کښ دی : [اَیُّ الْحَجِّ اَفْضَلُ ؟ قَالَ اَلْعَجُّ وَالثَّجُّ] عج هغه دے چه تلبیه پکښ زیاته وویلے شی، او ثج چه ډیره وینه پکښ تویه کړے شی۔ (قربانی وکړے شی)

(ترمذی فی الحج باب ۱٤، (۸۲۷) وتفسیر سورة ۳، باب٦) وغیره) واسناده صحیح)

**لِنُخْرِجَ بِهٖ** : دا لسم انعام دے۔ او دا متعلق دے په اَنْزَلْنَا پورے، او پدے کښ د باران فائده

ذکر دہ۔

حَبًّا: دانې، غلې، او نبات نه مراد گیاه گانې، واخه او ساگونه او ونے او بوټی وغیره۔

وَجَنَّاتٍ اَلۡفَافًا: ای مُلۡتَفَّةً یعنی باغونه گنړ/ راتاو کړے شوی)۔ الفاف هغه ونے چه یو بل سره نزدے وی، او څانگے ئے هم ډیرے وی، نو یو بل کښی ننوتے وی، او ددے مفرد نشته، لکه اَوۡزَاعٌ او اَخۡیَافٌ، یا ددے مفرد لُفٌّ یا لِفٌّ دے، اصل کښی راتاوولو ته وئیلے شی۔

ابو عبیدة وائی: ددے مفرد لَفِیۡفٌ دے۔ لکه شَرِیۡفٌ او اَشۡرَافٌ۔

دا تمام څیزونه دلیل دے چه ددے پیدا کونکے یو داسے قدرت والا دے چه د هغهٔ نه لوئے د بل هیڅ قدرت نشته، او داسے پوهه دے چه د هغهٔ علم هر شئ لره راگیر کړے، او داسے حکیم دے چه د هغهٔ هیڅ یو کار د حکمت نه خالی نه دے، او داسے رحیم دے چه د هغهٔ رحمت د هغهٔ تمام مخلوق ته شامل دے، کوم الله چه د داسے قدرت، د داسے علم، او د داسے حکمت او رحمت والا دے، د هغهٔ په باره کښی د آخرت نه منکر ناپوهه خلق څنگه گمان کوی چه هغه به انسانان دوباره پیدا نهٔ کړی، او هغوئ ته به د هغوئ د ښو او بدو عملونو بدله ورنهٔ کړی، دا څنگه نامعقوله خبره ده چه ظالمان او مجرمان په دے دنیا کښی سرگردانه گرځی، څهٔ چه غواړی کوی دے، او بل کوم ژوند ډے نهٔ وی چرته چه دوئ له د دوئ د کړو بدله ملاؤ شی۔

یقینًا بل ژوند شته دے، چه په هغے کښی به د انسانانو خالق او مالك دوئ سره حساب کوی، او دوئ له به جزاء او سزا ورکوی۔

## اِنَّ یَوۡمَ الۡفَصۡلِ: ربط:

مخکښی د دوباره ژوند په اثبات د الله تعالیٰ د قدرت دلیلونه ذکر شو نو اُوس په دے آیتونو کښی په کائناتو کښی واقع کیدونکی هغه حادثات او انقلابات ذکر کړی دی چه هغه به د قیامت د قائمیدو په وخت رابښکاره کیږی۔

دارنگه د هغه انسانانو انجام ئے بیان کړے چه هغوئ په دنیا کښی د خپل رب نه سرکشی کړے وه۔

په بل تعبیر: مخکښی د اثبات دلائل وو نو اُوس تخویف اُخروی دے په ذکر د هیبتونو د ورځ د قیامت او په ذکر د احوالو د جهنم سره۔

يَوْمَ الْفَصْلِ : قيامت ته ئې د فيصلې ورځ وويله ځکه چه دغه مخکنې نعمتونه مشترك وو، او د قيامت په ورځ به د دوی ترمينځ د عملونو په اعتبار سره جدائي راشي.
فرمائي چه د مخلوق ترمينځه د فيصلې ورځ، د الله له اړخه تولو دپاره مقرر ده، په دې ورځ به د الله تعالىٰ د وعدې مطابق تول د خپلو عملونو ثواب او عذاب بيامومي.
دا هغه ورځ ده چه کله اسرافيل ﷺ دويمه شپيلۍ اوپوکي، نو تمام روحونه به په خپلو جسمونو کښې واپس شي، او خلق به د محشر ميدان طرفته د جماعتونو او ټولګو په شکل کښې منډې وهي. او آسمان به اوشليږي او داسې ټکړې ټکړې به شي چه په دې کښې به بې شماره دروازې جوړې شي، او غرونه به د خپلو ځايونو نه اووځي او ريزه ريزه به شي، او په هواء کښې به د ګرد او غبار پشان خوارۀ شي، چه ددې په ليدلو سره به خلق دا تصور وکړي چه دا شکوګل دې.
كَانَ : يعني په تقدير او په علم د الله تعالىٰ کښې وو.
مِيقَاتاً: مقرر کړې شوې وخت دپاره د ثواب او عذاب، او دپاره د انتهاء (ختميدو) د دنيا.
يُنفَخُ فِي الصُّورِ: ددې نه مراد دويمه شپيلۍ ده.
أَفْوَاجاً : اَىْ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ لِلْحِسَابِ - يعني تاسو به راځئ ډلې ډلې د هر ځای نه د حساب کتاب دپاره.
او هره ډله به د خپل امام سره راروانه وي لکه سورة اسراء (۷۱) آيت کښې ذکر دي. او دا ډلې به مختلفې وي په اعتبار د اختلاف د عقائدو او د اعمالو د دوی.
او يو روايت کښې دي: چه سود خوارۀ به په يو طرف روان وي، او زناکار به په بل طرف وي، او مشرکان به په بل وي، او قاتلان به په بل. دلته مفسرينو پدې معنیٰ باندې يو روايت نقل کړيدې.
أَبْوَاباً: يعني آسمانونه به وچوي او ډيرې دروازې به شي. يعني هر ځای به ئې مات شي صرف غاړې به ئې پاتې وي. يا حرف تشبيه پټ دې (اَىْ كَالْاَبْوَابِ) چاودنه به ئې داسې په آسانۍ او جلتۍ سره وشي لکه د دروازې د کولاويدو په شان. او مقصد ئې دا دې : (تَنْحَلُّ وَتَتَنَاثَرُ) يعني دا به کولاو شي او راويه دوړيږي.
سَرَاباً: دا هم په تشبيه سره دې، يعني كَالسَّرَابِ. لکه سراب (پيرانو تنور/شکوګل)

چه په سترګو باندې اُوېـه ښکاره کېږي لیکن په حقیقت کښې هیڅ نهٔ وي، دغه شان غرونـه بـه ظاهـر کـښې غرونه ښکاره کېږي خو په مینځ کښې به غرونه نهٔ وي بلکه ګرد غبار به وي۔ (قاسمیؒ)

یعنی هَبَاءً مُنۡبَثًّا ۔ هسې خـور وور غبار به ترې جوړ شي، لیکن انسان ته به داسې ښکاره کېږي لکه د سراب په شان۔

امام رازيؒ په خپل تفسیر کبیر کښې او صاحب د فتح البیان د غرونو هغه احوال چه په وخت د فناء کیدو د عالم کښې به وي په ترتیب سره داسې راوړي دي، اول اِنۡدِکَاك (تهکیدل) لکه په سورة الحاقه (١٤) آیت کښې،

دویم په شان د رنګینې وړئ لکه په سورة القارعه (٥) آیت کـښې، او دریم په شان د دوړې / ګرد او غبار لکه په سورة الواقعه (٦) آیت کښې، څلورم نسف (آلوزول) لکه په سورة طه (١٠٥) آیت کښې، پنځم په شان د سراب جوړیدل لکه پدې آیت کښې دي۔

| |
|---|
| إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتۡ مِرۡصَادًا ﴿٢١﴾ لِلطَّاغِينَ مَآبًا ﴿٢٢﴾ لَابِثِينَ |
| یقیناً جهنم ځائې د انتظار دې۔ دپاره د سرکشانو ځائې د ورتللو دې۔ وخت تیرونکي |
| فِيهَا أَحۡقَابًا ﴿٢٣﴾ لَّا يَذُوقُونَ فِيهَا بَرۡدًا وَّلَا شَرَابًا ﴿٢٤﴾ |
| به وي په هغې کښې ډیرې زمانې۔ نهٔ به څکي په هغې کښې یخني او نهٔ د څکلو څیز۔ |
| إِلَّا حَمِيمًا وَّغَسَّاقًا ﴿٢٥﴾ جَزَآءً وِفَاقًا ﴿٢٦﴾ إِنَّهُمۡ |
| مګر خوټ کیدلې اُوبه او وینې زوې۔ بدله ده برابره (د عمل د دوی سره)۔ یقیناً دوی |
| كَانُوا۟ لَا يَرۡجُونَ حِسَابًا ﴿٢٧﴾ وَكَذَّبُوا۟ بِآيَاتِنَا |
| وو چه امید ئې نهٔ لرلو د حساب۔ او دروغژن ئې ګنړلي دي آیتونه زمونږ |
| كِذَّابًا ﴿٢٨﴾ وَكُلَّ شَيۡءٍ أَحۡصَيۡنَاهُ كِتَابًا ﴿٢٩﴾ فَذُوقُوا۟ |
| په دروغژن ګنړلو۔ او هر شې مونږ راګیر کړېدې هغه په لیکلو کښې۔ پس اُوڅکئ |
| فَلَنۡ نَّزِيدَكُمۡ إِلَّا عَذَابًا ﴿٣٠﴾ |
| (عذاب) پس نهٔ زیاتوو مونږ تاسو له مګر عذاب۔ |

**تفسیر** : إِنَّ جَهَنَّمَ كَانَتْ مِرْصَاداً : اُوس د آخرت تخويف دے په ذكر د لسو احوالو د جهنم سره۔ اول د كافرانو حال بيانوی ځكه چه پدے سورت كښې دهمكی زياته ده۔ په دے ورځ به الله تعالىٰ د مخلوق ترمينځه فيصله كوی، او د جهنم اُور به تيز كړے شی چه دا به د سركشانو په سخت انتظار كښې وی، او دا به د دوئ استوګنه جوړيږی، او په دے كښې به دوئ هميشه اوسيږی۔ كله چه يوه زمانه تيره شی نو بله زمانه به شروع شی، او د دوئ عذاب به هيڅ كله نۀ ختميږی۔

واحدیؒ دِ حسن بصریؒ نه د ﴿ أَحْقَابًا ﴾ همدا تفسير نقل كړے۔

مِرْصَاداً : (۱) صيغه د ظرف ده يعنی ځای د انتظار او د څوكئ (څوكيدارئ) يعنی مورچه۔ چه د جهنم ملائك د كافرانو په جهنم كښې انتظار كوی چه كله به راځی چه دوی ته پكښې عذاب وركړی۔ يا په پل صراط باندے انتظار كوی۔

دلته ئے حاصل تفسير دا دے : (طَرِيقًا وَمَمَرًّا) يعنی لاره ده۔ (حَتّىٰ لَا يَدْخُلَ الْجَنَّةَ اَحَدٌ اِلَّا وَهُوَ يَمُرُّ عَلَيْهَا) تردے چه جنت ته به هيڅوك نشی داخليدے مگر پدے لاره به ورتيريږی۔

(۲) يا مصدر مبنی للمفعول دے، يعنی تيار كړے شويدے دپاره د عذاب۔

(۳) يا مرصاد صيغه د مبالغے ده لكه د مِعْطَار او مِعْمَار په شان، (يعنی ډير انتظار كونكے) يعنی جهنم به خپله د كافرانو ډير انتظار كوی۔ (او سخت به ورته په غضب وی)۔

لِلطَّاغِيْنَ : د طغيان نه دے يعنی هر هغه څوك چه د شرعی حدودو نه په عقيده او عمل كښې تجاوز كوی، نو هغه طاغی دے، نو دا هر مشرك، كافر، منافق او فاسق ته شامل دے۔

مَآبًا : اَیْ مَوْضِعَ الرُّجُوْعِ ۔ يعنی ځای د واپسئ دے۔ آبَ يَؤُوْبُ په معنیٰ د رجوع سره دے۔ او دا په تركيب كښې بدل دے د مِرْصَادًا نه۔ يعنی دا مرصاد څه شے دے؟ دا د سركشانو دپاره ځای د واپسئ دے۔

لَابِثِيْنَ فِيهَا أَحْقَاباً: احقاب جمع د حُقُب ده، يو پيړئ ته وئيلے شی۔

مفسرين وائی چه دا اتيا كاله دی، او هر كال درے سوه شپيته ورځے دے، او يوه ورځ د

دنیا د زرو کالو سره برابره ده. صحیح دا ده چه ددے هیڅ مقدار نهٔ دے معلوم. نو ددے معنیٰ ده (دُهُوْرٌ لَا نِهَايَةَ لَهَا) یعنی داسے زمانے به وی چه د هغے هیڅ انتهاء نهٔ ده معلومه. نو دا کنایه ده د همیشوالی نه. لکه د حسن بصریؒ قول کښې ذکر شو.

یا دلته معنیٰ دا ده چه ترڅو پورے زمانه وی نو جهنمیان به په اُور کښې وی، او زمانه نهٔ منقطع کیږی، نو دغه شان د دوئ عذاب به هم نهٔ ختمیږی.

**فائده** : بعض اهل علمو ددے نه دلیل نیولے دے چه جهنم باندے به یو داسے وخت راځی چه هغه به فناء کیږی. لیکن دا قول د هغوی یو لغزش دے ځکه چه یو خو د حقب اندازه په صحیح مرفوع حدیث کښې نهٔ ده ثابته.

دویم دا چه ددے په تعیین کښې متعارض اقوال دی چه یو طرفته هم ترجیح بغیر د دلیل نه نشی ورکولے.

دریم دا چه دلته د جمهورو مفسرینو په نیز د اَحقاب نه مراد هغه زمانے دی چه د هغے هیڅ انتهاء نهٔ ده معلومه. لکه دا په محاوره کښې وئیلے کیږی چه (فلانے به په مودو مودو دا کار ونکړی). یعنی هیڅکله ئے نهٔ کوی.

څلورم دا چه دا قول د صریحو نصوصو خلاف دے لکه خَالِدِيْنَ فِيْهَا اَبَدًا ـ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُقِيْمٌ. او دا قانون دے چه خلود د مکین (وسیدونکی) د مکان په خلود باندے دلیل وی.

او ظاهر د آیتونو او د حدیثونو همیشوالے د جهنم او د جنت دے. او ددے فناء په هیڅ صحیح مرفوع حدیث کښې نهٔ ده راغلے.

لَا يَذُوْقُوْنَ: یعنی هلته به دوئ ته هیڅ یو داسے یخ شے نهٔ ملاویږی چه هغه د اُور ګرمی کمه کړی، او نهٔ به کوم داسے شے د څکلو دپاره ملاویږی چه هغه د دوئ تنده ماته کړی، دوئ له به د څکلو دپاره سختے ګرمے اُوبهٔ او د جهنمیانو د جسمونو نَوونه ملاویږی. دوئ په دنیا کښې چه کوم جرمونه او بد اعمال کړی وو، د هغے به دوئ ته پوره پوره بدله ورکړے کیږی، الله تعالیٰ به په دوئ ظلم نهٔ کوی، بلکه دوئ خپله په خپل حق کښې ظالمان وو.

اِلَّا حَمِيْمًا وَّغَسَّاقًا: اول دِ برد نه استثناء ده، او دویم د شراب نه، او استثناء منقطع ده. او د غساق تفسیر په سورة ص کښې ذکر شویدے.

جَزَآءً: دا مصدر دے فعل ئے پټ دے (اَیْ يُجْزَوْنَ جَزَاءً) دوی له به بدله ورکولے شی

بدله برابره د دوئ د عملونو سره۔

وِفَاقًا: یعنی شرك غټه گناه وه نو دا عذاب هم غټ دیے۔ دویم د دوی عملونه هم گنده وو، نو عذاب ئې هم گنده دیے، او مشرکان هم گنده دی۔

إِنَّهُمْ كَانُوا لَا يَرْجُونَ: اُوس د جهنم د داخلیدو اسباب بیانوی او دا ددیے دپاره بیانوی چه څوك دا وهم ونکړی چه الله تعالیٰ به په دوی ظلم کړیے وی چه جهنم ته ئې داخلوی، نو الله تعالیٰ وفرمایل: دوئ په خپلو ځانونو باندیے په دیے طریقه ظلم کړیے وو چه یو خو دوی طاغین وو (لِلطَّاغِينَ).

او بله دا چه دوئ په آخرت باندیے یقین نهٔ لرلو، د دوئ دا گمان وو چه د حساب او جزاء او سزا هیڅ ورځ راتلونکے نهٔ ده، دیے وجے نه دوئ په آخرت کښې نجات موندو دپاره د خیر هیڅ یو کار نهٔ دیے کړیے۔

دارنگه زمونږ آیتونه ئې دروغژن وگنړل، او زمونږه انبیاؤ چه کوم نښیے دوئ ته راوړیے وے د هغے نه ئې انکار وکړو، لیکن مونږ د دوئ ټول غټ او واړهٔ گناهونه ریکارډ کړی دی۔ دیے وجے نه مجرمان ډیے نن دا گمان نهٔ کوی چه مونږ په دوئ باندیے ظلم کوو، او دوئ له د ناکړو گناهونو سزا ورکوو۔ مونږ خو یوه یوه ذره لیکلے ده۔

د سورة الکهف په (۴۹) آیت کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی:

﴿ وَوُضِعَ الْكِتَابُ فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا فِيهِ وَيَقُولُونَ يَا وَيْلَتَنَا مَالِ هَذَا الْكِتَابِ لَا يُغَادِرُ صَغِيرَةً وَلَا كَبِيرَةً إِلَّا أَحْصَاهَا وَوَجَدُوا مَا عَمِلُوا حَاضِرًا وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَدًا ﴾

(او عملنامے به مخے ته کیښودلے شی، نوتهٔ به وینے چه گنهگار به ددیے د لیکلو نه یریږی، او وائی به چه هائے زمونږه بربادئ، دا څنگه عملنامه ده چه دیے هیڅ یوه وړه یا غټه د راگیرولو نه بغیر نهٔ ده پریښیے، او څهٔ چه دوئ کړی وو هغه ټول به بیاموم‌ی، او ستا رب په هیچا ظلم نهٔ کوی)۔

لَا يَرْجُونَ: رجاء عقیده ساتل او ویره کول او امید ساتل دی۔ او امید نه مراد دلته یقین دیے۔ او په رجاء سره ئې تعبیر وکړو دپاره د زیات تاکید۔ یعنی یقین خو په ځای پریده چه د دوی په خیال کښې هم دا نهٔ راتلله چه د حساب کتاب یوه ورځ راروانه ده۔

كِذَّابًا: دا مصدر دیے، او د مبالغے دپاره استعمالیږی۔ یعنی لوی تکذیب ئې کړیدیے۔

بِآيَاتِنَا: (۱) آیتونه مَتْلُوَّه (د کتاب الله)

(۲) او دلیلونه د توحید او د بعث بعد الموت۔
وَكُلَّ شَيْءٍ أَحْصَيْنَاهُ كِتَابًا: دا جمله معترضه ده، پدے کښې جواب د سوال دے چه دا عملونه خو دوی کړیدی لیکن کیدے شي چه دوی انکار وکړي؟ نو الله تعالیٰ فرمائي چه دا ټول اعمال مونږ لیکلی دي۔
كِتَابًا: ددے کتاب نه مراد یو لوح محفوظ دے۔
❁ دویم ددے نه مراد لیکل دي په صحیفو د ملائکو کښې، او الله تعالیٰ ئے نسبت ځان ته وکړو ځکه چه دا د هغهٔ په امر سره کیږي۔
نو د کتاب نه مراد کتاب الملائکة دے۔ یعنی د دوئ نور ډیر بد عملونه دي چه الله تعالیٰ به ئے ورته په قیامت کښې وړښکاره کړي۔
فَذُوقُوا فَلَنْ نَزِيدَكُمْ إِلَّا عَذَابًا : مفسرین لیکي: [اَشَدُّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ عَلَى اَهْلِ النَّارِ] دے آیت ته په قرآن کښې سخت آیت وائي په اُور والو باندے۔
چه الله تعالیٰ به دے مجرمانو ته د دوئ ذهني غم او درد زیاتولو دپاره ووائي چه اُوس د جهنم د عذاب خوند اوڅکئ، اوس خو به مونږه ستاسو په عذاب کښې نوره اضافه کوو، اُوس ستاسو دپاره آرام او سکون چرته دے۔ کله چه هم ستاسو څرمنے اوسوزي، نو مونږ به دا بدلے کړو، او کله چه هم اُور په مزه شي، مونږ به دا نور راتود کړو۔
فَلَنْ نَزِيدَكُمْ : پدے کښې ډیر تاکیدات دي، یو دا چه لَنْ د تاکید د نفي د مستقبل دپاره دے۔
دویم التفات د غائب نه مخاطب ته، دریم نفي او اثبات د حصر دپاره دي۔ نو دا دلیل دے چه د کافرانو عذاب به نهٔ منقطع کیږي، او جهنم به نهٔ فناء کیږي۔ او د عذاب د زیاتوالی طریقه په سورة النساء (۵٦) آیت کښې ذکر ده
﴿كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ بَدَّلْنَاهُمْ جُلُودًا غَيْرَهَا لِيَذُوقُوا الْعَذَابَ﴾
(هر کله چهٔ د دوی څرمنے پخے شي نو مونږ به دوی ته څرمنے بدلے کړو دے دپاره چه عذاب وڅکي)۔
او په سورة الاسراء (۹۷) آیت کښې دي : ﴿كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيرًا﴾۔
(هر کله چه اُور کم شي نو مونږ به ئے نور تیز کړو)۔

| إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا ﴿٣١﴾ حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا ﴿٣٢﴾ وَكَوَاعِبَ |
|---|
| یقیناً د متقیانو دپاره ځائے د کامیابۍ دے۔ باغونه او انګور۔ او ځوانے جینکۍ |
| أَتْرَابًا ﴿٣٣﴾ وَكَأْسًا دِهَاقًا ﴿٣٤﴾ لَّا يَسْمَعُونَ فِيهَا لَغْوًا وَلَا كِذَّابًا ﴿٣٥﴾ |
| همزولے د دوی۔ او ګلاسونه ډک۔ نۀ به آوری په هغے کښې بے ځایه خبره او نۀ دروغ۔ |
| جَزَاءً مِّن رَّبِّكَ عَطَاءً حِسَابًا ﴿٣٦﴾ رَّبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ |
| بدله ده د طرف د رب ستا نه ډالۍ ده کافي۔ رب د آسمانونو او د زمکے دے |
| وَمَا بَيْنَهُمَا الرَّحْمَٰنِ |
| او د هغه څه چه په مینځ د دواړو کښې دی، بیحده مهربان ذات دے، |
| لَا يَمْلِكُونَ مِنْهُ خِطَابًا ﴿٣٧﴾ |
| اختیار نۀ لری دوی د هغۀ سره د خبرو کولو۔ |

**تفسیر** : مخکښې د مجرمانو او سرکشانو بد انجام بیان شو، اُوس د پرهیزګارو او نیکو خلقو په لسو طریقو سره غوره انجام بیانیږی۔

الله تعالیٰ وفرمایل : کوم خلق چه د خپل رب د رضا له خاطره د هغۀ بندګی کوی، او ګناهونو نه بچ کیږی، دوئ به د جهنم د اُور نه نجات مومی، او د جنتونو د نعمتونو په موندلو سره به کامیابیږی، په دے جنت کښې به دوئ له قِسما قِسم میوه دارے ونے وی، د انګورو غونچکونه به وی، ځوانے همزولے جینکۍ به وی چه د هغوئ عمرونه به د درے دیرشو کالونه زیات نۀ وی، او د نهایتے مزیدارو شرابو نه به ډک جامونه وی۔

مَفَازًا : دا د فَوز نه مصدر میمی دے، کامیابۍ او مقصد ته رسیدل او د اُور نه خلاصیدو ته وائی۔ او روستو حَدَائِقَ وغیره د هغے نه بدل دے په طریقه د مبالغه، یعنی دا کامیابی عین باغونه او اعناب دی۔

او دارنګه مَفَازَةٌ دشتے او بیابان ته وائی۔ عبد الله بن عباس ﷺ فرمائی : ددے نه مراد مکان د سیر او تفریح (سیل سپا) دے او روستو حدائق ئے بیان دے۔

دارنګه ځای د کامیابۍ۔

حَدَائِقَ: جمع د حَدِيْقَةٌ ده، دا هغه باغ دے چه دیوال ترے چاپیر وی لکه امام بخاریؒ همدا معنیٰ ذکر کړیده۔ او دا شامل دے بے شماره قسمونو د میوو او د ونو او بوټو ته۔

وَّأَعْنَاباً: دا تخصیص بعد التعمیم دے، او دائے جمع ذکر کړه اشاره ده چه د انګورو به هم بیشماره قسمونه وی۔

وَّكَوَاعِبَ: جمع د كَاعِبَةٌ ده، هغه زنانه چه نوے بالغه شی او سینے ئے په ځای باندے ولاړے وی، یعنی هیچا مسه کړی نهٔ وی چه هغه زوړندے شی۔ او د نورو بیماریانو نه هم بچ دی۔

اَتْرَاباً : همزولے په عمر کښې۔

وَّكَأْساً دِهَاقاً: ۱ – أَیْ مَمْلُوْءَةً۔ یعنی ډکے کاسے۔ (حسنؒ، قتادهؒ، ابن زیدؒ)

نو دا د كَأْسًا دپاره تاکید دے ځکه چه کأس هم د شرابو نه ډکے کاسے او پیالے ته وائی۔ ۲ – مُتَتَابِعَةً يَتْبَعُ بَعْضُهَا بَعْضًا۔ (سعید بن جبیرؒ، عکرمهؒ، مجاهدؒ)

۳ – دِهَاقًا صَافِيَةً (زید بن اسلمؒ) د صفا شرابو والا۔

لَا يَسْمَعُونَ فِيهَا : دا روحانی نعمت دے۔ یعنی جنتیان به په دے جنت کښې نهٔ څهٔ بیهوده خبره آوری، چه په هغے کښې څهٔ فائده نهٔ وی، او نهٔ به دوئ داسے خبره کوی چه په هغے باندے دوئ یو بل دروغژن وګنړی۔ د سورة الواقعه په (٥) آیت الله تعالیٰ وفرمایل : ﴿لَا يَسْمَعُوْنَ فِيْهَا لَغْوًا وَّلَا تَأْثِيْمًا إِلَّا قِيْلًا سَلَامًا سَلَامًا﴾ (نهٔ به دوئ هلته بکواس آوری او نهٔ د ګناه څهٔ خبره، صرف د سلام سلام آواز به وی)۔

لَغْواً: دا هغه خبره ده چه فائده پکښې نهٔ وی۔ او کذاب هغه ده چه ضرر پکښې وی۔

وَّلَا كِذَّاباً : دا معنی هم ده چه ددهٔ د یو بے خبرے تکذیب او انکار به پکښې نهٔ کیږی چه پدے سره هم بنده خفه او غمجن کیږی۔

مفسرین لیکی چه د الله تعالیٰ رشتینے بندګانو ته په دنیا کښې بیهوده خبرو سره ډیر زیات ضرر رسیږی، دے وجے نه په جنت کښې به هم الله تعالیٰ دوئ د داسے ضرری کار او کیفیت نه لرے ساتی۔

جَزَاءً مِّن رَّبِّكَ : او دا ټول نعمتونه به دوئ ته د دوئ د رب له طرفه د دوئ د نیکو عملونو په بدله کښې ملاویږی، او په اصل کښې دا هر څهٔ به د دوئ د رب په دوئ باندے لوئے احسان وی چه هغهٔ دوئ له په دنیا کښې د نیك عمل توفیق ورکړو کوم چه د الله

تعالیٰ د فضل او کرم بهانه جوړه شوه۔
عَطَاء حِسَابًا: یعنی دا ډالیٔ او تحفه ده کافي۔ عطاء ورته ځکه وائي چه جنت یواځې ددهٔ په عمل نهٔ ملاویږي چرته د بنده عمل او چرته د جنت په شان اُوچت نعمتونه !!
بلکه ددهٔ عمل خو ډیر لږ دے، خو دا د رب احسان او تحفه ده۔
نو بیا د عمل فائده څه ده؟ نو هغه د الله تعالیٰ رحمت جلب کول دي، پدے سره بنده د الله تعالیٰ د رحمت لائق کیږي۔
حِسَابًا: اَیْ کَافِیًا۔ یعنی دا پوره بدله ده چه د دویٔ به پرے پوره کار وشي، او هیڅ نیمګړتیا به پکښې نهٔ وي چه ضرورتونه ئے پاتے وي چه فلانے فلانے شے پکښې نشته۔
رَبِّ السَّمٰوٰتِ: د دویٔ کوم رب چه په دویٔ باندے احسانات کړي دي، هم هغه د آسمانونو او د زمکے او ددے ترمینځه د هر یو شیٔ رب دے، هم هغهٔ دا پیدا کړي دي، هم هغه ددے نګران او ساتونکے او تدبیر کونکے او کار ساز دے، او هغه (رحمٰن) دے، د هغهٔ رحمت هر یو شیٔ ته شامل دے، او هم هغه د ټولو پالونکے دے۔
رَبِّ: دا په زیر سره بدل دے د رَبِّكَ نه، یا صفت دے د رَبِّكَ۔
او الرَّحْمٰنِ هم بدل دے، یا صفت د رَبِّكَ۔
لَا یَمْلِكُوْنَ مِنْهُ خِطَابًا: یعنی د قیامت په ورځ به ټول مخلوق د هغهٔ مخے ته د هغهٔ د عظمت او لوییٔ نه داسے یریږي چه هیڅوك به د هغهٔ مخے ته د خُلے پرانستلو زړورتیا نهٔ کوي، د یوے مودے نه پس به صرف هغه خلق د نورو دپاره د شفاعت خبرے د الله تعالیٰ سره کوي چه هغویٔ ته دا قهار او زورور ذات اجازت ورکړي۔
خِطَابًا: ددے نه مراد د شفاعت خبرے دي چه دا به بے اجازته هیڅوك نشي کولے۔
یا ددے نه په الله تعالیٰ باندے حکم کول مراد دي چه هیڅوك به دا طاقت نهٔ لري۔
مِنْهُ: دا مِنْ مُتَضَمِّنْ دے معنیٰ د دفع کولو لره، یعنی داسے خبرے به نشي کولے چه په دے سره د ځان نه څه تکلیف دفع کړي۔

| يَوْمَ يَقُوْمُ الرُّوْحُ وَالْمَلَائِكَةُ صَفًّا لَّا يَتَكَلَّمُوْنَ |
|---|
| په هغه ورځ چه ویه دریږی روح او ملائك صفونه، خبرے به نهٔ شی کولے دوی |
| إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ وَقَالَ |
| مگر هغه څوك چه اجازه ورکړی هغهٔ ته رحمٰن ذات، او ویلی ئے وی (په دنیا کښ) |
| صَوَابًا ﴿۳۸﴾ ذٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ فَمَنْ شَآءَ اتَّخَذَ إِلٰى رَبِّهٖ |
| حقه خبره۔ دغه ورځ حقه ده نو د چا چه خوښه وی اُودے نیسی رب خپل ته |
| مَآبًا ﴿۳۹﴾ إِنَّا أَنْذَرْنٰكُمْ عَذَابًا قَرِيْبًا يَوْمَ |
| ځائے د واپسئ۔ یقیناً مونږ یره درکړه تاسو ته د عذاب نزدے په هغه ورځ |
| يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ وَيَقُوْلُ |
| چه ویه وینی هر سړے هغه عمل چه مخکښ لیږلے دے لاسونو ددهٔ او وائی به |
| الْكَافِرُ يَا لَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرَابًا ﴿۴۰﴾ |
| کافر هائے ارمان دے چه وے زهٔ خاورے۔ |

**تفسیر** : يَوْمَ : دا ظرف دے متعلق په لَا يَمْلِكُوْنَ مخکښ پورے، یا په لَا يَتَكَلَّمُوْنَ راتلونکی پورے، او پدے کښ عظمتِ شان د الله تعالیٰ ذکر کیږی۔ او ورسره د قیامت هم ذکر کوی۔

په کومه ورځ چه روح او ملائك صفونه تړلی وی ولاړ وی، نو هیڅوك به خبرے نشی کولے، مګر چاته چه رحمٰن اجازت ورکړی، او هغه په دنیا کښ صحیح او حقه خبره کړی وی، یعنی کلمه د توحید۔

په صحیح حدیث کښ ثابت دی چه نبی کریم ﷺ به په میدانِ محشر کښ د ټولو نه اول د الله تعالیٰ سره خبرے کوی، د عرش لاندے به په سجده باندے پریوزی، او د الله داسے صفتونه به کوی چه هغه به الله تعالیٰ په دغه وخت کښ د هغهٔ په سینه کښ اچوی۔ بیا به الله عز وجل هغهٔ ته ووائی : (خپل سر را پورته کړه، غواړه تاته به درکیدے شی، او

شفاعت کوه ستا شفاعت به قبلیږی)۔
الرُّوحُ: پدے کښ د مفسرینو ډیر اقوال دی، علامه قرطبیؒ اته (۸) نقل کړیدی۔
بعض دا دی: (۱) دا یو عظیم مَلَك دے د ملائکو نه چه هغه به د ډیر غټ والی د وجه نه مستقل صف جوړیږی۔
(۲) روح اسم جنس دے، مراد ترینه جمع ده، یعنی د بنیادمانو روحونه۔
او حافظ ابن کثیرؒ وائی: زما په نیز ډیره نزدے خبره دا ده چه ددے نه مراد بنیادمان دی ځکه چه د نور قرآن کریم نه معلومیږی چه په قیامت کښ د الله تعالیٰ مخے ته بنیادمان ودریږی، پدے ترتیب سره چه اول انسانان دی، ګیر چاپیره ملائك او شا ته حیوانات او مخے ته الله تعالیٰ دے۔ نو دلته به هم دغه شان ترتیب وی۔
(۳) لیکن ان شاء الله حقه دا ده چه ددے نه مراد جبریل علیه السلام دے چه هغه ته روح القدس او روح الامین هم وائی۔ ځکه چه په قرآن کریم کښ د روح اطلاق په دهٔ باندے زیات کیږی۔ لکه سورتِ بقره (۸۷، او ۲۵۳) آیتونو کښ، د سورةُ المائده په (۱۱۰) آیت کښ، او د سورةُ النحل په (۱۰۲) آیت کښ په ﴿رُوحُ الْقُدُسِ﴾ سره تعبیر شوے دے۔
او په انسانانو باندے ئے اطلاق نهٔ دے راغلے۔
نور کمزوری اقوال پکښ دا دی:
(٤) دا مستقل لښکر دے د لښکرو د الله تعالیٰ نه غیر د ملائکو نه۔
(٥) یا قرآن مراد دے لکه په سورة شوری (٥٢) آیت کښ په قرآن باندے د روح اطلاق شویدے۔
(٦) اشراف د ملائکو۔
(۷) مخلوق دے په شکل د بنیادمانو لیکن غیر دی د هغوی نه۔
وَقَالَ صَوَابًا: یعنی دهٔ به په دنیا کښ د حق موافق خبره کړی وی، مراد ترے نه کلمه د توحید ده لکه د سورة زخرف (۸٦) آیت کښ ئے فرمایلی دی: ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ﴾۔
ذَٰلِكَ الْيَوْمُ الْحَقُّ: الله تعالیٰ د قیامت د ورځے، د هغے د وعد او وعید او د جزاء او سزا ذکر کولو نه پس، د زیاتی تاکید دپاره وفرمایل چه د کوم قیامت د ورځے ذکر چه پورته اوشو، ددے راتلل یقینی خبره ده، په دے کښ هیڅ شك شبهه نشته، دے وجے نه کوم کس چه په دے ورځ کامیابیدل غواړی، هغه دے په الله تعالیٰ، د هغهٔ په رسول او په

آخرت ایمان راوړی، او د گناهونو نه ډېے بچ شی، او په نیک عمل کولو سره ډېے د الله رب العالمین قرب او نزدیکت حاصل کړی۔

مَآباً: اَیْ مَرْجِعًا بِطَاعَتِهٖ۔ ځای د واپسیٔ په طاعت د هغه سره۔ / یا لاره د ورتللو۔

عَذَاباً قَرِیْباً: الله تعالیٰ د مهربانیٔ په وجه خپلو بندګانو ته د سورت په آخر کښې دوباره خبر ورکړو چه اے خلقو! مونږ تاسو د هغه ورځې د عذاب نه ویرولی یئ، چه د هغې وخت په سر باندے ولاړ دے، مرګ راتلو سره سَم به دغه ساعت راځی، او قیامت هم نزدے دے، ځکه هر راتلونکے شے نزدے وی۔ په دے ورځ به هر انسان خپل ښهٔ او بد عمل په خپلو سترګو وینی، او ښهٔ به جنت طرفته بوتللے شی، او بد به د جهنم اُور طرفته۔

بیا به کافر باندے د افسوس او آرمان ژوره وریځ راخوره شی، ددهٔ سترګے به د ډیرے سختے ویرے نه ګُراغے را اوځی، او څهٔ چه ترے ونشی نو وبه وائی: کاش! زهٔ هم د ځناورو غونتے خاورے شوے وے، دے دپاره چه د اُور ددے عذاب نه بچ شوے وے، لیکن په دے افسوسونو سره به دهٔ ته هیڅ فائده نهٔ رسیږی، او جهنم ته به وردیکه کړے شی۔ الله تعالیٰ دِے مونږ د داسے حالت نه محفوظ وساتی۔ آمین۔

وَیَقُوْلُ الْکَافِرُ: لوی مجرم په دغه ورځ کافر دے۔

مَا قَدَّمَتْ یَدَاهُ: پدے کښې ذهن سازی او دفع د وَهْم کوی چه عذاب خو نزدے دے، خو دا به په چا راځی؟ نو فرمائی چه دا به ستا په عملونو راځی کوم چه ستاسو لاسونو مخکښې کړی وی، همداسے ظلم درباندے نهٔ کوی چه آخرت ته دِے راکاږی او جهنم ته دِے ګوزار کړی بغیر د جرم ستا نه۔

اَلْمَرْءُ: ددے نه مراد هر شخص دے مؤمن وی او که غیر مؤمن، هر یو به عملونه وینی لکه دلیل پرے د سورة الزلزال (۸/۷) آیتونه او سورة کهف (۴۹) او سورة قیامه (۱۳) آیت دے۔

کُنْتُ تُرَاباً: ددے دوه مطلبه دی (۱) یو دا چه په دنیا کښې زهٔ خاورے وے، او الله تعالیٰ مکلف انسان نهٔ وے پیدا کړے۔

(۲) یا دا چه اُوس د حیواناتو په شان خاورے شوے وے، او دوباره ژوندون نهٔ وے لکه دا خبره ابو هریره ﷺ کړیده چه هرکله قیامت کښې الله تعالیٰ حیوانات راپورته کړی، او د یو بل نه قصاص واخلی او د انسانانو شرمونو ته وګوری نو په آخره کښې به ورته الله تعالیٰ

وفرمائی : [ كُوْنِىْ تُرَابًا] تاسو خاورے جوړ شئ۔ نو کله چه دوی خاورې شی نو دغه وخت به مجرم وائی چه مونږ هم ددے حیواناتو غونته خاورے شوے وے، او هیڅ عذاب راباندے نهٔ وے۔ (ابن کثیرؒ)

لکه دا ارمان د کافرانو په سورة النساء (۴۲) آیت کښ داسے راغلے دے :﴿ يَوْمَئِذٍ يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴾ (په دغه ورځ به کافران او هغه کسان چه د رسول مخالفت ئے کړیدے، دا خوښوی چه کاش! په دوی باندے زمکه هموار ه شوے وے، او دوی به د الله تعالیٰ نه هیڅ خبره نشی پټولے)۔

فراءؒ وئیلی دی چه د کافر نه مراد ابلیس دے چه هغه به آرمان کوی چه زهٔ خاورے وے، انسان وے، او د خاورے نه پیدا وے، او عاجزی مے کولے، دا خبره هم صحیح ده، لیکن دا ئے بعض مصداق دے، او الکافر کښ الف لام استغراقی دی، هر کافر به دا ارمان کوی۔ نو تخصیص د ابلیس او د ابوجهل وغیره ته ضرورت نشته۔ وبالله التوفیق۔

امتیازات

۱– قیامت ته نبأ عظیم وویل شو۔

۲– په اثبات د آخرت کښ دلیلونه او شواهد ذکر شول۔

۳– په جهنمیانو باندے سخت آیت پکښ ذکر شو۔

٤– د کافر انسان په قیامت کښ د خاورے کیدو ارمان پکښ ذکر شو۔

ختم شو تفسیر د سورة النبأ په توفیق د رب العالمین سره په رمضان (۱۶) ۱٤۳۷ هـ۔

❁❁❁

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

| رکوعاتها (۲) | (۷۹) سُوۡرَةُ النّٰزِعٰتِ مَكِّيَّةٌ | آیاتها (٤٦) |
| --- | --- | --- |

سورة النازعات مکی دے، په دے کښې شپږ څلویښت آیتونه او دوه رکوع دی

## تفسیر سورة النازعات

**نوم :** (۱) ددے سورت هم ګنړ نومونه دی سورة [النّٰزِعٰتِ] (۲) [السَّاهِرَة] او (۳) [الطَّامَّة] هم بنودلے۔ [السَّاهِرَة] په (۱٤) آیت کښې، او [الطَّامَّة] په (۳٤) آیت کښې راغلے دے۔

**د نازلیدو زمانه :** دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔ ابن مردویۃ او بیهقیؒ او نورو د ابن عباس ﷺ نه او ابن مردویۃ د ابن زبیر ﷺ نه نقل کړی دی چه سورة النازعات په مکه کښې نازل شوے۔

**مناسبت :**

۱- مخکښې سورت کښې ئے اِنذار بالعذاب ورکړو نو دلته بیان الخشیة دے چه د الله تعالیٰ نه یره وکړئ۔

۲- هلته عذاب قریب ذکر شو، نو دلته تخویف بالموت ورکوی۔

۳- په هغه سورت کښې سخت زجر وو منکرینو د بعث ته، نو اُوس تخویف دنیوی دے په واقعه د فرعونیانو سره۔

٤- مخکښې سورت کښې تخویف او بشارت طاغینو او متقینو ته په ترتیب سره ذکر کړے وو، نو پدے سورت کښې د طاغی او د متقی تعریف ذکر کوی هم په دغه ترتیب سره۔

## د سورت مقصد

اَلْخَشْيَةُ ـ یعنی ترغیب دے خشیت ته۔ یا تَوْلِیْدُ الْخَشْیَة ـ د یرے پیدا کولو ته، اے بندګانو ! ځان کښ یره پیدا کړئ او چه یره در کښ پیدا شوه، نو دا ستاسو د تزکیهٔ نفس سبب دے، او تزکیهٔ نفس خو د الله تعالیٰ او د بنده مطلوبه ده، د یرے نه بغیر تزکیه نهٔ راځی۔ دا موضوع یو د نازعات د الفاظو نه معلومیږی۔ ﴿یَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ﴾ ﴿فَتَخْشٰی﴾ ﴿عِبْرَةً لِمَنْ یَّخْشٰی﴾ ﴿وَاَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّه﴾ ﴿اِنَّمَا اَنْتَ مُنْذِرُ مَنْ یَّخْشَاهَا﴾ اول او آخر یو شان راغلی دی، ددے نه موضوع ښه معلومیږی۔

بیا د خشیت د پیدا کولو دوه لارے ئے خودلی دی، یو دا چه اے انسانه ! په تا باندے مرګ راروان دے، ملائك به درپسے راشی مرئ به درله تاؤ کړی نو لږ ویریږه۔

او څوك چه د مرګ نه ویریږی نو هغه کښ تقوی پیدا شی۔

دویم دا چه د آخرت ورځ به در باندے راشی، ډیره هیبتی ده، بیا به څه کوے؟۔ نو واقعه د موسیٰ ؑ ئے راوړے ده چه الله تعالیٰ پیغمبران دے له رالیږی چه خلق ویروی لکه موسیٰ ؑ لاړو فرعون ته ئے دعوت وکړو چه د الله تعالیٰ نه ویریږه او د ځان تزکیه وکړه، نو هغه انکار او لوئی وکړه نو الله تعالیٰ راونیولو، نو څوك چه د ځان تزکیه نهٔ کوی، هغه به رانیولے کیږی،

هرڅوك ډیے ددے نه عبرت واخلی چه څوك یریږی هغه به عبرت اخلی ـ ﴿اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِمَنْ یَّخْشٰی﴾ او که نهٔ یریږی نو عبرت به نهٔ اخلی، او چه عبرت ئے وانخستو نو تزکیه به ونهٔ شی، نو د فرعون په شان به ئے الله تعالیٰ تباه کړی، دا څو مره ښهٔ دعوت دے۔

آخرت به راځی ﴿ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَاءُ﴾ تهٔ وائے چه قبر نه پاڅیدل نشته، نو آسمان ته وګوره او کائناتو ته وګوره، نو کائناتی دلیل راوړی۔

او د آخرت ورځ چه راشی نو د انسانانو تقسیم، په بله طریقه چه چا کښ دوه مرضونه وو﴿ فَاَمَّا مَنْ طَغٰی وَآثَرَ الْحَیَاةَ الدُّنْیَا﴾ نو جهنم ئے ځای دے۔ او که چا کښ دوه صفتونه وو (خوف او عدم اتباع الهوی) نو دا جنتیان دی۔

نو کوم خلق چه د آخرت نه نهٔ یریږی نو هغوی د آخرت ورځ په جلتئ غواړی، چه دا

به کله راځي نو الله تعالیٰ د هغوی رد کوی چه دے رسول ته څه پته ده چه قیامت به کله راځي؟ هغه خو صرف د یره ولو دپاره راغلے دے، چه د دغه ورځے نه تاسو یره وی، نزدے راروانه ده، د عَشِيَّةً اَوْ ضُحَاهَا په اندازه نزدے ده، تاسو ته به د ټولے دنیا زندګی داسے ښکاره کیږی لکه سهار یا مازیګر وخت۔

هرکله چه تا دا موضوع یاده کړه نو اُوس به د وَالنّٰازِعَات په معنیٰ هم ښهٔ پو هیږے، بعض مفسرین صرف د الفاظو معانی کوی، او موضوع ته ئے فکر نهٔ وی نو ډیر کرته د هغوی نه ډیر مقصدونه پاتے شی۔

| وَالنّٰازِعَاتِ غَرْقًا ﴿۱﴾ |
|---|
| قسم دے په هغه ملائکو چه راکاږی روحونه د کافرانو په سختئ سره۔ |
| وَالنّٰاشِطَاتِ نَشْطًا ﴿۲﴾ |
| او قسم دے په هغه ملائکو چه راویستونکی دی روحونه د مؤمنانو په نرمئ سره۔ (یا: قسم دے په هغه ملائکو چه نرمی کونکی دی په نرمی کولو سره)۔ |
| وَالسّٰابِحَاتِ سَبْحًا ﴿۳﴾ فَالسّٰابِقَاتِ |
| او قسم دے په ملائکو چه لامبو وهونکی دی په لامبو وهلو سره۔ بیا مخکښ |
| سَبْقًا ﴿٤﴾ فَالْمُدَبِّرَاتِ اَمْرًا ﴿٥﴾ |
| کیدونکی (امر د الله ته) په مخکښ کیدو سره۔بیا انتظام کونکی دی د کارونو۔ |
| يَوْمَ تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ ﴿٦﴾ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ ﴿٧﴾ |
| په هغه ورځ چه ویه خوزیږی خوزیدونکے۔ (شپیلئ) وریسے به وی ددے پسے دویمه شپیلئ (یا: رابه شی وریسے روستو راتلونکے)۔ |

**تفسیر**: وَالنّٰازِعَاتِ: پدے کښ هم مفسرینو ګڼړ اقوال ذکر کړیدی چه دا صفات د چا دی، نو که ټول بیان کړے شی نو آیت نه مُعمه جوړیږی۔

(۱) چا پکښ وئیلی دی چه ددے نه غازیان مراد دی چه د کافرانو نه روحونه وباسی،

(۲) او څوك وائی چه ددے نه مراد ستوری دی،

(۳) او چا ترے کشتئ مراد کړیدی،
(٤) چا ترے نفوس ناطقه مراد کړی،
(٥) چا ترے ملائك مراد کړیدی۔
مګر ددے نورو څه خاص مناسبت نهٔ ښکاره کیږی نو غوره او ظاهر دا ده چه دا ټول صفات د ملائکو دی۔ او د ملائکو د پنځهٔ قِسمه کارونو او صفتونو په وجه ئے دویٔ پنځه قِسمه ملائك ګرځولی دی۔ او په کومه خبره باندے ئے چه د انسانانو په ذهنونو کښِ د خبرے کینولو دپاره قسَم خوړلے دے، هغه پټ دے۔
دا ددے دپاره نهٔ دے ذکر شوے [لِيَذْهَبَ ذِهْنُ السَّامِعِ كُلَّ مَذْهَبٍ] دے دپاره چه د آوریدونکی ذهن هر طرفته لاړ شی او دوی سوچ وکړی۔
(۱) نو چا وئیلی دی چه ددے جواب [اِنَّ فِیْ ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰی] دے۔ خو دا بعید دے،
(۲) دویم دا دے [لَتُبْعَثُنَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ] یعنی په هغه ملائکو قسَم دے چه د هغوئ صفتونه پورته بیان کړے شو، تاسو به خامخا د قیامت په ورځ دوباره ژوندی کیدو سره را پورته کیږئ۔
(۳) او دارنګه: [كَذٰلِكَ يُسَلِّطُ الْمَلَائِكَةَ عَلَى الْكَافِرِيْنَ] دغه شان به الله تعالیٰ په کافرانو باندے ملائك مسلط کوی۔
او د قسم او د جواب قسم دلته خاص مناسبت دے، هغه دا چه الله تعالیٰ ملائك رالیږی اے انسانه ! ستا د وژلو دپاره، الله تعالیٰ ددے دپاره مقرر کړیدی، نو ستا مرئ به ونیسی او روح به درنه وباسی، هر چا سره داسے کار کوی، نو بیا فرمائی چه د مؤمنانو سره نرمی کوی، او دغه ملائك د الله تعالیٰ د حکم د پوره کولو دپاره لامبو وهی لکه جهازونه دی، او خاصو حالتونو ته او د ملائکو تابعدارئ ته اشاره ده چه دوی د الله تعالیٰ د حکم داسے تابع دی چه په هغے باندے د عمل کولو دپاره د یو بل نه مخکښِ کیږی۔
او د آسمان او د زمکے عام پروګرامونه د دوئ په واسطه سره چلوی۔ نو دوی د کارونو تدبیرونه او پروګرامونه جوړوی، او فوجونه تقسیموی۔
نو هر کله چه داسے لوی مخلوق د الله تعالیٰ تابع دی، او په انسانانو باندے مقرر ذی نو بیا اے انسانه ! ویریږه، دوی به دِے راونیسی او په تا باندے قادر دی، د الله تعالیٰ په حکم

سره به دِے هلاك کړی۔ لکه داسے دهمکی الله تعالیٰ په قرآن کښې بار بار ورکړیده:
﴿تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُونَ﴾ (انعام: ٦١) ﴿قُلْ يَتَوَفّٰكُمْ مَلَكُ الْمَوْتِ الَّذِيْ وُكِّلَ بِكُمْ﴾ (الم سجده: ١١) نو دے آیتونو کښې هم دغسے دهمکی ده، نو که د ملائکو په باره کښې تهٔ سوچ وکړے، نو د الله تعالیٰ شان به درته معلوم شی، او یره به دِے هم پیدا شی چه یو غیبی نظام روان دے، د ملائکو په واسطه باندے انسانان رانیولے کیږی، نو هر سړی له یره پکار ده، ځکه چه مونږ یو کمزورے مخلوق یو، الله تعالیٰ چه یو ملائك راولیږی نو ټول انسانان به په یو لاس کښې چخنی کړی، داسے لوی مخلوق الله تعالیٰ پیدا کړیدے، نو دغه شان قیامت کښې ستاسو الله تعالیٰ ته پیشی حقه ده، دے کښې تهدید بالموت دے۔

ددے وجه نه بعض علماؤ د تجربے په طور وئیلی دی چه که یو تن غواړی چه زنکدن په ما باندے آسان شی، نو سورت نازعات دِے زیات وائی ځکه چه پدے سورت کښې د زنکدن په وخت د ملائکو د راتللو خبره ده، او مناسبت واضح دے، هغه دا چه پدے سورت کښې یره ذکر ده، او دا هم لویه یره ده چه په انسانانو باندے به راځی، ملائك به ترے روحونه اخلی۔

نو معنیٰ دا ده:

(الله تعالیٰ وفرمایل) وَالنَّازِعَات: په هغه ملائکو قسَم دے، او زهٔ هغوی ګواه کوم چه هغوی راښکونکی دی روح د کافر او د مجرم لره غَرْقًا: په شدت او په سختیٔ سره۔ (یا مفعول مطلق دے د پټ فعل) یعنی غرق کونکی دی هغوی لره په غرقولو۔

په حدیث کښې دی: [فَيَنْتَزِعُهَا كَمَا يُنْتَزَعُ السَّفُّوْدُ مِنَ الصُّوْفِ الْمَبْلُوْلِ]

د کافر روح داسے تکلیف باندے راکاږی لکه یو لمدے وړیٔ ته چه کونډه ور واچوی او هغه راکاږی نو هغه څومره سخت وی، مرګ دومره ګران شے دے۔

(مسند احمد: ١٨٥٥٧) صحیح)

وَالنَّاشِطَاتِ: قسم په هغه ملائکو چه نرمی کونکی د مؤمن د روح سره په نرمی کولو سره۔ چه د هغوی نه روح په ډیره نرمه سره راویاسی۔

ددے مثال په حدیث کښې داسے راغلے دے:

[فَتَخْرُجُ تَسِيْلُ كَمَا تَسِيْلُ الْقَطْرَةُ مِنْ فِي السِّقَاءِ]

یعنی ددهٔ روح داسې راوځی وبهیږی لکه یو مشك چه واړولے شی او د هغهٔ نه په آرام اُوبه راروانې شی۔ (احمد ۱۸۷۳۳ وابوداود (۳۲۱۲) (۴۷۵۳) صحیح)

وَالسَّابِحَاتِ: قسم په هغه ملائکو چه لامبو وهی په لامبو وهلو سره (په فضاء کښې) یعنی په تیزئ باندې روان وی لکه د لامبو شکل ئې جوړ کړیدې۔

فَالسَّابِقَاتِ: (یعنی دا منډې او لامبو د څه دپاره وهی؟ نو دلته ئې گویا کښې وجه بیانوی چه دا ځکه چه دوی د الله تعالیٰ حکمونو ته د یو بل نه مخکښې کیږی)

یعنی قسم دې په هغه ملائکو چه مخکښې کیدونکی دی حکم د الله تعالیٰ ته په مخکښې کیدو سره۔

فَالْمُدَبِّرَاتِ أَمْراً: پس قسم په هغه ملائکو چه هغوی تدبیر کوی د ټولو کارونو د عالَم (په حکم د الله تعالیٰ سره) او په دې کښې د الله تعالیٰ عظمت او کمال ته اشاره ده چه د هغه په اشارو باندې ملائك لگیا دې کارونه سنبالوی۔

ددې ټولو قسمونو حاصل مطلب: قسم دې په هغه ملائکو چه هغوئ د کافرو انسانانو روحونه پوره قوت او سختئ سره راوباسی، او په هغه ملائکو قسَم دې، چه هغوئ د مومنانو روحونه په تیزئ او نرمئ سره راوباسی، او په هغه ملائکو قسَم دې، چه هغوئ د آسمانونو نه د الله تعالیٰ احکام او اوامر راخلی او زمکې ته راکوزیږی، گویاکه هغوئ لامبو وهی، او په هغه ملائکو قسَم دې چه هغوئ د الله تعالیٰ وحی طرفته ورټوپ وهی، او د شیطانانو نه وړاندې والے کوی، او هغه د الله رسولانو ته په حفاظت سره رسوی، دې دپاره چه شیطانان هغه په پټه سره وانهٔ وری، او قسَم دې په هغه ملائکو چه هغوئ ته الله تعالیٰ په پورته او ښکته کائناتو کښې ډیر کارونه سپارلی دی، لکه باران ورول، بوټی راؤخکل، د هواگانو، سمندرونو، جیواناتو، د میندو په رحم کښې د ماشومانو حفاظت، او د جنت او جهنم او نورو څیزونو انتظام۔

په دې پنځه قِسمه ملائکو باندې قسَم دې، چه تاسو به خامخا ژوندی کیږئ او را پورته کیږئ به۔

يَوْمَ تَرْجُفُ: دا ظرف دې د پټ جواب قسَم دپاره [أَیْ لَتُبْعَثُنَّ يَوْمَ تَرْجُفُ] یعنی تاسو به راپورته کولے شئ په هغه ورځ۔

تَرْجُفُ الرَّاجِفَةُ: ترجف چه متعدی شی نو مفعول به ئې پټ وی نو راجفه په معنیٰ

د اولې شپېلۍ سره دې، یعنی کله چه به وخوزوی ټول عالَم لره خوزونکې شې چه هغه اوله شپېلۍ ده۔ چه دا به ټوله زمکه او ټول ځیزونه وجړقوی۔ او کله چه ترجف لازمی شي نو د الراجفه نه مراد به زمکه وی چه په هغې کښې به لویه زلزله راشي۔ یعنی کله چه وخوزېږی خوزیدونکې شې چه هغه زمکه ده۔

یا پدې صورت کښې هم د راجفه نه شپېلۍ مراد کېدل صحیح دی، او دا به اسناد مجازی وی، شپېلۍ خو خپله نهٔ خوزېږی بلکه ددې په وجه به عالَم خوزېږی، نو الراجفة نه مراد دا چه خوزونکې شپېلۍ به ټول عالَم وخوزوی۔

او رجف ورته ځکه وائی چه ددې په وجه به اول زړونه وخوزېږی، او د خپل ځایونو نه به راوځی، نو د هغې په وجه به مړهٔ شي نو دلته د رجفې نه مراد رَجْفَةُ الْقُلُوْب ده۔ او دارنګه رجفه د عالَم هم ده۔

**تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ :** یعنی ورپسې به وی ددې پسې روسته راتلونکې (دویمه شپېلۍ)۔

**الرَّادِفَةُ:** رادفه مؤنث د رادف دې، دویم سور انسان ته وائی لکه تهٔ په آس باندې سور ئې او تا سره شا ته بل یو تن سور شي نو هغه شخص ته ردیف وائی۔ او دلته هم دویمه شپېلۍ سوره ده د اولې شپېلۍ پسې، چه د دواړو ترمینځ به څلویښت کاله فاصله وی۔ اوله شپېلۍ باندې خلق مری او په دویمه باندې راپورته کېږی۔

اولنۍ شپېلۍ ته [رَاجِفَةٌ] (لړزیدونکې) ځکه وئیلې شوې چه هغه به یوه داسې خطرناکه او هیبتناکه چغه وی چه دې سره به تمام عالَم په پریشانۍ کښې اخته شي، او په ټولو به یو لړزه راشي، بیابه ټول مړهٔ شي۔

او دویمې شپېلۍ ته [رَادِفَةٌ] (روسته راتلونکې) ځکه وئیلې شوې چه دا به د اولنۍ شپېلۍ نه پس وی۔

الله تعالیٰ د سورة الزمر په (٦٨) آیت کښې فرمایلي دی:

﴿ وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ إِلَّا مَنْ شَاءَ اللهُ ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ أُخْرٰى فَإِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ ﴾

(او په شپېلۍ کښې به پوکې اوکړې شي، نو آسمانونو او زمکې والا ټول به بیهوشه شي، مګر څوک چه الله غواړی، بیابه دویمه شپېلۍ اوپوکلې شي، نو دوئ به یکدم ولاړ وی چه ګوری به)۔

| قُلُوْبٌ يَّوْمَئِذٍ وَّاجِفَةٌ ﴿۸﴾ أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ ﴿۹﴾ |
|---|
| زړونه به په دغه ورځ درزیدونکي (ریپدونکي) وي۔ سترګې ددې به ذلیله وي۔ |
| يَقُوْلُوْنَ أَئِنَّا لَمَرْدُوْدُوْنَ فِي الْحَافِرَةِ ﴿۱۰﴾ |
| وائي به دوی آیا مونږ به واپس کړې شو مخکنی حالت ته۔ (په قدمونو خپلو دنیا |
| أَئِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً ﴿۱۱﴾ قَالُوْا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ |
| ته)۔ آیا کله چه شو مونږ هډوکي وراستهٔ۔ وائي دوی دا په دغه وخت کښې واپسي |
| خَاسِرَةٌ ﴿۱۲﴾ فَإِنَّمَا هِيَ زَجْرَةٌ وَّاحِدَةٌ ﴿۱۳﴾ فَإِذَا هُمْ بِالسَّاهِرَةِ ﴿۱۴﴾ |
| وي تاوان والا۔ نو یقیناً دا خو چغه یوه ده۔ نو دغه وخت به دوی په ډاګه وي۔ |

**تفسیر** :وَاجِفَةٌ: اَیْ خَائِفَةٌ۔ یعنی یریدونکي به وي۔

أَبْصَارُهَا خَاشِعَةٌ : یعنی سترګې د هغه زړونو به عاجزې وي، د سترګو نسبت زړه ته کیږي، ځکه چه دا د زړهٔ تابع دي۔ روستو نه معلومیږي چه دا کار به د کافرانو سره کوي، او هر چه مؤمنان دي نو هغوی باندې به لړې لړې یرې راځي خو الله تعالیٰ ئې نهٔ ذلیله کوي۔

يَقُوْلُوْنَ: دا ضمیر دغه زړونو والو ته راجع دې۔ یعنی دغه مجرمان اُوس په دنیا کښې وائي چه آیا مونږ به واپس کړې شو په خپلو قدمونو باندې۔

یعنی پدې کښې د مکې د مشرکانو حال بیان شویدې چه هغوی به د مرګ نه پس ژوندون نه انکار کولو، چه کله چه دوئ ته اوویلې شي چه تاسو به دوباره ژوندي کیږئ، نو دوئ په دې خبره سخت تعجب کوي، او وائي : دا خبره بیخي نامعقوله ده چه د مرینې نه مخکښې زمونږ کوم حالت وو، د مرینې نه پس به دوباره همدې حالت ته واپس کیږو، یعنی ژوندي کیږو به۔

فِي الْحَافِرَةِ : حافر په اصل کښې د اس مَنډ (او قدم) ته وائي۔ د دوی مقصد دا وو چه آیا مونږ به بیرته په قدمونو باندې واپس شو۔ دلته ترې مراد وَجْهُ الْاَرْض دې۔ یعنی آیا مونږ به بیرته واپس شو ددې زمکې مخ ته یعنی بیرته به دنیا ته راځو۔

حافظ ابن کثیرؒ وائی چه حافره د اُور کندے ته وائی۔ یعنی آیا مونږ به د جهنم کندے ته واپس کیږو۔ دا نشی کیدے چه قیامت دِے راشی او مونږ بیرته دے زمکے ته راواپس شو۔ یا دِے مونږ د جهنم کندے ته گوزار کړے شو۔ دا نشی کیدے۔

خپله معنیٰ ئے ده : (آیا مونږ به په خپلو قدمونو سره بیرته دنیا ته راواپس شو)

أَئِذَا كُنَّا عِظَامًا نَّخِرَةً: (آیا کله چه مونږ شو هډوکی زاړهٔ)۔

یعنی دوئ د مړینے نه پس ژوندون پورے نوره خندا کوی، او وائی چه هر کله زمونږ هډوکی وراستهٔ شی، او ریزه ریزه کیدو سره خوارهٔ وارهٔ شی، نو آیا هغه به دوباره راژوندی کیږی، او بیا به د ټوی سر نه هډوکی جوړیږی، که چرے بفرضِ محال داسے اوشی نو دا به ډیره د خسارے (تاوان) خبره وی۔

مفسر ابو السعودؒ لیکی چه په (۱۱/۱۲) آیتونو کښی د دوئ مکرر کفر بیان شوے، یعنی د دویم ژوند نه د اول ځل د انکار نه پس دوئ دوباره ددے حقیقت نه انکار وکړو، کوم چه په دے آیتونو کښی بیان شوے۔

نَخِرَةً: اَیْ بَالِیَةً۔ یعنی زاړهٔ او ذره ذره شوی۔

قَالُوا تِلْكَ إِذًا كَرَّةٌ خَاسِرَةٌ: یعنی دوئ وائی چه دا خو په دغه وخت کښی زندگی ده د تاوان۔ پدے کښی د دوئ دوه غرضونه وو،

(۱) یو دا چه که دنیا ته بیرته راتګ وی نو دا خو به بیا تاوان شی، دے زمکو او جائیدادو باندے به جګړے او اختلافات وی، نیکهٔ به وائی دا زما دے، او نمسے به وائی زما دے۔ د دوئ دا ګمان وو چه ګنے بیرته به دے دنیا ته راواپس کیږی، او دے ته قیامت وائی۔

(۲) دویم مطلب زیات ظاهر دے چه [اِنْ كَانَ مَا تَقُوْلُ حَقًّا فَنَحْنُ فِيْ خُسْرَانٍ، نَحْنُ فِي النَّارِ] یعنی که ستا خبره چرته حقه وی نو مونږ خو به بیا ډیر غټ تاوان کښی یو ځکه چه مونږ به جهنمیان یو ځکه چه مونږ خو دے له تیارے نهٔ دے کړے۔

مطلب ئے دا وو چه مونږ خو د تاوان نه ځان بچ کوو نو معلومیږی چه آخرت حق نهٔ دے، که دا حق وے نو مونږ به ددے تاوان نه ځان ساتلے وے، نو پدے کښی خپله عقلمندی بیانوی چه زمونږ د عقل تقاضا دا ده چه آخرت نهٔ راځی، ځکه که دا راتللے نو مونږ به ورله تیاری کولے، او مونږه ئے چه نهٔ منو نو مطلب دا دے چه نشته، ګنے مونږ ولے ځانونه تاوان ته ورکړو۔

فَإِنَّمَا هِيَ: دلته وقف دے، او ددے ځای نه د الله تعالیٰ کلام شروع شو۔
هِيَ ضمیر كَرَّةٌ (دوباره ژوند) ته راجع دے۔ یعنی یقیناً دغه دوباره ژوند یوه شپیلئ ده۔
اَیْ لَیْسَتْ صَعْبَةٌ عَلَى اللّٰهِ۔
یعنی الله تعالیٰ ته دا گرانه نۀ ده، بلکه یوه شپیلئ سره به دا ټول عالَم بدل کړی، او قیامت به راولی او انسانان به راژوندی کړی، د اسرافیل ﷺ په پوکی سره ئے راژوندی کوی۔ نو دے کښې څه مشکلات دی۔
زَجْرَةٌ : په اصل کښې شړلو او په زورنے سره آواز ته وائی، دلته ترے دویمه شپیلئ مراد ده او پدے تعبیر کښې اشاره ده چه پدے آواز سره به ټول مخلوق ودریږی او روستو به نشی تللے او محشر ته به جمع کیږی، شړلے کیږی۔
وَاحِدَةٌ : یعنی دویم کرت ته حاجت نشته لکه په سورة نحل (۷۷) او سورة قمر (۵۰) کښې ذکر شویدی۔
فَإِذَا هُم بِالسَّاهِرَةِ: یعنی ناڅاپه به دوئ په صفا میدان باندے ولاړ وی۔ کوم خلق چه مړۀ شوی یا ژوندی خخ شوی وی۔
السَّاهِرَةِ: هِيَ الْاَرْضُ الْبَيْضَاءُ الْمُسْتَوِيَةُ۔ دا هغه زمکه ده چه سپینه وی او برابره همواره وی۔ یعنی د خیتے د زمکے نه به بهر میدان ته راوځی چه نۀ به غرونه وی، او نۀ به ډیرئ وی، او نۀ به کندے وی، لکه سورة کهف (٤٧) او سورة طه (۱۰۷) آیت کښې ذکر شوی دی۔
قتادۃ وائی : دا د جهنم نوم دے لیکن دا قول بعید دے۔ او ذے ته ساهره ځکه وائی :
[لِاَنَّ عَلَیْهَا نَوْمَ الْحَیَوَانِ وَسَهَرَهُ]
ځکه چه پدے باندے حیوان اُوده کیږی او بیرته راویښیږی۔
مفسرین لیکی چه د قیامت میدان ته [السَّاهِرَة] ځکه ووئیلے شوه چه ددے لفظ معنیٰ ده بیداریدل، او دوباره ژوندی کیدو نه پس به خلقو له په هغه میدان کښې هیڅ کله هم خوب نۀ ورځی۔ اُوس خوبونه د ټولو انسانانو ختم شو۔ ددے نه روستو یا جنت دے هلته هم خوب نشته، یا جهنم دے هلته هم خوب نشته۔

| |
|---|
| هَلْ أَتَاكَ حَدِيثُ مُوسٰى ﴿١٥﴾ إِذْ نَادَاهُ رَبُّهُ بِالْوَادِ |
| یقیناً راغلے دے تا ته خبر د موسیٰ۔ کله چه آواز وکړو هغهٔ رب خپل ته په کنده |
| الْمُقَدَّسِ طُوًى ﴿١٦﴾ إِذْهَبْ إِلٰى فِرْعَوْنَ إِنَّهُ طَغٰى ﴿١٧﴾ فَقُلْ |
| پاکه کښې چه طویٰ ده۔ لاړ شه فرعون ته یقیناً هغهٔ سرکشي کړیده۔ نو ته اُووایه |
| هَلْ لَّكَ إِلٰى أَنْ تَزَكّٰى ﴿١٨﴾ وَأَهْدِيَكَ إِلٰى رَبِّكَ |
| آیا ستا مینه شته دے سره چه ځان پاك کړے۔ او لار اُوښایم تا ته طرف د رب ستا ته |
| فَتَخْشٰى ﴿١٩﴾ فَأَرَاهُ الْآيَةَ الْكُبْرٰى ﴿٢٠﴾ فَكَذَّبَ |
| پس چه ته اُویرېږے۔ نو وے خودله هغهٔ ته نخه لویه۔ نو هغهٔ تکذیب اُوکړو |
| وَعَصٰى ﴿٢١﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعٰى ﴿٢٢﴾ فَحَشَرَ |
| او نافرماني ئے اُوکړه۔ بیائے شا وګرزوله کوشش ئے کوو۔ نو راجمع ئے کړل (ساحران) |
| فَنَادٰى ﴿٢٣﴾ فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلٰى ﴿٢٤﴾ فَأَخَذَهُ اللّٰهُ |
| پس آواز ئے اُوکړو۔ نو وے وئیل زهٔ رب ستاسو یم اُوچت۔ نو راونیولو هغهٔ لره الله تعالیٰ |
| نَكَالَ الْآخِرَةِ وَالْأُولٰى ﴿٢٥﴾ إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَعِبْرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ﴿٢٦﴾ |
| په سزا د آخرت او د دنیا۔ یقیناً پدے کښې خامخا عبرت دے دپاره د هغه چا چه یرېږی۔ |

**تفسیر** : اُوس د تخویف دپاره واقعه د فرعون راوړی چه دا خلق هم د انکار خبرے کوی، او دغسے به د دوئ مشر فرعون هم کولے، او دا تخویف دنیوی دے، مخکښې د مرګ او د آخرت تخویف بیان شو نو اُوس د دنیا تخویف ورکوی۔

دارنګه دلته د موسیٰ ﷺ او د فرعون د واقعے ذکر کولو نه مقصد نبی کریم ﷺ له تسلی ورکول دی چه که ستا قوم، (د قریشو خلق) تا او ستا د توحید دعوت دروغژن ګنړی، نو فرعون او فرعونیانو هم موسیٰ ﷺ سره داسے معامله کړے وه، او الله تعالیٰ هغه غرق کړل، نو لرے نهٔ ده چه الله تعالیٰ قریشو سره هم داسے سلوك وکړی، او دوئ هلاك کړی۔

هَلْ اَتَاكَ: د پوښتنے په طرز د تعبیر کولو نه مقصد یا خو نبی کریم ﷺ ته د موسیٰ ؑ او د فرعون د واقعے آوریدو ترغیب ورکول دی، که چرے نبی ﷺ ته ددے آیتونو نازلیدو نه مخکښ ددے واقعے خبر نۀ وو، اوکه خبر وو نو مقصد وریادول دی چه تاته خو د موسیٰ ؑ او فرعون واقعه معلومه ده، هغه یاده کړه او په هغے سره خپل زړۀ ته تسلی ورکړه۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه اے زما نبی! آیا تاته د موسیٰ بن عمران د واقعے خبر شته دے، کله چه هغۀ پاك او صفا میدان (طُویٰ) کښې خپل رب ته آواز اوکړو، نو د هغۀ رب هغۀ ته اوښودل چه د هغۀ نه سویٰ بل هیڅوك د عبادت لائق نشته، او هغۀ ته ئے صرف د خپل عبادت حکم وکړو، بیائے ورته حکم وکړو چه هغه د مصر بادشاه (فرعون) خواته لاړ شی چه هغۀ د سرکشئ لاره اختیار کړے، او د الله تعالیٰ بندګان ئے په خپله بندګئ باندے مجبوره کړی، او هغۀ ته ووائی چه زۀ تاله دعوت درکوم چه تۀ د ظلم او سرکشئ او الله تعالیٰ سره د شرك کولو نه توبه ګار شه، او زۀ تاته ستا د رب لاره ښایم، دے دپاره چه تۀ د هغۀ د عذاب نه یریدو سره ایمان راوړے، فرائض په ځائے کړے، او ګناهونو نه بچ شے۔

طَغٰی: د حد نه ئے تجاوز کړے په کفر او شرك سره، او په خلقو باندے ظلم کولو سره، او د حق دین نه په منع کولو سره۔

فَقُلْ هَلْ لَّكَ: اَیْ هَلْ لَّكَ رَغْبَةٌ فِی التَّزَکِیَةِ۔ یعنی آیا ستا مینه شته چه ځان پاك کړے۔

یعنی زۀ تا ته ترغیب درکوم او دعوت درکوم چه ځان پاك کړه خو دا طریقه د دعوت ده په نرمه لهجه سره چه هغه متوجه کړی۔

نو پدے استفهام کښې تذکیر او ترغیب ورکول مقصد دے۔ یعنی په تزکیه د نفس کښې که دے رغبت نۀ وی، نو دا ضروری شے دے خامخا پکښې رغبت وکړه۔

مونږ تولو بندګانو نه الله تعالیٰ تزکیه غواړی لکه روستنی عام سورتونو کښې به د تزکیه دعوت وی، او دا تزکیه د کفر او شرك نه واخله تر وړے ګناه پورے ده چه ددے نه به هر انسان خپل نفس د پاکوالی کوشش کوی۔

او باطنی او ظاهری تولو ګندونو نه به ئے صفا کوی۔ او په ایمان او عمل صالح سره به تحلیه (ښائسته والے) د نفس کوی۔

وَأَهْدِيَكَ إِلَى رَبِّكَ: الله تعالیٰ طرفته هدایت نه مراد معرفت د رب دے۔ یعنی زهٔ به تا ته ستا رب دروښایم او هغه به وپیژنے نو د هغهٔ نه به ویریږے، ځکه چا چه الله تعالیٰ لره وپیژندلو نو د هغهٔ نه به ضرور یره کوی۔

او پدے کښ اشاره ده چه فرعون په شرك فی الربوبیت کښ اخته وو، نو هغهٔ ته د توحید ربوبیت دلیلونه پیش کول ضروری وو، او معرفت د رب مستلزم وی خشیت لره نو ددے وجه نه ئے فَتَخْشٰى کښ فاء راوړه لکه الله تعالیٰ بل ځای فرمائی : ﴿ اِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمٰٓؤُا ﴾۔

بیا په تزکیه کښ اشاره ده تخلیه ته چه انسان به خپل نفس د هر قسم ګندونو ظاهری او باطنی نه خالی کوی، او په أَهْدِيَكَ کښ اشاره ده صفاتو د تحلیه (ښائسته) کولو ته، یعنی په ایمان او په عمل او ښکلے صفاتو اختیارولو سره۔

او ددے نه روستو بیا مرتبه د خشیت ده ځکه چه چا کښ حقیقی یره پیدا شی، نو بیا په ټول دین باندے په استقامت سره عمل کوی، او د الله تعالیٰ د هر حکم لحاظ ساتی، که امر وی او که نهی۔ نو ځکه ئے دا درے الفاظ په ترتیب سره ذکر کړل۔

فَأَرَاهُ الْآيَةَ الْكُبْرَى: ددے آیت نه د فرعونیانو لس حالات ذکر کوی چه هغوی په کومه طریقه انکار وکړو او عذاب پرے راغلو۔

موسیٰ علیه السلام فرعون مخے ته د الله تعالیٰ له اړخه ورکړے شوے خپلے دوه معجزے (سپین پرقیدونکے لاس، او موسوی همسا) ښکاره کړے۔ د هغهٔ همسا نه مار جوړ شو او په زمکه ئے منډے شروع کړے، لیکن فرعون د هغهٔ پیش کړے معجزے دروغژنے وګنړلے، هغے ته ئے جادو ووئیلو، د الله تعالیٰ نافرمانی ئے وکړه، او د کبر او غرور اظهار ئے وکړو او د مجلس نه پاسیدهٔ روان شو، او په زړهٔ کښ ئے فیصله وکړه چه هغه به د موسیٰ علیه السلام د پیش کړو معجزو د شیطانی سازشونو او حیلو په ذریعه مقابله کوی۔

فَكَذَّبَ وَعَصَى :۔ تکذیب د زړهٔ صفت دے، او عصیان د عمل۔

﴿ ثُمَّ أَدْبَرَ يَسْعَى ﴾ ۱- ددے یوه معنیٰ مخکښ تیره شوه چه شائے راواړه وله یعنی اعراض ئے وکړو د ایمان نه، او کوشش د فساد ئے وکړو، او د موسیٰ علیه السلام د مقابلے دپاره ئے منډے تړے شروع کړے۔

۲- یا کله چه هغهٔ ولیدل چه د همسا نه مار جوړ شو نو هغه سخت اُویریدهٔ، او شاته

تاؤ شو او په تیزئ سره ئے منډه کړه اُوتښتیدهٔ۔
فَحَشَرَ : بیا هغهٔ خپل قوم او خپل فوج جمع کړو، او د هغوئ مخے ته ئے د موسیٰ علیه السلام د توحید د دعوت نه انکار او د خپل معبود کیدو داسے اعلان اوکړو چه اے خلقو! صرف زهٔ ستاسو د ټولو نه زیات لوی معبود یم۔
د سورهٔ قصص په (۳۸) آیت کښ الله تعالیٰ د هغهٔ د اُلوهیت دعویٰ په دے الفاظو کښ بیان کړے ده :

﴿مَا عَلِمۡتُ لَكُم مِّنۡ إِلَٰهٍ غَيۡرِي﴾

(اے خلقو! ماته معلومه نهٔ ده چه ماته سوئ ستاسو بل کوم معبود شته دے)۔
قاضی بیضاویؒ لیکی چه کله فرعون اولیدل چه همسا نه مار جوړ شو او منډے وهی، او خپل ذلت او رسوائی ئے ولیدله، نو دهٔ دپاره مناسبه دا وه چه هغهٔ داسے خبره نهٔ کولے۔ ددهٔ دا خبره دلالت کوی چه کله هغهٔ د موسیٰ علیه السلام همسا خپلے مخے ته منډے وهونکے اولیدله نو په هغهٔ باندے د لیونتوب کیفیت راغے،
او د هغهٔ کفر او عناد زیات شو، او د انجام نه ناخبرئ کښ ئے د موسیٰ علیه السلام او د هغهٔ د دعوت خلاف هر ممکن تدبیر وکړو، تردے چه موسیٰ علیه السلام د هغهٔ د ظلم نه تنګ راغے، او بنی اسرائیل ئے واخستل، او کله چه شپے د شپے د مصر نه روان شو نو هغهٔ د خپل فوج سره هغهٔ پسے واچول، او آخر الله تعالیٰ هغه او د هغهٔ فوج په سمندر کښ ډوب کړل، د هغهٔ همدے بد انجام طرفته الله تعالیٰ په (۲۵) آیت کښ اشاره کړے. چه الله تعالیٰ په دنیا کښ دا عذاب ورکړو چه هغه او تمام فرعونیان ئے بحرِ قلزم ته حواله کړل، او په آخرت کښ به هغهٔ له د اُور عذاب ورکوی۔
فَحَشَرَ: ۱ – ددے یو مطلب مخکښ بیان شو۔
۲ – اَیْ جَمَعَ جُنُوْدَهٗ لِلْقِتَالِ وَالْمُحَارَبَةِ۔
یعنی خپل فوجونه ئے د قتال او جنګ دپاره راجمع کړل۔
۳ – اَوْ جَمَعَ السَّحَرَةَ لِلْمُعَارَضَةِ۔ یا جادوګر ئے د مقابلے دپاره راجمع کړل۔
٤ – اَوْ جَمَعَ النَّاسَ لِلْحُضُوْرِ لِيُشَاهِدُوْا مَا يَقَعُ۔ یا ئے خلق راجمع کړل چه دوی حاضر شی او وګوری چه څه به واقع کیږی او څوك به مقابله ګټی۔ (فتح البیان)
اَنَا رَبُّكُمُ الْاَعْلٰى : حافظ ابن کثیرؒ لیکی چه دا کلمه د فرعون د هغه کلمے نه چه په

سورة القصص (۳۸) آیت کښې ذکر ده څلویښت کاله روستو وئیلې شویده لکه دا خبره ابن عباس ﷺ او مجاهدؒ نه نقل ده۔ (ابن کثیرؒ)

او د هغه کلمې مطلب دا وو چه فرعون شرك فی الالوهیة کولو، او ددې کلمې مطلب دا دې چه دې مشرك فی الربوبیت وو۔

اَنَا رَبُّکُمُ الْاَعْلٰی: دهٔ ځان تـه ولې اعلیٰ رب وئیلو ؟ نو ددې وجه دا وه چه ددهٔ په نیز باندې دنیا صرف مصر وو، او ټول تصرفات او انتظامات ددهٔ په اختیار کښې دی، نو دهٔ ګمان وکړو چه زما نه بره بل تدبیر کونکې نشته۔ یعنی د الله تعالیٰ د تدبیر او تصرف کولو نه ئې انکار وکړو۔

او بعض مفسرینو وئیلی دی چه ددهٔ مطلب دا وو چه نور آلهه هم ارباب دی، هر یو د یو حاجت د پوره کولو یا د خاص مصیبت لرې کولو ذمه وار دې، او زهٔ (فرعون) خو د ټولو حاجاتو پوره کولو ذمه واریم نو د نورو نه اعلیٰ شوم۔

یا خو فرعون د خپلې بادشاهئ په نشه کښې دماغ د لاس نه ورکړل، نو د ډیرو نعمتونو وجه دې سرکش شو، او د الله تعالیٰ د ربوبیت نه ئې انکار وکړو۔ او دهری شو۔

او بعض وائی چه فرعون د خالق نه منکر نهٔ وو لیکن د الله تعالیٰ د تصرف او تدبیر کولو نه منکر وو، او دا تدبیر او تصرف ئې ځان دپاره ثابتولو۔

﴿نَکَالَ الْاٰخِرَةِ وَالْاُوْلٰی﴾ (۱) دې کښې یو تفسیر دا شو چه الله تعالیٰ د دنیا او د آخرت په عذابونو کښې راګیر کړو۔

(۲) دې کښې دویم تفسیر چه ابن عباس ﷺ تـه منسوب دې، دا دې چه آخرة نه مراد روستنۍ دعوه او اولیٰ نه مراد اولنۍ دعوه ده۔ یعنی فرعون د خپل قوم مخامخ د خپل معبود کیدو دوباره اعلان وکړو۔ اول هغهٔ د موسیٰ ؑ د دعوت په شروع کښې وویل چه ما د خپل ملك یو یو ګوټ تالاش کړې دې، ماته مانه سویٰ ستاسو هیڅ یو معبود ملاؤ نشو، او د هغهٔ د څلویښتو کالو نه پس هغهٔ دوباره د خپل قوم او د خپل لښکر مخامخ دا اعلان وکړو چه زهٔ صرف زهٔ ستاسو د ټولو نه لوی معبود یم۔ نو الله تعالیٰ د هغهٔ ددې دواړو طاغوتی دعوو په جزاء کښې هغه هلاك کړو، او د هغهٔ ذلت او رسوائی او هلاکت ئې باقی ټولې دنیا والو دپاره د عبرت نښـه جوړه کړه۔ (فتح البیان)

دا تفسیر دومره واضح نهٔ دې، بلکه ددهٔ نورې ډیرې غلطې خبرې او زیات ګناهونه او

سرکشيانے وے چه د هغے په سبب راونيولے شو۔

ابن كثيرؒ وئيلي دي چه صرف اوله معنىٰ صحيح ده۔ دليل پرے د سورة هود (۹۹) آيت ﴿ وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ ﴾ او سورة قصص (٤١) آيت ﴿ وَأَتْبَعْنَاهُمْ فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ هُمْ مِنَ الْمَقْبُوحِينَ ﴾ دے۔

نَكَالَ: دا عبرت ناکے سزا ته وائي۔ او خاصکر هغه سزا ته وائي چه منع کونکي وي د کولو د دغه گناه نه په راتلونکي وخت کښې، ددے وجه نه دا په محسوسي عذاب کښې استعماليږي۔

اَلْآخِرَةِ وَالْأُولَىٰ: الآخرة: ئے مخکښې راوړو د دنيا نه، يا خو پدے کښې رعايت د فواصلو د آيتونو دے۔ يا پدے وجه چه د آخرت سزا ددنيا نه ډيره زياته سخته ده، نو د اهتمام د وجه نه ئے هغه مخکښې راوړه۔

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِمَنْ يَخْشَىٰ: ذلك اشاره ده اخذ (رانيولو) د فرعون ته۔ څوك چه يريږي نو هغه عبرت اخلي۔ ځکه چه د الله تعالىٰ قانون يو دے، په کومو گناهونو چه الله تعالىٰ فرعون رانيولے دے، نو تا به هم پرے رانيهبي، نو د توحيد او د سنت دشمني مهٔ کوئ، گنے تباه به شئ۔ نو څوك چه نهٔ يريږي تباه کيږي، او چه يره پکښې راغله نو هغه سميږي۔ عبرت دے ته وائي چه د يو ځاي او واقعے نه ذهن بوځي بل ځاي ته يعني د خپل ځان جوړولو ته۔

| |
|---|
| أَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا ﴿٢٧﴾ رَفَعَ |
| آيا تاسو ډير کلك پيدائش والا يئ؛ يا آسمان چه جوړ کړيدے الله۔ پورته کړے ئے دے |
| سَمْكَهَا فَسَوَّاهَا ﴿٢٨﴾ وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ |
| چهت د هغے نو برابر کړے ئے دے۔ او تيارهٔ کړے ئے ده شپه د هغهٔ او راويستلے ئے ده |
| ضُحَاهَا ﴿٢٩﴾ وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا ﴿٣٠﴾ |
| رڼرا د هغهٔ۔ (د څابښت وخت) او زمکه روستو ددے نه ئے خوره کړيده۔ |
| أَخْرَجَ مِنْهَا مَاءَهَا وَمَرْعَاهَا ﴿٣١﴾ وَالْجِبَالَ أَرْسَاهَا ﴿٣٢﴾ |
| راويستلي ئے دي ددينه اُوبه ددے او گياگانے ددے۔ او غرونه اُودرولي دي الله تعالىٰ۔ |

| مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِأَنْعَامِكُمْ ﴿٣٣﴾ |
| --- |
| دپاره د فائدے ستاسو او دپاره د چارپیانو ستاسو۔ |

**تفسیر :** ربط :

داؤهم پیدا شو چه مونږ هرکله مړه شو نو ختم شو نو د آخرت سزا به الله تعالیٰ مونږ له څنګه راکړی؟ نو دلته الله تعالیٰ د اثبات د آخرت دپاره بیا دلائل ذکر کوی۔
او پدے دلائلو کښں مقصد اِظْهَارُ الْقُدْرَةِ عَلٰى تَعْذِيْبِ الْإِنْسَانِ دے۔ یعنی الله تعالیٰ انسان ته په عذاب ورکولو باندے قادر دے۔
ءَاَنْتُمْ: دلته خطاب د قریشو هغه خلقو ته دے چه هغوئ مرګ نه پس ژوند نهٔ منلو، چه کوم قادرِ مطلق د آسمانونو او زمکے په پیدا کولو قادر دے، چه هغهٔ شپه او ورځ پیدا کړی، د زمکے نه ئے چینے روانے کړی، بوټی ئے پیدا کړی، او غرونه ئے په زمکه ښخ کړی دی، هغهٔ ته ستاسو او ستاسو پشان نور دوباره پیدا کول ډیر آسان دی۔
الله تعالیٰ وفرمایل چه اے انسانانو! ستاسو پیدائش لویه خبره ده، اوکه د قوی او اوچت آسمان، چه هغه الله پیدا کړے، هغه ئے پورته اُوچت کړے، او هغه ئے دومره مضبوط او محکم جوړ کړے چه انسانی عقل همیشه راسے حیران دے، او وی به، او هغهٔ شپه تیارهٔ جوړه کړے، چه د هغے تیارهٔ آسمان او زمکه پټوی، او هغهٔ د نمر د رنړا په ذریعه ورځ ښکاره کړے ده دے دپاره چه خلق د ژوند کاروبار وکړی، او هغهٔ زمکه خوره کړے ده، دے دپاره چه خلق په دے باندے ژوند تیر کړی، او د یو ځی نه بل ځی پورے سفر اوکړی۔
د سورهٔ یٰسٓ په (۸۱) آیت کښں الله تعالیٰ فرمایلی دی :

﴿ أَوَلَيْسَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ عَلٰى أَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ ﴾

(آیا کوم ذات چه آسمانونه او زمکه پیدا کړے، هغه د انسانانو پشان په دوباره پیدا کولو باندے قادر نهٔ دے)۔
او د سورهٔ غافر په (۵۷) آیت کښں ئے فرمایلی دی :

﴿ لَخَلْقُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ ﴾

(خامخا د آسمانونو او زمکے پیدائش د خلقو د پیدائش نه لویه خبره ده)۔
سَمْكَهَا: یعنی چهت د آسمان۔

وَأَغْطَشَ لَيْلَهَا وَأَخْرَجَ ضُحَاهَا: شپه او ورځ د آسمان نه راوځي ځکه چه دا د نمر تابع دي، او هغه بره دي۔

وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ دَحَاهَا: د زمکے خِلقت مخکښ شوېدے لکه سورة بقره (۲۹) او حم السجده (۹) آيت کښ راغلي وو ﴿خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ﴾ ﴿ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ﴾ نو دلته بعد په خپله معنیٰ دے، او دا آيت د هغے آيتونو سره هيڅ منافات نهٔ لري، ځکه چه دلته ئے داسے نهٔ دي وئيلي چه [وَالْأَرْضَ بَعْدَ ذَٰلِكَ خَلَقَهَا] (چه زمکه ئے ددے نه روستو پيدا کړه) بلکه دحی ئے ذکر کړ.. ه يعني خورول د زمکے روستو دي۔

نو زمکه مخکښ پيدا شوه، بيا ئے آسمان ته رجوع وکړه، هغه ئے پيدا کړو بيا زمکه يو غونډارے وو هغه ئے خوره کړه۔

أَخْرَجَ مِنْهَا: دا د دَحَاهَا تشريح ده، يعني څنګه ئے خوره کړه نو هغه داسے۔ نو دلته الله تعالیٰ د خپل کامل قدرت نورے نښے ذکر کوی، فرمائي چه دغه قادرِ مطلق الله د زمکے نه چينے روانے کړے، او هغهٔ د زمکے نه دانے، ميوے، بوټي او وُنے رازرغون کړل، چه هغه د انسانانو او حيواناتو په کار راځي۔

کوم قادرِ مطلق الله چه د مذکوره شيانو په پيدا کولو قادر دے، هغه يقيناً دا طاقت لري چه هغه تمام انسانان دوباره ژوندي کړي، او د محشر په ميدان کښ ئے راجمع کړي او هغوئ له د هغوئ د عملونو بدله ورکړي۔

| فَإِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَىٰ ﴿٣٤﴾ يَوْمَ يَتَذَكَّرُ الْإِنسَانُ مَا |
|---|
| نو کله چه راشي هنګامه لويه۔ په دغه ورځ به يادوی انسان هغه عمل |
| سَعَىٰ ﴿٣٥﴾ وَبُرِّزَتِ الْجَحِيمُ لِمَن يَرَىٰ ﴿٣٦﴾ فَأَمَّا مَن |
| چه دهٔ کړيدے۔ او ښکاره به کړيشي جهنم هغه چا ته چه وينی ئے۔ پس هغه چا |
| طَغَىٰ ﴿٣٧﴾ وَآثَرَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا ﴿٣٨﴾ فَإِنَّ الْجَحِيمَ هِيَ الْمَأْوَىٰ ﴿٣٩﴾ |
| چه سرکشي اُوکړه۔ او غوره ئے کړو ژوند دنيوی۔ نو يقيناً جهنم ځائے د اُوسيدو ددهٔ |
| وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ |
| دے۔ او هغه څوک چه اُوبريدو د اُودريدو د رب ددهٔ نه او منع ئے کړو نفس خپل |

| عَنِ الْهَوٰى ﴿۴۰﴾ فَاِنَّ الْجَنَّةَ هِىَ الْمَاْوٰى ﴿۴۱﴾ |
| --- |
| د خواهش نه۔ نو یقیناً جنت ځائے د اُوسیدو دده دے۔ |

**تفسیر:** ربط :

په مخکنو آیتونو کښې د مرګ نه پس ژوند باندے ګنړ دلائل پیش کړے شول، اُوس د قیامت په ورځ د هغه خلقو انجام بیانیږی چه هغوئ د داسے ظاهر او ښکاره حقیقت نه انکار کوی۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه کله هغه عظیم ترین آفت راښکاره شو چه د هغے نوم قیامت دے، چه ددے نه د قریشو کافران انکار کوی، نو د هر انسان مخے ته به د هغهٔ تمام اعمال پیش کړے شی، او هغه به خپل یو یو عمل رایاد کړی، او کافر ته به یقین راشی چه همدا هغه ورځ ده چه ددے نه به دهٔ انکار کولو، او جهنم به د تمام محشر والو مخامخ کړے شی، چه دا به د جهنمیانو نه یوه نوریٔ جوړولو دپاره د خپل ربّ د حکم په انتظار وی، او ددے په لیدلو سره به جنتیان د خپل رب د احسان شکر اداء کړی، او د جهنمیانو غم او د نجات نه نا امیدی به د حد نه تجاوز وکړی۔

**الطَّآمَّةُ الْكُبْرٰى:** طامة د طَمٌّ نه دے، اُوچتوالی او ډک والی ته وائی۔ او طامه په اصل کښې د اُوبو هغه سیلاب ته وائی چه کوهیان او کندے وغیره هرڅه ډک کړی۔

یعنی داسے مصیبت چه په هر څیز باندے به احاطه وکړی، او د هر مصیبت نه به اُوچت وی۔ دارنګه اَلدَّاهِیَةُ الَّتِیْ لَا تُسْتَطَاعُ۔ هغه مصیبت او آفت ته وائی چه د هغے څوك طاقت د برداشت نشی لرلے۔

دارنګه دا د طَمٌّ نه دے په معنیٰ دډیرے چاړا کیدو سره، او کله چه په انسان باندے ډیر سخت مصیبت راشی، نو ژبه کار پریدی، انسان پکښې چاړا شی، ځکه چه دماغ کار پریدی۔

دلته دا یا د قیامت نوم دے۔ یا دویمے شپیلئ ته وائی، دواړه یو بل ته نزدے دی۔ ځکه چه طامّه چه شروع شی نو سمدست قیامت به راشی۔

**یَتَذَكَّرُ:** پدے ورځ به هر انسان ته د عمل پته ولے لګی ځکه چه الله تعالیٰ چه انسان سره حساب کوی نو په عمل ئے کوی، د یو عمل بنهٔ وو نو د عرش د سوری لاندے ولاړ

دے، او د بل عمل خراب وو، نو په مصیبتونو اخته دے، نو هر انسان به وپیژنی چه اعتبار خو عملونو لره دے۔

پدے وجه انسان ډیر جاهل دے چه کوم شے د فائدے دے چه هغه عمل دے د هغے غم ورسره نشته او کوم شے چه بے فائدے دے د هغے ورسره ډیر فکر دے۔

سَعٰی: سعی لفظ ئے ورله ولے استعمال کړو؟ نو د سعی معنیٰ ده اَلْاِهْتِمَامُ بِالْعَمَلِ۔ د یو عمل اهتمام کول دی۔ نو ددے نه معلومه شوه چه هغه عمل باندے به فیصله وی چه انسان په اراده سره کړے وی، او په غیر اختیاری اعمالو باندے فیصلے نۀ کیږی۔

یو انسان غیر اختیاری یو نیک عمل وکړی، نو هغے کښې اجر نشته، او که یو بد عمل ترے غیر اختیاری وشی نو سزا پرے نشته۔

نو ددے نه معلومیږی چه د عمل دپاره به سعی (اهتمام) کوی۔ نو سعی مقصودی شے دے۔

وَبُرِّزَتِ الْجَحِیْمُ: اُوس د جهنم تذکره او د هغے دوه اسبابه، او بیا جنت او د هغے دوه اسبابه ذکر کوی۔ یعنی په دے ورځ به د حق او باطل فیصله کیږی، محشر والا مومنان او کافران به په دوو ډلو کښې تقسیم شی، او د جهنم او جنت نه سوئ به بله کومه دریمه استوګنه نۀ وی۔

لِمَنْ یَرٰی: هر هغه څوك چه لیدل کولے شی نو هغه به جهنم وینی۔

فَاَمَّا مَنْ طَغٰی: یعنی چا چه په دے دنیا کښې د الله تعالیٰ نه سرکشی کړے وی، کبیره ګناهونه ئے کړی وَی، دنیوی ژوند ئے په آخرت باندے غوره کړے وی، ددۀ ټول کوشش د همدے د حاصلولو دپاره وی، او آخرت ئے هیر کړے وی، په دے ورځ به ددۀ استوګنه جهنم وی۔

وَآثَرَ: دا وروسته خکه وائی چه څوك دنیا غوره کړی په آخرت باندے نو هغۀ کښې سرکشی راځی، کفر، شرك، دهریت، زنا، غلا، قتل وقتال، فساد او کبر ددے په وجه کیږی۔

د دنیا غوره کول یو په اتباع د شهواتو وی، یعنی شهواتو پسے روان شی، او د الله تعالیٰ حکمونه مات کړی۔ او د دنیا د غوره کولو اعلیٰ او ادنیٰ مرتبے هم شته۔

ادنیٰ مرتبه ئے دا هم ده چه بعض اوقاتو کښې مستحب اعمال پریخودل په حلال

شهواتو باندے، پدے باندے اگرکه الله تعالیٰ بنده نهٔ راګیروی لیکن مرتبه ئے کمیږی لکه یو تن د الله تعالیٰ عبادت پریدی، او په مباحو کښې ولګیږی نو دا هم یو نوعه د دنیا غوره کول دی۔ او غټ غوره کول دا دی چه انسان دنیا غوره کړی، مونځ روژه، زکاة او حج وغیره، د جمعے مونځونه پریدی، او دارنګه د الله تعالیٰ توحید او دین پریدی۔

اَلْجَحِيْمَ: دا غټ اُور ته وائی۔

وَاَمَّا مَنْ خَافَ: دا دویم فریق بیانوی۔ او چا چه د الله تعالیٰ ویرے له په خپل زړهٔ کښې ځائے ورکړے وی، او دے ایمان سره ئے په دنیا کښې ژوند تیر کړے وی چه دے به د خپل رب مخے ته د محشر په میدان کښې ودریږی، او ددے ایمان د اثر د وجے نه دهٔ خپل ځان د نفس د خواهش د تابعداریٔ نه لرے ساتلے وی، په دے ورځ به ددهٔ د اوسیدو ځائے جنت وی، چه د هغے نعمتونه نهٔ کومے سترګے لیدلی دی، نهٔ کوم غوږ آوریدلی دی، او نهٔ د کوم انسان زړهٔ د هغے خیال او تصور کولے شی۔

مَقَامَ رَبِّهٖ: (یعنی د پیشیٔ د رب نه)

(۱) مقام مصدر میمی دے په معنیٰ د قیام سره، او دا مضاف دے مفعول ته، او دا په آخرت کښې مراد دے یعنی ودریدل مخامخ رب خپل ته په ورځ د حساب کښې۔

(۲) یا دا مصدر مضاف دے فاعل ته۔ او د قیام نه مراد علم دے یعنی یریږی د ودریدو او د علم د رب ددهٔ نه په دهٔ باندے۔ یعنی دے نه یریږی چه الله تعالیٰ مے په سر ولاړ دے هغه ما وینی، زهٔ ولے دا ګناه وکړم۔ نو څکه وریسے وائی :

وَنَهَى النَّفْسَ: یره سبب دے د منع کولو د نفس د ګناهونو او د خواهشاتو نه۔

سهل بن عبد الله التستریؒ وائی :

د خواهش پریخودل د جنت چابی ده، نو دارنګه د خواهش تابعداری د ګناهونو چابی ده۔

او خوف د انسان د زړه نه خواهشات وباسی۔

ابراهیم بن سفیانؒ وائی : مَا سَكَنَ الْخَوْفُ قَلْبًا اِلَّا اَحْرَقَ مَوَاضِعَ الشَّهَوَاتِ مِنْهُ۔

د الله تعالیٰ خوف چه کله یو زړه ته ننوزی نو د خواهشاتو ځایونه ترے وسیزی۔

ابو سلیمانؒ وائی : مَا فَارَقَ الْخَوْفُ قَلْبًا اِلَّا خَرِبَ۔

کله چه زړه نه یره د الله تعالیٰ وځی نو هغه خراب شی۔

(مدارج السالکین ۵۱۳/۱، واحیاء علوم الدین ۱۶۲/۴، والرسالة القشیریة)

کـه یـو تن کښې یره وی، او خواهشات نهٔ پریږدی، نو دا کمال نهٔ دے، او یو تن خواهشات پریـږدی خـو د الله نهٔ یریږی نو دا هم کمال نهٔ دے، بعض کافران شراب نهٔ څکی، زنا نهٔ کوی او غـلا نـهٔ کـوی هسے د خپـل سرې توب یا د صحت یا د کاروبار د وجه نه چه هغه خراب نشی، نو دا څه کمال نهٔ دے، کمال دا دے چه د الله د یرے د وجه نه ګناه پریږدے۔

اَلۡمَاۡوٰی: یعنی اِستوګنه د دویٔ ده۔

| يَسۡـَٔلُوۡنَكَ عَنِ السَّاعَةِ اَيَّانَ مُرۡسٰهَا ﴿٤٢﴾ |
|---|
| تپوس کوی دوی تا نه په باره د قیامت کښې چه کله به وی اُودریدل د هغے۔ |
| فِيۡمَ اَنۡتَ مِنۡ ذِكۡرٰٮهَا ﴿٤٣﴾ اِلٰى رَبِّكَ مُنۡتَهٰٮهَا ﴿٤٤﴾ |
| په څه کښې یٔ تهٔ د یاداشت د هغے نه۔ رب ستا ته انتهاء د علم د هغے دے۔ (ګرځیدل |
| اِنَّمَاۤ اَنۡتَ مُنۡذِرُ مَنۡ يَّخۡشٰٮهَا ﴿٤٥﴾ |
| د علم د هغے دے) یقیناً تهٔ یره ورکونکے یٔ هغه چا ته چه یریږی ددے نه۔ |
| كَاَنَّهُمۡ يَوۡمَ يَرَوۡنَهَا |
| ګویا کهٔ ګوی په هغه ورځ چه وبه وینی هغے لره (ګمان به کوی) |
| لَمۡ يَلۡبَثُوۡۤا اِلَّا عَشِيَّةً اَوۡ ضُحٰٮهَا ﴿٤٦﴾ |
| چه نهٔ وو ایسار شوی دوی مګر مازیګری یا څاښت وخت د هغے۔ |

**تفسیر**: انسانانو له د قیامت د ورځے د ویرے او خطرناکۍ زیات احساس ورکولو دپاره الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ تـه خطاب کوی، فرمائی چه د قیامت منکرین تانه پوښتنه کوی چه آخر هـغـه درنـه او ګرانه ورځ به کله راځی؟ حالانکه تهٔ ددے په باره کښې هیڅ هم نهٔ پیژنے، ددے د راتلو وخت خو صرف ستا رب ته معلوم دے۔

مُرۡسٰهَا: اَیۡ قِیَامُهَا۔ یعنی ددے قائمیدل۔

فِيۡمَ اَنۡتَ مِنۡ ذِكۡرٰٮهَا: اَیۡ لَسۡتَ اَنۡتَ مِنۡ ذِکۡرَاهَا فِیۡ شَیۡءٍ۔

یـعـنـی تهٔ د هغے د یادولو نه په هیڅ شی کښې نهٔ یٔ۔ یعنی تا ته هغه یاده او معلومه نهٔ

ده چه ته ئې دوی ته ياده كړې. يعنی دا ستا فن او كار نهٔ دے چه خلقو ته به د قيامت د ورځے تعيين كوے.

إِلٰى رَبِّكَ مُنْتَهٰاهَا: جار مجرور مقدم شو د تخصيص دپاره، او منتهیٰ نه مُنْتَهٰی عِلْمِهَا مراد دے. يعنی خاص ستا رب ته انتهاء د علم د قيامت ده، يعنی ټول خلق علمونه الله ته واپس كوی چه په قيامت خبردار صرف او صرف الله تعالیٰ دے.

إِنَّمَا أَنْتَ مُنْذِرُ: الله تعالیٰ نبی كريم ﷺ ته فرمائی چه ستا كار پيغام رسول دی، ستا ذمه داری دا نهٔ ده چه خلقو ته د قيامت د راتلو يقينی وخت وښائے، ددے علم خو صرف ستا د رب سره دے.

د إِنذار نه مراد اخبار او إعلام دے، يعنی تهٔ خبر او انذار هغه چا ته وركوے چه هغه د قيامت نه يريږی يعنی ستا انذار هغه چا ته فائده وركوی چه د قيامت نه يره كوی. لكه همدا خبره په ګڼړو آيتونو كښں ذكر ده.

﴿فَذَكِّرْ بِالْقُرْآنِ مَنْ يَّخَافُ وَعِيْدِ﴾ (ق : ٤٥) ﴿إِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمٰنَ﴾ (يس : ١١) ﴿فَذَكِّرْ إِنْ نَّفَعَتِ الذِّكْرٰى، سَيَذَّكَّرُ مَنْ يَّخْشٰى﴾ (اعلیٰ : ٩/١٠).

كَأَنَّهُمْ يَوْمَ: اُوس بيا د قيامت د سختيو باربار احساس وركولو دپاره الله تعالیٰ وفرمايل چه د قيامت منكرين چه په خپلو سترګو دا اووينی، نو د ډيرے ويرے نه به دوئ ته داسے معلوميږی چه دوئ په دنيا كښں يا په خپلو قبرونو كښں صرف يو مابنام يا يو سهار پاتے شوی وو.

يَوْمَ يَرَوْنَهَا: ضمير ساعة (قيامت) ته راجع دے.

لَمْ يَلْبَثُوْا: دلته يَظُنُّوْنَ فعل پټ دے. يعنی دوی به دا ګمان كوی.

عَشِيَّةً: دا د ماسپښين نه تر غروب د نمر پورے وخت ته وئيلے شی.

أَوْ ضُحَاهَا: سهار د مازيګر. نو هَا ضمير عَشِيَّة ته راجع دے.

مازيګر ته ئې اضافت وكړو ځكه چه د ضحیٰ اطلاق كله په ټوله ورځ باندے كيږی لكه په سورة الضحی كښں راځی. يعنی د مازيګر په مقابله كښں چه د سهار كوم وخت دے. او دا دواړه تقريباً په اندازه كښں برابر دی.

يعنی دوی خو په دنيا باندے نازيږی او كبر او غرور كوی خو بيا به ورته د دنيا ژوند دومره لږ ښكاره شی، لكه په سورة احقاف (٣٥) آيت كښں ورته (سَاعَةً مِّنْ نَّهَارٍ) وئيلے

شویدے۔ او هغه ساعت د ورځے عَشِيَّة ته هم شامل دے او ضحیٰ ته هم۔

وبالله التوفیق. والله اعلم.

## امتیازات او خصوصیات

١- پدے سورت کښې ذکر د نازعات ملائکو وشو په قبض د ارواحو۔

٢- او د ملائکو ناشنا صفات پکښې ذکر دی۔

٣- تزکیة النفس ته پکښې دعوت ورکړے شویدے۔

٤- د نفخه ثانیه نوم ئے الطامة الکبریٰ ایخودے دے۔

٥- او د جنت او د جهنم دوه دوه اسبابه خودلے شویدی۔

ختم شو تفسیر د سورة النازعات په رمضان (١٧) او تصحیح په ورځ د عید الاضحیٰ۔

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

| آیاتها (۴۲) | (۸۰) سُوۡرَةُ عَبَسَ مَكِّيَّةٌ | رکوعاتها (۱) |
|---|---|---|

سورهٔ عبس مکی دے، په دے کښې دوه څلویښت آیتونه او یوه رکوع ده

## تفسیر سورة عبس

**نوم :** (۱) دے ته یو سورتِ [عَبَسَ] وائی (۲) ددے نوم [السَّفَرَة] (۳) او سورة الاعمیٰ (٤) او [الصَّاخَّة] هم راغلے۔

**د نازلیدو زمانه :** دا سورت د ټولو په نیز مکی دے۔

ابن مردویهٔ او بیهقیؒ د ابن عباس ﷺ نه روایت کړی دی چه سورهٔ عبس په مکه کښې نازل شوے۔ ابن مردویهٔ د ابن زبیر ﷺ نه هم دا نقل کړی دی۔

**د سورت مقصد**

اَلزَّجۡرُ وَالتَّوۡبِيۡخُ لِلۡمُعۡرِضِيۡنَ عَنۡ آيَاتِ اللّٰهِ سُبۡحَانَهٗ وَعَنۡ تَزۡكِيَةِ النَّفۡسِ۔

پدے سورت کښې الله تعالیٰ رټنه ورکوی هغه چا ته چه د الله تعالیٰ د آیتونو نه اعراض کوی، برابره ده آیتونه متلوّه دی، او که آیات مشهوده دی۔ او خپل ځان نهٔ پاکوی۔

ځکه چه پدے آیتونو سره خو د انسان نفس پاکیږی، او یو تن ترے اعراض کوی او ځان نهٔ پاکوی نو دا خو د سختے رټنے لائق دے۔

وَالۡبِشَارَةُ لِمَنۡ اَقۡبَلَ اِلَيۡهَا وَزَكّٰى نَفۡسَهٗ ۔ او ددے بالمقابل چا چه د الله د آیتونو نه اعراض نهٔ دے کړے بلکه دے آیتونو ته متوجه شویدے او خپل ځان ئے پاك کړیدے نو د هغوی دپاره زیرے ورکوی۔

ددے وجه نه په مینځ کښې به دوه ډلے جوړه وی، (وجوه یومئذ مستبشرة الخ) او د هغوی صفتونه او جزاء ګانے او سزاګانے۔

او د اعراض دوه شکلونه ئے خودلی دی، یو د قرآن کریم او د رسول کریم ﷺ نه اعراض کول، او بل د ادله او نعمتونو نه اعراض کول، چه دا چا راکړیدی دے ته فکر نهٔ کوی نو پدے باندے رد کوی۔

پدے کښې ئے رسول الله ﷺ ادب د تعلیم هم ورکړے دے۔ هغه ادب دا دے چه د دین په بیانولو کښې به تقدیم د منیبینو کولے شی په معاندینو (ضدیانو) باندے۔

ځوک چه انابت لری نو هغوی ته دین بیانول مخکښې دی په نسبت د هغه خلقو چه هغوی ضدیان دی۔ نو داسے مهٔ کوه چه معاندینو ته ځان نزدے نزدے کوے، او مُنیبین شا ته غورزوے۔

نو ګویا که خلاصه ئے دا شوه زجر او توبیخ هغه کسانو ته چه اعراض کوی د الله تعالیٰ د آیتونو متلوه او مشهوده نه، او د تزکیه نفس نه اعراض کوی، ځان نهٔ پاکوی، او زیرے ورکوی هغه چا ته چه متوجه کیږی د الله آیتونو او د خپل نفس تزکیه ته، سره د بیان د جزاء او عقوبت د هغوی او سره د بیان د ادب د تعلیم رسول الله ﷺ ته۔

## د سورت شان نزول

د رسول الله ﷺ حرص وو د مشرکانو په هدایت باندے، نو یوه ورځ څه مشران مشرکان راغلی دی لکه ابوجهل، ولید، عتبه، شیبه وغیره۔ د رسول الله ﷺ په یو مجلس کښې ناست دی، او د الله رسول ﷺ ورته خبرے کوی۔

نو هغوی په استغناء باندے ماړه ناست دی، هیڅ پرواه ئے نشته، د دین خبرے ورته هسے ګپ بنکاره کیدلے، او بل طرفته د رسول الله ﷺ حرص وو چه دا خلق هدایت قبول کړی چه الله تعالیٰ ئے د اُور نه خلاص کړی ځکه چه دا خو جاهلان دی نهٔ پوهیږی۔

نو پدے کښې عبد الله بن ام مکتوم ﷺ دے مجلس ته راغے چه په سترګو ړوند وو، او د رسول الله ﷺ نه ئے د دین د مسائلو تپوس شروع کړو۔ نو رسول الله ﷺ پدے باندے خفه شو (مګر اخلاق ئے ډیر اُوچت وو نو هغه ئے منع نکړو چه غلے کینه، چپ شه) صرف رسول الله ﷺ ته خفګان ورسیدو، او دا قانون وی چه کله زړه خفه شی نو په مخ باندے اثر وشی نو د رسول الله ﷺ په مخ باندے اثر وشو تندے ئے راټریو شو

(مقصد ئے دا وو چه دا خو زمونږ خپل ملګرے دے، مؤمن دے، بل وخت به تپوس

وکړي، او بـل طرفتـه دا مجرمان راغلي دي، دوي ته بيان پکار دے چه دوئ الله تعالیٰ ښه کړي) دهٔ لـه هـم مـنـاسبـه نـهٔ وه چه پـدے وخـت کښې دا تپوس نه کوي، ليکن دا غريب مـعـذور وو، ړوند وو، د مجلس حقيقت ورته نهٔ وو معلوم۔ چه ګنے رسول الله ﷺ په داسے حالت کښې مصروف دے۔

نـو پـدے کـښې الله تـعـالیٰ دا سورت نازل کړو او الله تعالیٰ پکښې خپله استغناء بيان کړه چه زهٔ غني يم د خلقو د ايمان نه، نو تهٔ هم ځان د دوئ نه مستغني کړه، صرف بيان ورته وکـړه، څوك چه الله تعالیٰ طرفته انابت (رجوع) کوي نو الله تعالیٰ ورتـه هدايت کوي، نو هـغـهٔ تـه دعوت ورکړه، او څوك چه نهٔ راځي او اعراض کوي نو هغه پريده، الله تعالیٰ به ئے هلاك کړي خپل کار به کوي۔ (قُتِلَ الْإِنْسَانُ) کښې ورته الله تعالیٰ ښيرے کړيدي۔

نـو پـه هـغـه بانـدے به رد وکړي چه دا انسان ځان ته نهٔ ګوري چه الله تعالیٰ دومره دلائل ودرولـي دي او دے بيـا هـم عبرت نهٔ اخلي، نو ددے دلائلو باوجود تهٔ ورسره دومره خواري مهٔ کوه۔ که دلائل نهٔ وے بيا به دے ورسره خواري کولے۔

پـدے کـښې اشاره وه چه هـمـدغـه صـحـابي ته دين بيان کړه، او د مشرکانو نه اعراض وکړه، دومره چاپلوسي ئے مهٔ کوه۔دا ادب وو رسول الله ﷺ ته او بيا هر داعي ته دے۔

پـه روستـو زمـانه کښې به رسول الله ﷺ ددے عبـد الله بن ام مکـتـوم ﷺ ډيـر ادب کولو، کله چه به مجلس ته راغے نو داسے به ئے ورته وئيلے [مَرْحَبًا بِمَنْ عَاتَبَنِيْ فِيْهِ رَبِّيْ]۔

هغه چا ته مرحبا ده چه الله تعالیٰ زهٔ د هغهٔ په باره کښې ملامته کړے يم۔

(قرطبيؒ والبغويؒ)

دا وه خلاصه د رواياتو پدے باب کښې۔

او دا صحابي رسـول الله ﷺ پـه مسجد نبوي بانـدے ديارلس کرته امام مقرر کړے وو کله چه به جهادونو ته تللو نو دا به ئے نائب مقرولو۔

ددے نـه مـعـلـوميږي چـه د ړونـد سړي امامت بالکل جائز دے، او هيڅ کراهت پکښې نشته، او کوم علماء کرامؒ چه ورته مکروه وائي نو د هغوي قول د رسول الله ﷺ د صحيح حديث مخالف دے۔ رحم الله الجميع۔

او دا د ټولو مفسرينو تفسير دے۔

پـدے وخـت کـښې څـه مبتدعين او خوارج وائي چه دا خبره صحيح نهٔ ده چه رسول الله

ﷺ تندے تریو کړو ځکه چه دا خو د اُوچتو اخلاقو خلاف ده۔

**جواب** دا دے چه رسول الله ﷺ بشـر وو، او هغهٔ ته به غصه ورتلله، او دا هم د الله تعالیٰ دپاره وه۔ کـلـه نا کله ئے بښیرے کړیدی، او دا ئے هم وئیلی دی چه زهٔ بشر یم کله به یو تن بښیرے وکړم او هغه به لائق نهٔ وی نو اے الله ! دا به د هغه دپاره نعمت گرځوے۔ الله تعالیٰ سره ئے دا شرط لگولے وو۔ او دلته الله تعالیٰ د خپل نوم ځو مره ادب کړیدے چه مخامخ ئے ورته نهٔ دی وئیلی چه (عَبَسۡتَ وَتَوَلَّيۡتَ) تا تندے تریو کړو او مخ دِے واړه ولو۔

ځـکـه چه پدے لفظ کښ د رسول الله ﷺ خـفـگـان راتـلـلو۔ بلکه هغه ته ئے په ډیر ښه انداز سره تعلیم ورکړو۔

| عَبَسَ وَتَوَلّٰى ﴿١﴾ أَنۡ |
|---|
| خفه شو (تندے تریو کړو نبی ﷺ) او مخ ئے اُوگرځوو۔ ددے وجه نه |
| جَآءَهُ الۡأَعۡمٰى ﴿٢﴾ وَمَا يُدۡرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكّٰى ﴿٣﴾ |
| چه راغے ورته ړوند۔ او څه شی پوهه درکړیده تا له چه کیدیشی چه دے به پاک |
| أَوۡ يَذَّكَّرُ فَتَنۡفَعَهُ الذِّكۡرٰى ﴿٤﴾ أَمَّا مَنِ |
| شی۔ یا به نصیحت واخلی نو فائده به ورکړی ورته نصیحت۔ هر چه هغه څوك دے |
| اسۡتَغۡنٰى ﴿٥﴾ فَأَنۡتَ لَهُ تَصَدّٰى ﴿٦﴾ |
| چه ځان ئے بے پروا کړیدے۔ نو تهٔ هغه ته ورمخکښ کیږے۔ (تهٔ هغه ته ځان پیش کوے)۔ |

**تفسیر** : تـرمـذیؒ، ابـن الـمنذرؒ، ابن حبانؒ، حاکمؒ او ابن مردویهؒ د عائشے رضی الله عنها نـه روایت کړی دی چه ﴿عَبَسَ وَتَوَلّٰى﴾ د ابـن ام مـکـتـومؓ (نابینا) په باره کښ نازل شوے وو۔ دا صحابی رسول الله ﷺ خواته راغے، او هغهٔ ته ئے اوئیـل : اے د الله رسوله ! تهٔ ماته د رُشـد او هدایت څهٔ خبرے اوښایه، او نبی ﷺ سره (پـه دے وخت کښ) د مـکـے د مشرکانو سرداران ناست وو، دے وجے نه نبی ﷺ د هغهٔ نه مخ واړولو، نو دا سورت نازل شو۔

عبد الـرزاقؒ، عبد بن حُمیدؒ او ابو یعلیٰ د انس ﷺ نـه روایـت کړی دی چه کله عبد الله بن ام مکتوم ﷺ نبی ﷺ خـوالـه راغـے نو هغهٔ د اُبی بن خلف سره خبرے کولے، دے وجے

نه هغهٔ د هغهٔ نه مخ واړولو، نو ﴿ عَبَسَ وَتَوَلّٰی اَنْ جَآءَهُ الْاَعْمٰی ﴾ نازل شو۔
نبی ﷺ به ددے نه پس د ابن ام مکتوم ؓ عزت کولو۔ په روایتونو کښې راغلی دی چه دا نابینا صحابی د خدیجے رضی الله عنها د ماما څوی وو، او د مکی دور په شروع کښې ئے اسلام راوړے وو، او په مدنی دور کښې نبی ﷺ د زیاتره غزواتو په وخت هم دا په مدینه کښې خپل خلیفه او نائب جوړ کړے وو۔
الله تعالیٰ وفرمایل چه نبی کریم ﷺ نابینا صحابی دپاره خپل تندے تریو کړو، د هغهٔ نه ئے مخ واړولو، او هغهٔ سره ئے خبرے کول برداشت نهٔ کړل، چه هسے نهٔ داسے اوشی چه دهٔ طرفته توجه کولو سره د قریشو هغه مشران بد وګنړی چه د هغویٔ مخے ته نبی ﷺ د ایمان او اسلام لګیا دے تشریح کوی، د هغویٔ ﷺ دا اعراض دعوتی نقطهٔ نظر سره نفعمن نهٔ وو، څکه چه هغه په ډیر اخلاص او رغبت سره د قرآن او سنت تعلیم حاصلولو دپاره راغلے وو، د هغهٔ خواهش وو چه د نبی ﷺ نه علم حاصل کړی، او د خپل روح تزکیه وکړی، د بدو اخلاقو نه ډډه وکړی، او ښائسته اخلاق اختیار کړی، یا د هغهٔ نه د نصیحت خبرے حاصلے کړی، او د هغے نه فائده واخلی۔
او کوم کس چه په خپل دولت او قوم کښې د خپلے مرتبے او عزت د وجے نه څټ کوږ کړے دے، او د ایمان او اسلام او د وحی د خبرو آوریدو دپاره تیار نهٔ دے، هغهٔ طرفته نبی ﷺ ورمائله شی او هم هغهٔ طرفته پوره توجه وکړی، حالانکه که دغه متکبر اسلام نهٔ قبلوی، او د هغهٔ نفس نهٔ پاکیږی، نو ستا په دے کښې څهٔ نقصان دے، ستا ذمه داری خو صرف پیغام رَسَول دی، دے وجے نه کوم کافران چه د اسلام نه بے پروائی ښکاره کوی تهٔ د هغویٔ فکر مهٔ کوه۔
امام رازیؒ د ټولو مفسرینو اتفاق نقل کړیدے پدے خبره چه په عَبَسَ او تَوَلّٰی کښې ضمیرونه نبی کریم ﷺ ته راجع دی، او د اعمیٰ نه مراد ابن ام مکتوم ؓ دے۔
او قاضی عیاضؒ په شفاء کښې لیکلی دی چه عَبَسَ او تَوَلّٰی کښې ضمیرونه هغه کافر ته راجع دی چه رسول الله ﷺ د هغه سره خبرے کولے، او باقی خطابات نبی کریم ﷺ ته دی۔
لیکن د مخکنی حدیث په وجه غوره دا ده چه دا ټول ضمیرونه رسول الله ﷺ ته راجع دی۔ او دغه شان د روستو سیاق نه معلومیږی۔
وَمَا یُدْرِیْكَ لَعَلَّهٗ یَزَّكّٰی : یعنی تهٔ څه پوهه کړے ئے ددهٔ په حال باندے تردے چه تهٔ د

هغه نه مخ اړوے۔
لَعَلَّهُ يَزَّكَّى: دا جمله مستأنفه ده پدے كښ د ابن ام مكتوم ﷺ داسے شان او حالت بيانوي چه هغه د مخ اړولو مناسب نهٔ دے، او هغه دا چه دے په نيك اعمالو سره د گناهونو نه ځان پاكول غواړي۔ او په لَعَلَّ سره راوړو كښ دا فائده ده چه د كوم شخص د تزكيه اُميد وي، نو د هغهٔ نه اعراض كول مناسب نهٔ دي۔
اَوْ يَذَّكَّرُ: يا به عبرت واخلي۔ (اَوْ) د مانعة الخلو دپاره دے۔

## يزكى او يذكر ترمينځ فرقونه

١– د يَزَّكّٰى او يَذَّكَّرُ فرق دا دے چه يَزَّكّٰى دے ته وائي چه خبره واوري، نو سمدست عمل وكړي او ځان پاك كړي۔ او يَذَّكَّرُ دے ته وائي چه خبره واوري او په هغے باندے سوچ كوي، او په آرام په هغے باندے عمل شروع كړي۔ لكه سړے اول عبرت واخلي چه دا خو ډيرے ښے خبرے وشوے عمل پرے پكار دے، نو روستو بنهٔ شي۔
٢– يَزَّكّٰى: تزكيه د عمل سره لگي او يَذَّكَّرُ د عقيدے سره لگي۔ يعني نفس به ئے پاك شي نو گناهونه به پريدي او يَذَّكَّرُ نصيحت او عبرت به واخلي نو عقيده به ئے برابره شي۔
٣– تزكيه، طهارت د نفس دے د حرامو نه، او تذكر عمل كول دي په اوامرو د الله تعالىٰ باندے۔
٤– دارنگه تزكيه ايمان راوړل دي بغير د احتياج نه وعظونو او دليلونو ته، او تذكير غوږ كيخودل دي وعظونو او دليلونو ته او بيا په هغے باندے عمل كول دي۔ بناء پدے فرق سره (اَوْ) د انفصال حقيقي دپاره دے۔ يا د مانعة الجمع دپاره دے۔ (احسن الكلام)
مَنِ اسْتَغْنٰى: يعني څوك چه په سبب د خپل مال او مشرئ سره ځان د الله تعالىٰ نه بے پرواه گنړي او د هغهٔ ته او د هغهٔ دين ته هيڅ احتياج نهٔ محسوس كوي۔ لكه د بعض كسانو دا مرض دے چه الله تعالىٰ ته او د هغهٔ دين ته خپل ځان محتاج نهٔ گنړي، بلكه په نبي ﷺ او په علماء كرامو باندے تكبر كوي۔
استغنى باب استفعال دے، استفعال ئے ددے دپاره راوړو چه انسان په اصل كښ غني نشي كيدے ځكه چه غني خو بے حاجته وي او انسان په هر څه كښ محتاج دے ليكن

دے ځان قصداً بے حاجته بنکاره کړی۔
تَصَدّٰی: تَصَدِّیٔ (ځان پیش کول) په اصل کښې د چا خبرے ته غوږ کیخودل دی۔ او تَصَدّٰی په اصل کښې تَتَصَدَّدُ دے، د صَدٌّ نه اخستے شویدے، یو څیز ته مخامخ کیدل او پیش کیدل دی۔
یا دا د صَدیٰ نه دے، انګیٔ ته وائی۔ یعنی هغه آواز چه په خالی او سختو ځایونو کښې بیرته آوریدلے شی۔ مراد ترے نه اِصغاء (غوږ کیخودل او توجه ورکول دی)۔

| وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى ﴿۷﴾ وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ |
|---|
| او نشته په تا باندے څه ګناه چه دے ځان نهٔ پاکوی۔ او هر چه هغه څوك چه راغے تا ته |
| يَسْعٰى ﴿۸﴾ وَهُوَ يَخْشٰى ﴿۹﴾ فَاَنْتَ عَنْهُ تَلَهّٰى ﴿۱۰﴾ كَلَّا |
| چه منډے وهی۔ او دے یریږی (د الله نه)۔ نو تهٔ د هغهٔ نه ځان غافله کوے۔ هیڅرے داسے |
| اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ ﴿۱۱﴾ فَمَنْ شَآءَ ذَكَرَهٗ ﴿۱۲﴾ |
| نهٔ ده پکار۔ یقیناً دا (آیتونه) نصیحت دے۔ نو د چا چه خوښه وی ددے نه دِے عبرت واخلی۔ |

**تفسیر** : وَمَا عَلَيْكَ اَلَّا يَزَّكّٰى : یعنی کوم کافر انسان چه د خپل نفس تزکیه نهٔ کوی، ایمان نهٔ راوړی او هدایت نهٔ قبلوی، او د ګناهونو نه ځان نهٔ بچ کوی، نو په تا باندِے د هغهٔ هیڅ ګناه نشته، تا خو خپله ذمه واری په بیان سره فارغه کړیده۔
وَاَمَّا مَنْ جَآءَكَ: پدے کښې الله تعالیٰ نبی کریم ﷺ نور ملامته کوی، فرمائی چه کوم کس د اِلٰهی خوف او تقویٰ د وجے نه ستا خواته په منډه راغلے، دے دپاره چه تهٔ هغهٔ ته د دین تعلیم ورکړے، او په هغهٔ باندے په پیغمبرانه نصیحتونو سره پیرزو وکړے، د هغهٔ نه تا مخ واړولو، او هغه خلقو طرفته متوجه شوے چه هغوئ په کبر او غرور کښې مبتلا دی، او ستا په خبرو باندے غوږ نهٔ ګروی۔
يَسْعٰى : یعنی کوشش کوی په طلب د علم او هدایت کښې، او د دین اهتمام ورسره دے۔
وَهُوَ يَخْشٰى: یعنی دا سعی د وجه د خشیتِ اِلٰهی ده، دنیاوی غرض دپاره نهٔ ده۔
تَلَهّٰى: دا په اصل کښې تَتَلَهّٰى دے، د لَهْو نه دے، ځان په زوره غافل کول د وجه د شغل

نه په بل کار باندے۔

**فوائد** : ۱- حافظ سیوطیؒ په خپل کتاب «الاکلیل» کښې لیکلی دی چه په پورتنو آیتونو کښې الله تعالیٰ د فقیرانو د زړونو ساتلو، د هغویٔ ضرورتونه پوره کولو او په علمی مجلسونو کښې هغویٔ طرفته د متوجه کیدو ترغیب ورکړے دے۔ اھ

«الاکلیل فی استنباط التنزیل»

۲- دے وجے نه د سفیان ثوریؒ په باره کښې راغلی دی چه دده په مجلس کښې به فقیران، امیران جوړیدل۔

۳- دا آیتونه دلیل دے چه نبی کریم ﷺ ته چه الله تعالیٰ د وحی په ذریعه د غیبو کومه خبره هم ښودلے، هغه هغۀ د خپل امت نه نۀ ده پټه کړے۔

د سلفو علماؤ به وئیلے چه که رسول الله ﷺ د وحی څۀ برخه پټولے، نو د خپل ځان په باره کښې به ئے دا ملامتیا خامخا پټه کړے وے۔

٤- ابن ام مکتوم ﷛ سره د نبی کریم ﷺ پورتنے سلوک څۀ د ګناه خبره نۀ وه، ځکه چه هغۀ سره د قریشو لوی لوی سرداران موجود وو، او هغۀ په دے لالچ کښې یو مسلمان له د لږ ساعت دپاره توجه ورنۀ کړه چه شاید دا خلق مسلمانان شی، او د دغه کس د سوال جواب به روستو ورکړو، دے دپاره چه دغه کافران پاتۀ سی۔

په ظاهره کښې د اسلامی دعوت همدا تقاضا وه، او الله تعالیٰ طرفته د عامو دُعاتو دپاره داسے کول مناسب وو، لیکن د الله تعالیٰ په نظر کښې د رسول الله ﷺ سلوک د خپلو صحابوؓ سره ددے نه اعلیٰ او اُوچت کیدل پکار وو، دے وجے نه الله تعالیٰ نبی ﷺ ملامته کړو، یعنی د ملامته کولو سبب غوره کار پریښودل وو، نۀ ګناه کول۔

۵- یَسْعٰی نه معلومه شوه چه د علم طلب به په شوق او منډے سره کولے شی، او همدا عمل الله تعالیٰ ته ډیر محبوب دے۔

٦- دے نه دا هم معلومه شوه چه د الله تعالیٰ په نیز باندے د دین د بیان نه استغناء کول ډیر لوی بد صفت دے، ډیر خلق د جُمعے په ورځ دکانونو کښې ناست وی چه خطبه ختمه شی یا ختمیدو ته نزدے شی نو راروان شی، دا هم ډیر لوی جرم دے چه زمونږ امتِ مسلمه ورسره مخامخ دے۔

**کَلَّا**: دا ردعیه دے، رَدْعٌ عَمَّا وَقَعَ فِیْهِ الْعِتَابُ ۔ یعنی د کوم شی په باره کښې چه ورته

عتاب ورکړے شو نو د هغې نه منع ده.

معنیٰ دا ده: چه اُوس هیڅ کله تاله دا نه دی پکار چه د مسلمانانو فقیرانو او مسکینانو نه مخ واړوے او په کبر او غرور او ضد کښې مبتلا کافرانو طرفته بیخی متوجه شے. یا کَلَّا په معنیٰ د حَقًّا سره دے.

إِنَّهَا تَذْكِرَةٌ: (۱) (هَا) ضمیر دے سورت ته راجع دے. یعنی ددے سورت په مخکنو آیتونو کښې چه کوم نصیحت پروت دے، هغه دا چه الله تعالیٰ طرفته دعوت ورکونکو له د خلقو سره په معامله کولو کښې د برابرئ خیال ساتل پکار دی.

(۲) یا ضمیر ماقبل خصلت او واقعے ته راجع دے، یعنی په دے واقعه کښې د نورو دپاره عبرت دے چه هر کله په داسے سلوك باندے الله تعالیٰ خپل نبی ﷺ ملامته کړو، چه د هغهٔ عظیم مقام د الله تعالیٰ په نیز هر چاته معلوم دے، نو بیا که نور څوك داسے وکړی نو د هغوئ انجام به څهٔ وی.

فَمَن شَاءَ: یعنی د الله تعالیٰ له اړخه دا یو ډیرے لوی نصیحت دے چه ددے نه څوك غواړی په عمل کولو سره فائده پورته کړی.

ذَكَرَهُ: یعنی نصیحت ډے واخلی ددے قرآن نه. یا یاد ډے کړی قرآن لره، او ددے اوامر او نواهی او مواعظو لره او (هٔ) ضمیر تذکره ته راجع دے، په تاویل د ذکر یا د قرآن یا د وحی سره دے.

| فِي صُحُفٍ مُكَرَّمَةٍ ﴿۱۳﴾ مَرْفُوعَةٍ مُطَهَّرَةٍ ﴿۱٤﴾ |
|---|
| (لیکلے شویدے) په پاڼرو عزتمندو کښې. چه اُوچتے کړے شویدی، پاکے کړے شویدی. |
| بِأَيْدِي سَفَرَةٍ ﴿۱۵﴾ كِرَامٍ بَرَرَةٍ ﴿۱٦﴾ |
| په لاسونو د لیکونکو ملائکو کښې دی، چه عزتمند نیکان دی. |

**تفسیر**: پدے آیتونو کښې د پروت نصیحت د عظمت او اهمیت بیانولو دپاره الله وفرمایل چه دا خو د هغه معززو او مکرمو ملائکو په صحیفو کښې لیکلے دے چه په دے کښې د پرتو علمونو او حکمتونو د وجے نه د الله تعالیٰ په نیز ددے ډیر اوچت مقام دے، او دے له صرف پاك ملائك گوتے وروړی، او دا د الله تعالیٰ رسول ته داسے ملائك را

رسوي چه هغه د خپل رب نهايتے خبره منونكي او رشتينے بندګان دي۔
يعني دغه صحيفے د لوح محفوظ نه انبياء كرامو عليهم السلام ته د ډيرو قوي او پرهيزګاره ملائكو په ذريعه رسيږي، چه هغوئ په اِلٰهي وحي كښې د خپل طرفه هيڅ قِسم تصرف نهٔ كوي، او نهٔ شيطانان په دے كښې څهٔ تصرف كوي۔
نو پدے آيتونو كښې د صحيفو درے صفات دي او درے د هغه ملائكو چه حاملين د قرآن دي۔
**فِيْ صُحُفٍ** : دا متعلق دے د مقدر پورے [اَیْ اِنَّهَا تَذْكِرَةٌ كَائِنَةٌ فِيْ صُحُفٍ] دا قرآن تذكره ده چه موجوده ده په صحيفو كښې الخ۔ نو فِيْ صُحُفٍ صفت دے د تَذْكِرَةٌ دپاره۔
يا تقدير داسے دے : (مَكْتُوْبٌ فِيْ صُحُفٍ) دا ليكلے شويدے په صحيفو د ملائكو كښې۔
يا ددے نه صحيفے د ابراهيم او موسىٰ عليهما السلام مراد دي لكه په سورة اعلى (۱۹/۱۸) كښې ذكر دي۔ (فتح البيان)
**مُكَرَّمَةٍ**: عزتمنے دي۔ ددے كرامت د نازلونكي د كرامت په وجه دے، يعني الله كريم دے نو وحي د هغهٔ هم د كرامت والا ده، او كرامت ئے دا دے چه دا صحيفے د علمونو او حكمتونو نه ډكے دي۔
❁ يا لوح محفوظ عزتمند دے نو دغه صحيفے به هم عزتمنے وي۔ ❁ يا دا په لوح محفوظ كښې عزتمنے دي۔ (واحدیؒ عن المفسرين)
**مَّرْفُوعَةٍ**: ۱ - مَرْفُوْعَةُ الْقَدْرِ۔ يعني قدر او عزت او منزلت (مرتبه) ئے اُوچته ده۔
۲ - يا اُوچتے په اووم آسمان كښې پرتے دي۔
۳ - مَرْفُوْعَةٌ عَنِ الشُّبَهِ وَالتَّنَاقُضِ۔ د شبهاتو او تناقضاتو نه پورته دي۔
**مُّطَهَّرَةٍ**: ۱ - مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ۔ د شيطان د مسه كولو نه پاك دي۔ (المحلى)
او صرف پاك ملائك هغے له ګوتے وروړي۔
۲ - مُطَهَّرَةٌ مِنَ الْاَدْنَاسِ۔ د خيرو او ګندونو نه پاك دي۔ (حسنؒ)
**بِأَيْدِيْ سَفَرَةٍ**: سفره جمع د سَافِرٌ ده او سفر كتابت ته وائي۔
نو ددے مطلب دا دے چه دا قرآن په اصل كښې په لوح محفوظ كښې ليكلے شويدے، نو ملائك ورځي او د هغه ځاي نه ليكل كوي، او ځانله ترے قرآنونه ليكي (چهاپ كوي)

او بیا همدا قرآن ملائك هم لولي، لكه څنګه ئې چه انسانان لولي، ملائك په مانځه كښې همدا فاتحه او همدا سورتونه لولي۔ الله تعالیٰ پدے مكلف كړيدي چه د قرآن تلاوت به كوئ،

نو دلته اشاره ده چه دا دومره عظيم كتاب دے چه بره په آسمانونو كښې ئې ملائك وائي نو انسان له څه پكار دے چه ددے نه اعراض وكړي، نو يو ضعيف مخلوق چه ددهٔ دپاره دا كتاب راغلے دے، دے رالګيږي ددے عظيم كتاب نه اعراض كوي، دا څومره غټ ظالم دے۔

لكه دا خبره په سورة الصافات ﴿فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا﴾ كښې راغلے ده چه ملائك قرآن لولي۔ او په سورة الواقعه ﴿لَا يَمَسُّهٗٓ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ﴾ كښې دي چه پاك ملائك هغے له ورځي او هغے نه راخستل كوي۔

يا سفرة د سَفَارَة نه دے، د يو قوم ترمينځ خبره وړل راوړل۔

فراء وائي : دلته هغه ملائك مراد دي چه په وحی سره د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول ترمينځ سفارت كوي (د هغهٔ وحی رسول ته راوړي) څكه چه ملائك د الله تعالیٰ سفيران دي، لكه سفير د يو بادشاه د طرفنه تعبيرات كوي نو دغه شان ملائك هم دي۔

وهب بن منبهٔ ددے نه اصحاب د رسول الله ﷺ مراد كړيدي ليكن دا قول ضعيف دے۔

كِرَامٍ: (١) جمع د كريم ده۔ يعني په خپل رب باندے عزتمنے دي۔ (كلبیؒ)

(٢) كِرَامٍ عَنِ الْمَعَاصِيْ فَهُمْ يَرْفَعُوْنَ اَنْفُسَهُمْ عَنْهَا۔

عزتمنے دي د ګناهونو نه، ځانونه ددے پورته ګنړي۔ (الحسنؒ)

(٣) يَتَكَرَّمُوْنَ اَنْ يَّكُوْنُوْا مَعَ ابْنِ آدَمَ اِذَا خَلَا بِزَوْجَتِهٖ اَوْ قَضٰى حَاجَتَهٗ۔

دوی عزتمنے دي چه كله بنيادم د خپلے بي بي يا قضاء حاجت دپاره يواځے شي نو دوی ورسره نهٔ وي۔

(٤) يا پدے وجه عزتمنے دي چه خپلے فائدے د مؤمنانو په فائدو باندے غوره كوي۔

(٥) دارنګه پدے وجه عزتمنے دي چه مؤمنانو له استغفار غواړي۔

اهل علم وائي : د رب په نيز عزتمن هغه څوك دے چه د ګناهونو نه ځان بچ ساتي، او د بل چا فائدے غوره كوي په خپله فائده باندے۔

بَرَرَةٍ: جمع د بَارٌ ده۔ په حديث كښې دي :

«هغه شخص چه قرآن لولی او هغه پکښ ماهر وی هغه به د سَفَره کرام بَرَره ملائکو سره وی، او هغه شخص چه قرآن لولی او دا پرے گران وی، دهٔ لره دوه اجرونه دی»۔

(البخاری فی التوحید باب ۵۲، ومسلم فی المسافرین حدیث :۲٤٤) ابوداود فی الوتر باب ۱.٤) واللفظ له)۔

دلته امام ابن کثیرؒ لیکلی دی :

[وَمِنْ هٰهُنَا يَنْبَغِيْ لِحَامِلِ الْقُرْآنِ اَنْ يَّكُوْنَ فِيْ اَقْوَالِهٖ وَاَفْعَالِهٖ عَلَى السَّدَادِ وَالرَّشَادِ]

ددے وجه نه قرآن والو لره پکار ده چه هغه په خپلو خبرو او کارونو کښ په نیغه لاره او سیده او په هدایت باندے روان وی۔

یعنی تشبه بالملائکه وکړئ۔ چه ملائك عزتمن دی نو پکار ده چه قرآن والا به هم عزتمن وی، بے وقاره، کنځل مار، فاحش او بد اخلاقه به نهٔ وی بلکه نیکان خلق وی۔

| قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَا اَكْفَرَهٗ ﴿۱۷﴾ |
|---|
| قتل دے کړے شی انسان (لعنت دے اوکړے شی په انسان) څومره لوئی کفر کونکے |
| مِنْ اَیِّ شَیْءٍ خَلَقَهٗ ﴿۱۸﴾ مِنْ نُّطْفَةٍ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ﴿۱۹﴾ |
| دے۔ د څه شی نه الله پیدا کړیدے۔ د نطفے نه ئے پیدا کړو بیا ئے اندازه کړو۔ |
| ثُمَّ السَّبِيْلَ يَسَّرَهٗ ﴿۲۰﴾ ثُمَّ اَمَاتَهٗ فَاَقْبَرَهٗ ﴿۲۱﴾ ثُمَّ اِذَا |
| بیا ئے لاره د راوتلو ورته آسانه کړه۔ بیا ئے مړ کړو نو قبر کښ ئے خښ کړو۔ بیا کله چه |
| شَآءَ اَنْشَرَهٗ ﴿۲۲﴾ كَلَّا لَمَّا |
| غواړی هغه راپورته کوی به دهٔ لره۔ هیچرے کفر نهٔ دے پکار، تراوسه پورے |
| يَقْضِ مَا اَمَرَهٗ ﴿۲۳﴾ فَلْيَنْظُرِ الْاِنْسَانُ اِلٰى طَعَامِهٖ ﴿۲٤﴾ |
| نهٔ دے ادا کړے دهٔ هغه چه الله ورته حکم کړیدے۔ نو اودے ګوری انسان خوراك خپل |
| اَنَّا صَبَبْنَا الْمَآءَ صَبًّا ﴿۲۵﴾ ثُمَّ شَقَقْنَا الْاَرْضَ |
| ته۔ چه یقیناً مونږ راتوی کړیدی اوبه په تویولو سره۔ بیا څیری کړیده مونږ زمکه |

| شَقًّا ﴿۲۶﴾ فَأَنبَتْنَا فِيهَا حَبًّا ﴿۲۷﴾ وَعِنَباً وَقَضْباً ﴿۲۸﴾ |
|---|
| په څیرې کولو۔ نو راززرغون کړیدی مونږ پدے کښې دانے۔ او انګور او ترکاریانے۔ |
| وَزَيْتُوناً وَنَخْلًا ﴿۲۹﴾ وَحَدَائِقَ غُلْباً ﴿۳۰﴾ وَفَاكِهَةً وَأَبّاً ﴿۳۱﴾ مَّتَاعاً لَّكُمْ |
| او ښونه او کجورے۔ او باغونه ګڼړ۔ او میوه او ګیاه۔ دپاره د فائدے ستاسو |
| وَلِأَنْعَامِكُمْ ﴿۳۲﴾ |
| او د چارپیانو ستاسو۔ |

**تفسیر:** ربط

مخکښې د قریشو د سردارانو کبر او غرور بیان شو چه د داسے عظیم کتاب نه ئے مخ اړولو نو اُوس الله تعالیٰ خپلو مومنانو بندګانو له دعوت ورکوی چه د دغه کافرانو په حال باندے حیرانتیا او تعجب وکړی۔

او دارنګه دا خبره ښکاره کوی لکه څنګه چه دا کافر انسان د قرآن نه مخ اړوی نو دغه شان د عقلی دلائلو نه هم انکار کوی۔ نو دا انسان د بربادئ لائق دے۔

الله تعالی وفرمایل چه کافر انسان دپاره هلاکت او بربادی ده، دے په کبر او غرور باندے کومے خبرے راپورته کړے دے، آیا دهٔ ته خپل حقیقت معلوم نهٔ دے چه دهٔ لره الله تعالیٰ د یوے سپکے قطرے نه پیدا کړے، او د مړینے نه پس به خاورے شی، او دے تول ژوند ګندګی بار کړے ګرځی۔

که چرے دهٔ په خپل حقیقت باندے غور کړے وے نو په کبر او غرور کښې به مبتلا کیدلے نهٔ، او د قادرِ مطلق خالق په وجود او په حشر او نشر باندے به ئے ایمان راوړے وے، او د عمل صالح په کولو سره به په آخرت کښې د جنت حقدار جوړ شوے وے۔

قُتِلَ: د قتل نه مراد هلاکت او لعنت دے۔ دا په معنیٰ د لُعِنَ سره دے یعنی (لعنت کړے شویدے) او دا د الله تعالیٰ د طرف نه اخبار دے چه دهٔ باندے لعنت وشو۔ او هلاك به شی۔ ❁ یا دا ښیرے دی په طریقه د تعلیم سره بندګانو ته چه تاسو داسے انسان ته ښیرے وکړئ۔

الْإِنسَانُ: کښې الف لام عهدی دی، مراد ترے مُکَذِّب او عنادی کافر دے۔

مَا أَكْفَرَهُ: یعني کوم شی دهٔ لره کافر وګرزولو۔ دا صیغه دَ فعل تعجب ده، مګر مراد پدے سره تعجیب (بندګان په تعجب کښې اچول) دی۔

یعني اے انسانانو! تاسو ددهٔ په کفر تعجب وکړئ سره د وجود د لائلو نه۔

❁ یا ما استفهامیه کښې استفهام دپاره د توبیخ او زورنے دے۔

مِنْ أَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهُ: یعني دے په الله تعالیٰ کفر کوی او دے ته نهٔ ګوری چه زهٔ د څه نه پیدا یم او څومره کمزورے یم۔ په خپله ماده او د هغے په حالاتو خو ډے لګ فکر وکړی چه د کفر نه خلاص شی۔

خَلَقَهُ : دا ئے دوباره راوړو پدے کښې اشاره ده چه بیا روستو پیدائش ددهٔ د علقے او مضغې نه دے۔

فَقَدَّرَهُ: ددے تقدیر نه مراد د اندامونو برابرول، او د قد وقامت او تقدیر د سعید او شقی او د اجل او رزق دے لکه په سورة کهف (۳۷) او سورة الانفطار (۷) آیت کښې دی۔

السَّبِيلَ يَسَّرَهُ: ۱- ددے نه مراد لاره د راوتلو د بچی ده د مور د خیټے نه، چه هغه الله تعالیٰ آسانه کړیده۔ خطیب شربینیؒ لیکلی دی چه بچے د مور په رَحِم کښې سر بره او خپے ئے کوزے وی لیکن په وخت د پیدائش کښې سر مخکښې او خپے روستو شی، دا آسانول د الله تعالیٰ د طرفنه دی۔

دارنګه اطباء لیکی چه کله د بچی موده په رَحِم کښې پوره کیږی نو دغه وخت د رَحِم نه باران شروع شی چه په هغے سره د ماشوم هر طرف لوند شی او غوړ شی او اُویه پیدا کړی نو بیا د بچی راوتل په ډیره آسانئ سره وشی۔

۲- دے کښې حاصل تفسیر دا هم شویدے چه [ثُمَّ سَبِيلَ مَعْرِفَةِ الْحَقِّ وَالضَّلَالِ يَسَّرَهُ] بیا لاره د حق پیژندلو او د ګمراهئ ورته الله تعالیٰ آسانه کړیده۔ لکه سورة البلد (۱۰) او سورة اللیل (۷/ ۱۰) آیت کښې دی۔ یا لاره د خیر مراد ده لکه په سورة الدهر (۳) آیت کښې دی۔ او دا لاره آسانول په طریقه د بیان د دلیلونو سره ده،

❁ یا په توفیق او استطاعت ورکولو سره ده۔ دلته دواړه معانی صحیح دی۔ او دواړه مراد دی۔

ثُمَّ: ثُمَّ راوړل دا دلیل دے چه د پیدائش او د مرګ په وخت کښې اکثر فاصله وی۔

او فاء په فَأَقْبَرَهُ کښې اشاره ده چه د مرګ سره دفن متصل پکار دے، یعني د غسل،

تجهیز او تکفین او جنازے او دفن په کارونو کښې جلتي پکار ده لکه چه حدیث کښې دي :
(اَسْرِعُوا بِالْجَنَازَةِ)

په جنازه باندے جلتي وکړئ۔ یعني زر ئے تیاره کړئ۔ (بخاري: ۱۳۱۵) مسلم: (۲۲۲۹)۔

او فاقبره نه سیوطيؒ په ((الاکلیل)) کښې استدلال کړے چه د مړي دفن کول لازم دي۔

اَمَاتَهٗ: کښې ئے نسبت الله تعالیٰ ته وکړو، دا دلیل دے چه مرګ هم په حکم او په اختیار د الله تعالیٰ سره راځي، دا طبعي امر نهٔ دے لکه چه دهریان ئے وائي۔

مرګ کول ئے نعمت وشمارلو، ځکه چه مرګ سره مؤمن همیشه ژوند او همیشه نعمتونو طرفته ورځي۔

فَاَقْبَرَهٗ: اِقبار دے ته وائي چه حکم وکړي په خښولو د مړي۔ او قبر المیت معنیٰ ده په خپلو لاسونو سره مړے خښول۔

او قبر کښې خښول هم د الله تعالیٰ د طرفنه احسان دے په بنده باندے، او دا د مړي اکرام دے په نسبت ددے چه بهرئے وغورزوي او مارغان او ځناور ئے وخوري۔

ثُمَّ اِذَا شَآءَ : پدے کښې تذکیر دے په دوباره ژوند سره۔

او شاء کښې ئے نسبت ځان ته وکړو، اشاره ده چه د بعث بعد الموت مقرر وخت د الله تعالیٰ نه سوئ بل هیچا ته معلوم نهٔ دے۔ بلکه دا د الله تعالیٰ د مشیئت تابع دے۔

(فتح البیان)

اَنْشَرَهٗ: (یعني را اُوچت به کړي دهٔ لره) نو دے کښې الله تعالیٰ قیامت ته اشاره ورکړه چه مرګ او قیامت دریاندے راروان دے اے انسانه! ځنګه د خپل ځان تزکیه نهٔ کوے، دے ته دِے فکر نشته؟!۔

كَلَّا:

ربط :

په تیرو شوو آیتونو کښې الله تعالیٰ انسانانو له د دوئ د پیدائش او د ژوند او مرګ په باره کښې د غور او فکر کولو دعوت ورکړے، دے دپاره چه دوئ د خپل حقیقت او د الله تعالیٰ د کامل قدرت تصور وکړي، او په هغهٔ او د آخرت په ورځ باندے ایمان راوړي۔

اوس دلته دوئ ته د خپلے روزئ په باره کښې د غور او فکر کولو دعوت ورکړے کیږي چه لږ سوچ خو اوکړئ، الله تعالیٰ دا د کومو پړاوونو نه تیر کړے، او دوئ له ئے تیار کړے دے، دے دپاره چه دوئ د خپل رب شکر گذار بندګان جوړ شي۔

الله تعالیٰ وفرمایل چه انسان دې د خپل خوراك په باره کښې فکر وکړي چه هغه دا هره ورځ څو ځله خوري، چه مونږ دا د کومو مراحلو (پړاوونو) نه تیروو، او ددې نه صالحه او فائده منه غِذاء جوړوو. رومبې مونږ په زمکه باران را اوورولو، بیا مو هغه د کروندې قابله جوړه کړه، بیا مو ددې نه قِسما قِسم دانې را زرغون کړې، لکه غنم، جوار، باجره او نورې دانې، انګور او سبزیانې مو را زرغون کړې لکه بهینډۍ او تورۍ، زیتون مو را زرغون کړل چه ددې میوه خوړلې کیږي، او ددې تیل لګولې کیږي، کهجورې مو را زرغون کړې چه دا تازه او اوچې خوړلې کیږي، باغونه مو را زرغون کړل چه د هغې وُنې خپلو کښې یو بل سره نښتې وي.

دارنګه نور قِسم میوې مو را زرغون کړې چه هغه انسانان خوري، او ګیاه مو را زرغون کړه چه دا د دوئ څناور خوري.

الله تعالیٰ وفرمایل چه دا ټول څیزونه مونږ ستاسو دپاره او ستاسو د څناورو دپاره پیدا کړي دي، ددې نعمتونو تقاضا داده چه تاسو د خپل لوی رب په قدرت، او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړئ، د هغهٔ شکر ګذار بندګان جوړ شئ، او د نیك عمل والا ژوند اختیار کړئ.

**كَلَّا**: دا ردع ده د کفر نه، یعنی اې انسانه ! هیڅکله تا له کفر کول نهٔ دي پکار.

حسن وائی چه دا په معنیٰ د حَقًّا سره دې. یعنی یقینی ده دا خبره چه دې انسان لا د الله تعالیٰ امرونه نهٔ دي پوره کړي. اوله معنیٰ ظاهره ده.

**لَمَّا يَقْضِ** : (۱) یعنی دې څنګه کفر کوي او حال دا چه لا تر اُوسه پورې دهٔ نهٔ دې ادا کړي او پوره کړي هغه حکمونه او حقونه چه الله تعالیٰ دهٔ ته حکم کړیدې.

مطلب دا چه تا لا د الله تعالیٰ حقونه نهٔ دي ادا کړي بیا سمدست کفرونه کوې، چه دا نهٔ منم او دا نهٔ منم، داسې غټې خبرې خو هغه څوك کوي چه هغه ټول حقونه ادا کړي دي.

**يَقْضِ**: د قضاء نه دې پوره حق ادا کولو ته وئیلې شي.

**مَا أَمَرَهُ**: ددې نه مراد توحید او تفصیلی ایمان دې چه په قرآن کښې ذکر دې، او دارنګه نور احکام اِلهیه چه په کتاب او سنت کښې ذکر دي.

(۲) بعض مفسرین وائی یَقْضِ کښې ضمیر الله تعالیٰ ته راجع دې، او د مَا أَمَرَهُ نه مراد

بعث او نشور دے۔ یعنی کفر نهٔ دے پکار لا تر اُوسه پورے الله تعالیٰ نهٔ دے پوره کړے هغه دوباره راپورته کول د انسان چه الله تعالیٰ پرے حکم کړیدے، یعنی هغه به روستو کیږی او دے انسان اُوس نه کفر شروع کړو۔ اوله معنیٰ ظاهره او غوره ده چه پدے کښ په انسان باندے رد دے۔

فَلْيَنظُرِ الْإِنسَانُ : فاء فصیحیه ده، شرط پټ دے۔ اَیْ اِذَا كَانَ الْاَمْرُ كَذٰلِكَ اَیْ اِنْ لَمْ يَذْكُرْ اِبْتِدَائَهٗ ۔یعنی که انسان ته خپل ابتدائی ژوند نهٔ وی یاد نو بیا دِ دے خپل خوراك باندے سوچ وکړی، نو ددهٔ د نفس تزکیه به وشی، نو دا د تزکیهٔ نفس طریقے دی۔

يَنظُرِ : دا په زړه باندے نظر کول مراد دی یعنی فکر کول او د سترګو نظر هم ورسره مراد دے۔

وَقَضْبًا: ۱- وابنهٔ/ ګیاه ګانے۔ (الحسنؒ- ابن جریرؒ)

۲-تازه کجورے څکه چه د قضب معنیٰ ده پریکول، او دا هم بار بار پریکولے شی۔

۳- نورے ترکاریانے۔ چه د زمکے نه په مختلفو موسمونو کښ بار بار پریکولے شی۔ لکه ساګ، ګندنه، پیاز، اُوګه، بادرنګ، بینډیٔ، توریٔ وغیره۔ (قرطبیؒ، قاسمیؒ)

وَحَدَائِقَ: دا تعمیم دے روستو د تخصیص نه، عامو باغونو ته وئیلے شی۔

غُلْبًا: ۱- یعنی ګنړ چه ونے پکښ زیاتے وی۔او لوئی ډنګے وی او څانګے ئے په یو بل کښ ننوتی وی۔ ۲- اُوږدهٔ باغونه۔ غټ غټ۔ (ابن عباس ﷺ)

وَأَبًّا: هغه بوټی چه د میوے نه علاوه وی د زمکے نه راخیژی۔ او څاروی ئے خوری۔

دلته مفسرینو د ابوبکر صدیق ﷺ نه روایت راوړیدے چه هغهٔ نه تپوس وشو چه د اب څه معنیٰ ده ؟ نو هغه وویل :

اَیُّ سَمَاءٍ تُظِلُّنِیْ وَاَیُّ اَرْضٍ تُقِلُّنِیْ اِذَا قُلْتُ فِیْ كِتَابِ اللّٰهِ مَا لَا اَعْلَمُ۔

کوم آسمان به ما ته سورے راکړی او کومه زمکه به ما پورته کړی کله چه زهٔ د الله تعالیٰ په کتاب کښ هغه څه ووایم چه ما ته پته نشته۔ نو دهٔ توقف وکړو۔

او د عمر فاروق ﷺ نه نقل دی چه هغه دا آیت په منبر باندے ولوستلو او بیا ئے وویل [هٰذِهِ الْفَاكِهَةُ قَدْ عَرَفْنَاهَا فَمَا الْاَبُّ؟ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى نَفْسِهٖ فَقَالَ : اِنَّ هٰذَا لَهُوَ التَّكَلُّفُ يَا عُمَرُ]

چه فاکهه خو مونږ پیژنو خو دا اب پکښ څه شے دے؟ بیا ئے وفرمایل :

دے کښ ګوتے وهل تکلف دے او مونږ د تکلف نه منع شوی یو۔

(مصنف ابن ابی شیبه: ۳۰۱۰۳/۱۳٦/٦) وفضائل القرآن لابی عبید: ص (۳۷۵) حسن لغیره)
واثر عمر فی المصنف: ۱۰/۵۱۲) والبیهقی فی شعب الایمان: (۲/٤٢٤/٢/رقم: ۲۲۸۱)

نو سوال دا دے چه دا دواړه خو عرب قُحّ دی، نو آیا دوی ته ددے عربی لغت معنیٰ نهٔ ورتلله؟ جواب دا دے چه دوئ ته معلومه وه چه ابّ گیاه ته وائی، لیکن د تعیین علم ورته نهٔ وو چه کومه گیاه مراد ده، نو ځکه ئے ددے تالاش کولو ته تکلف وو ئیلو۔

نو ابّ په شد سره اَلْمَرْعٰی (یعنی گیاه) ته وائی۔

او بعض وائی: اَلتِّبْن۔ (بوسو) ته وائی۔

| فَإِذَا جَآءَتِ الصَّآخَّةُ ﴿۳۳﴾ يَوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ مِنْ أَخِيهِ ﴿۳٤﴾ |
|---|
| نو کله چه راشی غوږونه کنړونکے آفت۔ په هغه ورځ به تختی هر سړے د وړور خپل نه، |
| وَأُمِّهِ وَأَبِيهِ ﴿۳۵﴾ وَصَاحِبَتِهِ وَبَنِيهِ ﴿۳٦﴾ لِكُلِّ |
| او د مور او د پلار خپل نه۔ او د ښځے خپلے نه او د ځامنو خپلو نه۔ دپاره د هر |
| امْرِئٍ مِّنْهُمْ يَوْمَئِذٍ شَأْنٌ يُغْنِيهِ ﴿۳۷﴾ |
| سړي د دوی نه په دغه ورځ یو فکر دے (یو حال دے) چه مشغوله کړے به ئے وی دهٔ لره۔(چه بے پروا کړے به ئے وی دهٔ لره)۔ |
| وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ﴿۳۸﴾ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ ﴿۳۹﴾ |
| بعض مخونه به په دغه ورځ رڼرا والا وی۔ خندیدونکی به وی خوشحاله به وی۔ |
| وَوُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ ﴿٤٠﴾ |
| او بعض مخونه به په دغه ورځ په هغے باندے گرد وی۔ |
| تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ ﴿٤١﴾ أُولَٰئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ ﴿٤٢﴾ |
| دپاسه به راغلی وی پدے باندے تور والے۔ دا کسان هم دوی کافران بدکاره (نافرمان) دی۔ |

**تفسیر:** اُوس د قیامت تذکره کوی۔ او مقصد دا دے چه دا خوراکونه او څکاکونه چه الله تعالیٰ تاسو ته درکوی نو یو مقصد دپاره، چه ددے په مقابله کښ الله تعالیٰ ستاسو

نـه بـنـدګـي غـواړي او د هغې نتيجه بيانيږي، يعني اُوس انسان اُخروي ژوند او ددهٔ ښهٔ او بد انجام بيانيږي.

الله تـعـالـیٰ وفـرمـايـل : کـلـه چـه قـيـامـت راشي چه ددې د شپيلۍ آواز به دومره تيز او کـريـهـه وي چه د خلقو غوږونه به کاڼهٔ کيږي، نو د ډيرې ويرې له وجې به هر يو انسان په خپـل حـال کښې داسې پريشان وي، او هر چاته به د خپل نجات داسې فکر وي چه هغه به خپل ډير نژدې رشته دار نه هم د محشر په ميدان کښې ليدلو سره تښتي،

(۱) يا خو بـه ددې ويـرې نـه تښتـي چـه هسې نـهٔ چرته څوك ددهٔ نه د څهٔ حق مطالبه وکړي،

(۲) يا ددې وجې نه چه څوك ددهٔ پريشاني او بې آرامي ونهٔ ويني،

(۳) يا ددې وجې نـه چه دهٔ ته به معلومه وي چه هيڅوك به ددهٔ په کار نهٔ راځي، نو بيا هغهٔ طرفته د کتلو څهٔ ضرورت دې.

**الصَّاخَّةُ** : دا د قيامت د دويـمې شپيـلـۍ نـوم دې. او اسم فاعل دې، يعنى کنړه ونکې غوږونو لره. يا د قيامت نوم دې (ابن عباس رضي الله عنه)

صاخه ورته ځکه وائي [لِاَنَّهَا لِشِدَّةِ صَوْتِهَا تَصُخُّ الآذَانَ اَیْ تُصِمُّهَا] ځکه چه دا د وجه د سخت آواز نه غوږونه چوي او کنړه وي.

**يَـوْمَ يَفِرُّ الْمَرْءُ** : دا بـه ولـې تښتـي ؟ نو يوه وجه دا ده لِئَلَّا يُطَالَبَ بِحَقٍّ ـ دې دپاره چه څـوك تـرې د حقوقو مطالبه ونکړي. نو دا به متعلق شي د (لَمَّا يَقْضِ مَا اَمَرَهٗ) پورې چه دې انسان نهٔ د الله تعالیٰ حقوق ادا کړي او نهٔ د بندګانو. دا هم يوه وجه ده.

لـيـکـن ظـاهـره وجه دا ده چه کومه روستو ذکر ده چه (لِكُلِّ امْرِئٍ) د هـر سړي به داسې حـالـت جـوړ شوې وي، او دومره پريشانه به وي چه د ځان نه علاوه به ئې هيڅاته فکر نهٔ وي. لـکه دنيا کښې په بچي او ښځه او ورور تکليف وي، نو هغه ورله منډې وهي، هلته به نفسا نفسي وي. دواړه وجې صحيح او واقع دي. او دريمه وجه هم صحيح ده.

**وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ** : اُوس ډلې بيـانيـږي يـعـنـي په دې ورځ به خلق په دوه برخو کښې تقسيم کـړې شي، کوم چه نيك بخت وي، په دنيا کښې ئې د نفس تزکيه کړيده، او رب العالمين ورلـه د جنت فيصله کړې وي، د هغوئ مخونه به د خوشحالۍ په وجه ځليږي، او کومو بـدبـختـو دپاره چـه الله رب الـعـالمين د جهنم فيصله کړې وي، ځکه چه هغوی په دنيا

کښې د نفس تزکیه نهٔ وه کړے۔
د هغوئ په مخونو به د افسوس او نا امیدئ بادونه آلوزی، او په هغې به توروالے راخور شوے وی۔ او دا بدترین انجام به د هغه خلقو وی چه هغوئ د کفر او سرکشئ او د فسق او فجور ژوند تیر کړے وی، او په غیر د توبے نه په همدے حال مړهٔ شوے وی۔
وُجُوهٌ: او دا هر نعمت په مخ باندے راښکاره کیږی نو ځکه مخونه ذکر کوی۔ نور تول بدنونه مراد دی۔
مُّسْفِرَةٌ : ددے ځای نه درے جزاګانے بیانوی، او دا درے واړه بیل بیل حالتونه دی۔
مُّسْفِرَةٌ : روښانه او رڼرا والا به وی۔ او ددے سبب به نیک عمل وی لکه په یو حدیث کښې د مخ د رڼرا والی سبب په ښائسته طریقه سره اودس کول ذکر دی۔
ضَاحِكَةٌ: اَیْ فِی الْاَفْوَاهِ۔ یعنی په خولو کښې به ئے د ډیرے خوشحالئ نه خندا وی۔
مُّسْتَبْشِرَةٌ: اَیْ فِی الْقُلُوْبِ ۔ او زړهٔ کښې به ئے خوشحالی وی۔ کله د یو تن مخ خو په ظاهره کښې روښانه وی، خندا وغیره کوی د خلقو د رعایت د وجه نه، لیکن زړهٔ کښې خفه وی۔ نو دلته ځکه مُّسْتَبْشِرَةٌ ورپسے ذکر کوی چه دا خندا به د چا د وجه نه نهٔ وی۔
وَوُجُوهٌ: اُوس د بد بختو خلقو انجام بیانیږی۔
عَلَيْهَا غَبَرَةٌ: غبار/ دُوړے ته وائی۔
تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ : قترة توروالی ته وائی۔ کله یو مخ د کارونو او خدمتونو، یا د بوډا والی او کله د عاجزئ د وجه نه خړ والے پرے راغلے وی، نو هغه دومره بد نهٔ ښکاره کیږی خو کله چه دپاسه پرے تور والے راغلے وی، نو هغه انتهائی بد ښکاره کیږی۔
او کله چه مخ تور وی بیا ئے هم مخ بد نهٔ ښکاره کیږی لکه حبش لیکن کله چه پرے غبار واچولے شی بیا ډیر بد ښکاره کیږی، او دا د ذلت خړوالے او توروالے دے نو دا ډیر بد ښکاره کیږی۔
او زید بن اسلمؒ وائی : قترة هغه غبار ته وائی چه د زمکے نه آسمان ته پورته کیږی، او غبرة هغه غبار دے چه د برے نه زمکے ته راکوزیږی۔ یعنی دواړه قسمه دوړه به ورباندے پرته وی۔
الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ : دا ئے دوه سببونه دی د غبار راتللو په مخونو د دوی۔ یعنی په زړه باندے کافران دی، او په عمل سره فاجران دی۔

او لکه څنګه چه دوی د کفر سره فجور هم یو ځای کړیدے نو د دوئ په سزا کښې به هم غبره د قتره سره یو ځای کړے شي۔ او دا به معلوم خلق وی د قیامت په میدان کښې، او روستو به ئے الله تعالیٰ اُور ته بوځي۔ اَعَاذَنَا اللّٰهُ مِنْ سُوْءِ حَالِهِمْ آمین۔

فجور فسق (نافرمانی) او کذب (دروغو) ته وئیلے شي۔ وبالله التوفیق۔

## امتیازات سورة عبس

۱- واقعه د عبد الله بن ام مکتوم رضی الله عنه پکښې ذکر ده۔

۲- د دعوت ترتیب او طریقه پکښې ذکر ده۔

۳- انسان چه خپل زړهٔ رابیداروی او د نفس تزکیه کوی نو د هغے دپاره درے طریقے دی، قرآن ته وګوره، خپل پیدائش ته وګوره او خپل خوراك ته وګوره۔

ختم شو تفسیر د سورة عبس په توفیق د رحمن رحیم سره۔ ۱۸ رمضان۔

او ختمه شوه تصحیح په دویمه ورځ د عید الاضحیٰ۔ (۱٤۳۷ هـ)

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

| آياتها (۲۹) | (۸۱) سُوْرَةُ التَّكْوِيْرِ مَكِّيَّةٌ | ركوعاتها (۱) |
|---|---|---|

سورة التكوير مكي دے، په دے كښې نهيشت آيتونه او يوه ركوع ده

## تفسير سورة التكوير

**نوم :** په اولنى آيت كښې [كُوِّرَتْ] لفظ راغلے د همدے نه لفظ [التكوير] اخستے شوے۔ او دے ته إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ هم وائى۔

**د نازليدو زمانه :** ابن مردويةّ او بيهقيّ او نورو د ابن عباس ﷺ نه نقل كړى چه ﴿ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴾ په مكه كښې نازل شوے، ابن مردويةّ د عائشے او ابن زبير رضى الله عنهم نه هم همدا نقل كړى دى۔

### فضيلت

عبد الله بن عمر ﷺ فرمائى : رسول الله ﷺ فرمائى : [مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَّنْظُرَ إِلٰى يَوْمِ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ رَأْيُ عَيْنٍ فَلْيَقْرَأْ ﴿ إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴾ وَ ﴿ إِذَا السَّمَآءُ انْفَطَرَتْ ﴾ و﴿ إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ ﴾ (الترمذى فى تفسير سورة ۸۱، باب ۱، رقم (۳۳۳۳) واحمد فى المسند ۲/ ۲۷،۳۶) باسناد صحيح)

خوك چه پدے خوشحاليږى چه هغه د قيامت ورځے ته وګورى ګويا كه د سترګو ليدل وى نو هغه دے اذا الشمس كورت او اذا السماء انفطرت او اذا السماء انشقت سورتونه ولولى۔

### مناسبت :

۱ - مخكښې سورت كښې اثبات د بعث بعد الموت وو، نو پدے سورت كښې د هغے ډير حالات ذكر كوى۔

۲- مخکښې سورت کښې د صاخه (قیامت) راتلل ذکر شو، نو دلته مقصد د بعث ذکر کوی چه هغه ملاقات د انسان دے د خپل عمل سره۔
۳- په هغه سورت کښې د قیامت منکرینو ته زجر وو، نو دلته د رسول ﷺ او د قرآن کریم منکرینو ته زجر ورکوی۔
٤- په هغه سورت کښې ئې وویل چه قرآن د سفیرانو ملائکو په لاسونو کښې دے نو دلته د هغوی نه لوی سفیر ذکر کوی چه هغهٔ قرآن راوړیدے یعنی جبریل علیه السلام۔

## د سورت مقصد

حَسْرَةُ الْاِنْسَانِ عَلٰی عَمَلِهٖ۔ قیامت په ورځ به انسان په خپل عمل باندے افسوس کوی، په کوم عمل ؟ نو یو بد عمل (د کفر نه تر وړے ګناه پورے واخله)،
او بل په خپل عمل کښې په احسان پریخودو سره۔ چه ما دا عمل په ښائسته طریقے سره ولے نهٔ کولو۔ او ما ولے پدے کښې تقصیر کولو۔
دا موضوع د (عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا اَحْضَرَتْ) نه معلومه ده۔ او دا مخکښې ورله مقدمه ده۔
ددے دپاره اول الله تعالیٰ د قیامت د ورځے هیبت بیان کړیدے، او په آخره کښې ئې عظمت د قرآن ذکر کړیدے، او په مینځ کښې حسرت عَلَی الْعَمَل دے۔
نو ګویا کهٔ داسے وویل شو چه د قیامت غټ هیبت راروان دے، د هغے دپاره تیارے په عمل باندے وکړه، دا عمل د قرآن مطابق وکړه، او قرآن تا ته عملونه هم رایادوی، او آخرت هم۔
نو د قرآن او د آخرت ترمینځ ګهرا تعلق دے۔ پدے وجه الله تعالیٰ دلته هم جمع کړیدی۔
نو قرآن کریم څه له راغلے دے؟ نو فرمائی : ﴿ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعٰلَمِیْنَ ﴾ دا قرآن کریم انسان ته خبره رایاده وی، ذکر ورکوی، او کله چه انسان ذکر حاصل کړی، نو بیا دا قرآن استقامت ورکوی، یعنی په نیغه لاره دے روانوی، یعنی نیك عملونه دربنائی۔
په آخره کښې ئې مَشِیْئَةُ اللهِ الطَّلِیْقَه ذکر کړیدے چه د الله خوښه آزاده ده۔ د هغهٔ خوښه ده څوك دے قرآن او هدایت او استقامت ته راولی او څوك نهٔ راولی نو بس د هغهٔ نه غوښتنه کوئ او صرف همغهٔ ته عاجزی او زاری کوئ۔

| إِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ ﴿١﴾ وَإِذَا النُّجُومُ انكَدَرَتْ ﴿٢﴾ وَإِذَا |
|---|
| کله چه نمر راتاو کړے شي۔ او کله چه ستوري خړ (بے نوره) کړے شي۔ او کله چه |
| الْجِبَالُ سُيِّرَتْ ﴿٣﴾ وَإِذَا الْعِشَارُ عُطِّلَتْ ﴿٤﴾ |
| غرونه روان کړے شي۔ او کله چه د لسو میاشتو بلاربے اوښے آزادے پریخودے شي۔ |
| وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ ﴿٥﴾ وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ ﴿٦﴾ |
| او کله چه ځنګلي حیوانات راجمع کړے شي۔ او کله چه دریابونه ډك کړے شي۔ (د |
| وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ ﴿٧﴾ وَإِذَا |
| اُور نه بل کړے شي) او کله چه روحونه یو ځائے کړے شي (د بدنونو سره)۔ او کله چه |
| الْمَوْؤُودَةُ سُئِلَتْ ﴿٨﴾ بِأَيِّ ذَنبٍ قُتِلَتْ ﴿٩﴾ |
| د ژوندئ ښخے شوے په باره کښې تپوس اُوکړے شي۔ چه په کومه ګناه وژلے شویده۔ |
| وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتْ ﴿١٠﴾ وَإِذَا السَّمَاءُ كُشِطَتْ ﴿١١﴾ |
| او کله چه پاڼرے خورے کړے شي۔ او کله چه آسمان نه پوستکے اُوویستلے شي۔ |
| وَإِذَا الْجَحِيمُ سُعِّرَتْ ﴿١٢﴾ وَإِذَا الْجَنَّةُ أُزْلِفَتْ ﴿١٣﴾ |
| او کله چه جهنم بَل کړے شي۔ او کله چه جنت رانزدے کړے شي۔ |

**تفسیر** : د آخرت د ورځے او د جزاء او سزا عقیده هغه بنیادي عقیده ده چه په هغے باندے د ایمان راوړو نه بغیر د هیڅ یو کس یا معاشرے اصلاح کول ناممکن دي۔ دے وجے نه قرآن کریم ځای په ځای په مختلف انداز کښې ددے وضاحت کړے، او خلقو ته ئے په دے باندے د ایمان راوړو دعوت ورکړے۔

په دے سورت کښې هم الله تعالیٰ همدا حقیقت په خلقو باندے منل غواړي، او د انسانانو په زړهٔ او دماغو کښې د مرګ نه پس د دوباره ژوند همدا عقیده کوزول غواړي، دے دپاره چه په دے باندے خلق ایمان راوړي، او د خپل آخرت په فکر کښې اولګي، او د خپل ظاهر او باطن اصلاح اوکړي،

نو دلته دولس کارونه ذکر شویدی چه څه د قیامت نه مخکښې او څه روستو کیدونکي دي، چه ددې نه روستو به یقیناً هر انسان وپیژني چه دهٔ کوم عمل دے ورځې ته حاضر کړیدے۔

په دے دولسو پېښو کښې شپږ کارونه به د قیامت راتلو نه مخکښې یا ددے نه فوراً روسته رابنکاره کیږي :

۱ - اَلشَّمۡسُ كُوِّرَتۡ : نمر به د خپل ځی نه لرے کړے شي، او ددے رنړا به ډوبه شي۔

كُوِّرَتۡ د تکویر نه دے، راتاوول او انغښتلو ته وئیلے شي، لکه پټکے چه څنګه ولونه ولونه کولے شي۔ نمر ډیر غټ او فراخه جسم دے، نو د قیامت د راتللو په وخت به دا الله تعالیٰ راتاو کړي، دا نمر به د قیامت په میدان کښې هم وي، بیا چه کله د انسانانو حساب کتاب وشي، نو الله تعالیٰ به ئې د کفارو د خړ کولو دپاره راتاؤ کړي، او اُور کښې به ئې واچوي۔

۲ - اَلنُّجُوۡمُ انۡكَدَرَتۡ : انکدار خړ والي او رنړا او اثر ختمیدو ته وائي۔ یعني ستوري به مات شي، او په زمکه به خوارهٔ شي، او رنړا به ئې ختمه شي۔

۳ - اَلۡجِبَالُ سُيِّرَتۡ : د سخت لړزیدو او زلزلې په وجه به غرونه ټکړے ټکړے شي، ګټے به ئې شړے شي، او روان به کړے شي، او بیا به ګرد او غبار ترے جوړ شي چه په هواء کښې به الوزي۔

٤ - اَلۡعِشَارُ عُطِّلَتۡ : خلق به د سختۍ ویرے په وجه د لسو میاشتنو امیدوارو اُوښو نه غافله شي، چه دا د عربو په نیز د تولو نه ښهٔ او قیمتي دولت وو، نو بیا د نورو څیزونو نه به د دوئ د غفلت څهٔ حال وي۔ یعني خلق به انتهائي پریشان او بد حاله وي، دوئ سره به د خپلو ځانونو د بچاؤ نه سوئ د بل هیڅ یو شئ فکر نهٔ وي۔

اَلۡعِشَارُ : جمع د عُشَرَاءُ ده، هغه اُوښه چه د هغې په حمل باندے لس میاشتې تیرے شوے وي، نو دا د مَالِك په نیز ډیر محبوب مال وي، او هغه ترینه هیڅ غفلت نهٔ کوي، د هغې د بچي راوړو په انتظار کښې وي۔ ددے نه مفسرینو زمکه، وریځې، او کورونه هم مراد کړیدي لیکن هغه غوره نهٔ دي۔

عُطِّلَتۡ: (اَیۡ بِلَا رَاعٍ وَّلَا حَلَبٍ) معطلے کړے شي د شپونکي او د لشلونه۔

یعني مالکان به د هغې د ساتنې او د اُوبو او د ګیاه ورکولو نه غافل شي، ځکه چه

هيبت به ډير زيات وي.
اشاره ده چه د قيامت په هيبت او رعب سره به د دنيا د ځيزونو محبت ختميږي.
٥ - وَإِذَا الْوُحُوشُ حُشِرَتْ : يعني وحشي ځناور به راجمع کړے شي.
د صحرائي حيواناتو حشر په دوه طريقو دے :
(١) عبد الله بن عباس ﷺ فرمائي : (حَشْرُهَا مَوْتُهَا) ددے حشر ددے مرګ دے.
پدے جملـه بعض علماء نهٔ دي پوهه شوي نو ددے نه ئے غلطه فائده اخستے ده چه په قيامت کښ به د حيواناتو حشر نهٔ کيږي، او د دوئ حشر ددے مرګ دے.
مونږ وايو چه دا خبره د اولے شپيلئ په موقعه کښ صحيح ده، او هغه دا چه کله اوله شپيلئ شروع شي، نو په حيواناتو به هم سخت هيبت راشي، نو هغوي به د انسانانو خواتـه راجمع شي چه کيدے شي د دوئ په خوا کښ د مرګ نه خلاص شي، هلتـه چه کلـه راشي نـو شپيـلئ بـه نـوره سختـه شي، ددے سختئ په وجه به د انسانانو زړونه وچوي نو دغه شان د حيواناتو زړونه به هم وچوي.
بيا دويم ځلي حشر بـه الله تـعالىٰ د قيامت په ورځ په دويمه شپيلئ سره کوي. لکه سـورت انـعام (٣٨) آيت ﴿ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ ﴾ کـښ راغـلی دی، چـه انسـانـان او حيوانات به هم د قيامت ميدان ته راجمع کيږي.
کـوم عـلـماء کرام چه د حيواناتو حشر نهٔ مني نو دوي نهٔ په قرآن کريم پوهه شويدي او نهٔ په صحيح حديثونو.
او پـدے حشـر کـښ الله تـعـالىٰ د خپل قدرت او د خپل عدل اظهار کوي، چه د هغوي ترمينځ به قصاص جاري کيږي. او بل پکښ اظهار د ذلت د بندګانو دے حيواناتو ته. او ددے درے فائدے مونږ په تفسير د سورة الانعام (٣٨) آيت کښ ذکر کړيدي.
او د ابن عباس ﷺ د قـول مطلب دا دے چه په آخرت کښ کله راجمع شي، او د يو بل نه قصاص واخلي، نو بيا به ورته وئيلے شي چه (كُونِيْ تُرَابًا) خاورے شئ. يعني ددے حشر ددے دپاره دے چه بيرته ئے الله تعالىٰ وژني. او دا قول د ابو هريره ﷺ نـه هم نقل دے لکه چه مخکښ په تفسير د سورة النبأ کښ ذکر شو.
(ابن جرير، والحاكم، الصحيحة : رقم ١٩٦٦)
٦ - وَإِذَا الْبِحَارُ سُجِّرَتْ : (١) أَيْ مُلِئَتْ : د تـمامو سمندرونو اوبهٔ به را اوخوټ کيږي

او د یو بل سره به یو ځائے شي او یو سمندر به ترے جوړ شي۔ (ربیع بن خیثمؒ، کلبیؒ، مقاتلؒ، الحسنؒ، الضحاکؒ)

(۲) اُوْقِدَتْ فَصَارَتْ نَارًا تَضْطَرِمُ ۔ بعضِ مفسرینو لیکلی دی چه د سمندرونو اوبهٔ به غائبے شي، او ددے په ځائے به اُور بل کړے شي۔

د قفالؒ وینا ده چه کیدے شي چه جهنم د سمندرونو په تل کښ وي، او کله چه د دنیا موده ختمه شي نو ددے اُور به لمبے وهلو سره پورته راشي۔ لکه دا په یو روایت کښ هم راغلی دی : (اِنَّ تَحْتَ الْبَحْرِ نَارًا) (وفی اسناده بشیر بن مسلم مجهول)۔

(۳) دریم : مونږ مخکښ په تفسیر د سورت طور کښ وئیلی وو چه د دریابونو اُوبه به جهنم ته گوزار کړے شي، او ددے زمکه به هموار میدان شي، او د جهنم سره به ملاوه شي، نو د جهنم غټ والے او د هغے فراخي دواړه به ددے په وجه راشي، او دا قول د قتادهؒ او د ابن حبانؒ نه نقل دے۔ او دا کار به هم په دویمه شپیلئ سره کیږي۔

۷ – وَاِذَا النُّفُوْسُ زُوِّجَتْ : (۱) د نفوس نه مراد ارواح دي۔ یعنی الله تعالیٰ به انسانی جسمونه دوباره پیدا کړي، او د دوئ روحونه به په دوئ کښ داخل کړي۔

(۲) بعضِ مفسرینو وئیلی دی چه تمام نفسونه به د یو بل سره یو ځای شي، اَلصَّالِحُ بِالصَّالِحِ وَ الطَّالِحُ بِالطَّالِحِ۔ یعنی نیکان به د نیکانو سره په جنت کښ، او بدان به د بدانو سره په جهنم کښ یو ځائے کړے شي۔

(۳) د عطاءؒ وینا ده [زُوِّجَتْ نُفُوْسُ الْمُؤْمِنِيْنَ بِالْحُوْرِ الْعِيْنِ وَنُفُوْسُ الْكَافِرِيْنَ بِالشَّيَاطِيْنِ] چه د مومنانو نفسونه به د حُورو سره ملاؤ کړے شي، او کافران به د شیطانانو سره په جهنم کښ یو ځائے کړے شي۔ او دا الفاظ دے تولو معانو ته شامل دي۔

۸ – وَاِذَا الْمَوْءُ وْدَةُ سُئِلَتْ : الله تعالیٰ به په قیامت کښ ډیر تپوسونه کوي لیکن چا چه ډیر ظلم کړیدے، او زړونه ئے ډیر سخت دي نو هغوی ته به الله تعالیٰ سخت په غضب کښ وي، او د هغوی د شرمولو دپاره به داسے تپوس کوي۔

نو پدے کښ الله تعالیٰ دے ته اشاره کوي چه ددے مشرکانو کافرانو زړونه ډیر سخت دي۔

مفسرین لیکي : د عربو د بعضِ قبائلو دا دستور وو چه د چا په کور کښ به جینئ پیدا شوه، نو د شرم نه د بچ کیدو دپاره به ئے هغه ژوندئ ښخوله۔

دا یو ډیر لوئې مجرمانه کار وو، چه هغوئ به دا د خپل سختې ناپوهۍ او جهالت په سبب کولو. داسې خلقو ته به الله تعالیٰ د قیامت په ورځ سخت غصه وی. او د سخت غیظ او غضب له وجې نه به د دوئ نه مخ اړوی، او دغه ژوندئ ښخو شوو جینکو نه به پوښتنه کوی چه دې ظالمانو تاسو په کوم جُرم کښې ژوندئ ښخې کړې وئ.

یعنی تاسو خو هیڅ جرم نهٔ وو کړې، دې وجې نه نن به دې ظالمانو له مونږ سخت ترین عذاب ورکوو.

سُئِلَتۡ : دا ئې غائب صیغه راوړه، پدې کښې اشاره ده چه الله تعالیٰ به ددې قاتلانو ته سخت په غضب وی تردې چه هغوی ددې مستحق نهٔ دی چه د هغوئ سره خبرې وشی. او پدې کښې ددې د قاتلانو غلې کول او هغوی ته سخت وعید دې.

حسنؒ وائی : الله تعالیٰ اراده کړیده چه ددې قاتل ته توبیخ (زورنه) ورکړی چه دا ئې ولې بې گناه وژلې ده. بعض وائی : ددې دپاره به تپوس کوی چه هغه خپل قاتل وښائی.

او دا آیت دلیل دې چه د مشرکانو اولادو ته به عذاب نهٔ ورکړې کیږی.

او دارنګه بې گناه به هیچا ته عذاب نهٔ ورکړې کیږی.

او عربو به لونړه یو د شرم د وجه نه خخولې، او دویم دا چه رزق به څوك ورکوی.

۹ - وَإِذَا الصُّحُفُ نُشِرَتۡ : د قیامت په ورځ به د خلقو عملنامې د حساب دپاره پرانستې شی، او د دوئ مخې ته به کیښودلې شی، او هر یو کس به خپل نیك او بد عملونه په خپلو سترګو اووینی. نو د صُحُف نه مراد صُحُفُ الۡاَعۡمَال (عملنامې) دی.

۱۰ - وَإِذَا السَّمَآءُ كُشِطَتۡ : گشط پوستکی ویستلو ته وئیلې شی، نو د آسمان نه به دبرې کولاوې کړې شی، نو بیا به په آسانئ سره ماتیږی نو څکه ئې دلته دا معنیٰ ده چه (نُزِعَتۡ عَنۡ اَمَاكِنِهَا) په دې ورځ به آسمان د خپلو ځیونو نه داسې ویستلې شی لکه څنګه چه د ذبح شوو څناورو نه څرمنې اوښکلې کیږی.

۱۱ - وَإِذَا الۡجَحِيۡمُ سُعِّرَتۡ : اَیۡ اُجِّجَتۡ وَاُوۡقِدَتۡ لِاَعۡدَاءِ اللّٰهِ اِيۡقَادًا شَدِيۡدًا.

یعنی په دې ورځ به د جهنم اُور د الله تعالیٰ د دشمنانو دپاره په پوره توګه تیز او بَل کړې شی.

قتادهؒ وائی : د جهنم اُور د الله تعالیٰ د غضب او د انسانانو د گناهونو په وجه تیزیږی.

(فتح البیان)

۱۲ - او په دغه ورځ به جنت ایمان او تقویٰ والو ته بیخي نژدې کړې شي.
حسنؒ وائي: دوی به ورته نژدې کړې شي، نهٔ دا چه هغه به د خپل ځای نه زائل کیږي.
ابن زیدؒ د [أُزْلِفَتْ] تفسیر دا بیان کړې چه جنت به پرهیزګارو دپاره ډولی او ښائسته جوړ کړې شي. اوله معنیٰ د لغت سره زیاته مناسبه ده. ځکه چه زُلفیٰ په عربیٔ کښې قرب (نژدې والی) ته وائي.

| |
|---|
| عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ ﴿١٤﴾ فَلَا أُقْسِمُ |
| پوهه به شي هر نفس په هغه عمل چه حاضر کړې ئې وي نو خامخا قسم کوم زهٔ |
| بِالْخُنَّسِ ﴿١٥﴾ الْجَوَارِ الْكُنَّسِ ﴿١٦﴾ |
| په پټیدونکو ستورو باندې. چه روان دي، ښکاره کیږي د شپې. (آرام کوي د |
| وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ ﴿١٧﴾ وَالصُّبْحِ |
| شپې). او قسم دې په شپه کله چه شا کړي (مخ راواړوي) او قسم دې په صبا باندې |
| إِذَا تَنَفَّسَ ﴿١٨﴾ إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿١٩﴾ ذِي قُوَّةٍ |
| کله چه ساه واخلي. یقیناً دا خامخا وینا د رسول عزتمند ده. خاوند د طاقت دې، |
| عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ ﴿٢٠﴾ مُطَاعٍ |
| په نیز د مالك د عرش باندې مرتبې والا دې. خبرې ئې منلې شي |
| ثَمَّ أَمِينٍ ﴿٢١﴾ وَمَا صَاحِبُكُم بِمَجْنُونٍ ﴿٢٢﴾ وَلَقَدْ |
| په دغه ځائې کښې امانتکر دې. او نهٔ دې ملګرې ستاسو لیونې. او یقیناً |
| رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِينِ ﴿٢٣﴾ وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ |
| دهٔ لیدلې دې هغهٔ لره په کنارو (غاړو) ښکاره کښې. او نهٔ دې دې په وحی باندې |
| بِضَنِينٍ ﴿٢٤﴾ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَّجِيمٍ ﴿٢٥﴾ |
| بخل کونکې. او نهٔ ده دا وینا د شیطان رټلي شوي. |

**تفسیر** : عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا أَحْضَرَتْ : دا د مخکنو شرطونو جزاء ده۔ یعنی داسے لوی لوی کارونه چه وشی نو په دغه وخت کښ به هر نفس ته معلوم شی هغه عمل چه دهٔ حاضر کړیدے۔ کومو خلقو چه نیکئ کړے وی، هغوئ ته به د خپلو نیکیو پته ولګی، او جنت ته به ولیږلے شی، او چا چه بد اعمال کړے وی، هغوئ ته به د خپلو بدو پته ولګی، او جهنم ته به ورډیکه کړے شی۔

د سورهٔ آل عمران په (۳۰) آیت کښ الله تعالیٰ فرمایلی دی :

﴿ يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ مُّحْضَرًا ﴾

(په کومه ورځ چه به هر کس خپلے کړے نیکئ او بدئ خپلے مخے ته بیامومی)۔

نفسٌ نکره ده، کله په سیاق د اثبات کښ هم د عموم معنیٰ ورکوی۔

نو هر کله چه خپل عمل وګوری نو پته به ورته ولګی چه ددے عظیم جنت دپاره څومره خواری پکار وه، او ددے عظیم اُور نه د بچاؤ دپاره څومره خواری پکار وه۔

نو کافر به وائی چه زهٔ خو تباه شوم، او فاسق به وائی چه ما ولے ګناهونه کول۔ او مؤمن غیر مُحسن به وائی چه ما په خپلو اعمالو کښ احسان ولے نهٔ پیدا کولو۔ خلقو مزے وکړے او مخکښ جنت ته لاړل او زهٔ روستو پاتے شوم۔

**فَلَا أُقْسِمُ:** اُوس د قرآن کریم حقانیت او رشتینوالے بیانوی۔

ربط :

مرګ نه پس د ژوند او د قیامت د ورځے جزاء او سزا چه کومه عقیده په قرآن کریم کښ بیان شوے ده، تر څو پورے چه یو کس په قرآن کریم باندے د اِلٰهی کلام کیدو ایمان رانهٔ وړی، د مرګ نه پس د ژوند دا عقیده هم نهٔ منی۔ دے وجے نه الله تعالیٰ په دے آیتونو کښ په حرکت کونکو او ولاړو او په پټ او ښکاره ستورو، دارنګه په شپه او صبا باندے قَسَم خوړلے دے او انسانانو ته ئے دا یقین ورکړے دے چه دا قرآن چه په هغے کښ د مرګ نه پس د ژوند عقیده بیان شوے ده، دا د کوم انسان کلام نهٔ دے بلکه د رب العالمین کلام دے چه جبرئیل امین په خاتم النبیین (ﷺ) باندے نازل کړے دے۔

**فَلَا أُقْسِمُ بِالْخُنَّسِ:** په هغه ستورو باندے قسَم دے چه هغه د ورځے په وخت پټیږی، (یا په هغه ستورو چه روستو کیدونکی دی په مزل کښ)

الخنس جمع د خَانِسْ ده، د ښکاره کیدو نه روستو پټیدو ته وئیلے شی، یعنی چه د شپے ښکاره وی نو د ورځے پټ شی۔ (یعنی هغه ستورو باندے قسم دے چه د ورځے پټیږی)۔

مفسرین لیکی چه دا پنځه مشهور ستوری دی: زُحل، مشتری، مِریخ، زهره او عطارد۔

د فراءؒ وینا ده چه دا پنځه ستوری د نمر راوتو نه پس داسے پټیږی څنګه چه سُوئ (خرګوشان) په غارونو کښ پټیږی۔ د لغت په کتاب (الصحاح) کښ [الْخُنَّس] ټولو ستورو ته وئیلے شوی دی، څکه چه د ورځے ټول پټیږی۔

خَنَسَ يَخْنُسُ (يَخْنِسُ) خُنُوْسًا اَیْ اِنْقَبَضَ وَتَاَخَّرَ وَقِيْلَ رَجَعَ۔

یعنی راغونډیدو، او روستو کیدو او بعض وائی واپس کیدو ته وائی۔

(المحکم والمحیط الاعظم ۵/۷۹)

او خنس د پوزے روستو کول دی د مخ نه سره د لړ پورته کولو د تیندوړی نه۔ او دا ستوری هم د ورځے روستو کیږی او واپس کیږی نو پټ شی۔

زمخشری وائی: ته به یو ستورے وینی چه په آخر د برج کښ به وی نو ناڅاپه به هغه اول ته راغلے وی۔

اَلْجَوَارِ: دا جمع د جَارِيَةٌ ده، یعنی دا ستوری د نمر او سپوږمئ سره روان وی، او د نمر د رڼرا لاندے پټ هم وسیږی۔ ❁ یا په خپلو مدارونو کښ روان وی۔

اَلْکُنَّسِ: ۱- جمع د کانس او کَانِسَةٌ ده۔ اَیْ تَتَقَرَّرُ بِاللَّيْلِ۔ چه قرارے نیونکی دی د شپے۔

۲- دا د کَنْسٌ نه دے، او کنس معنیٰ ده په جاله او سوره کښ پناهی نیول، دارنګه پټیدلو ته وائی۔ نو معنیٰ دا ده: (الکنس: پټیدونکی دی د ورځے)

نو د ستورو خنوس ددے رجوع (واپس کیدل) دی، او ددے کنوس ددے پټیدل دی لاندے د رڼرا د نمر نه۔ (فتح البیان)

۳- یا کنس معنیٰ ده: داخلیدونکی په خپل مکان کښ په داسے طریقے سره چه په هغه مکان کښ ښکاریږی یعنی ستوری د شپے په خپلو منزلونو کښ وی او ښکاریږی۔ (احسن الکلام)

پدے کښې ډیره غوره دا ده چه ددے نه ټول ستوري مراد دي ځکه چه دا درے واړه حالتونه په ټولو ستورو کښې شته، او کومو مفسرینو چه دا وئیلي دي چه دا اوه یا پنځه ستوري ګرځي، او نور په ځای ولاړ دي پدے باندے هیڅ صحیح دلیل نشته۔

بیا دلته بعض مفسرینو وئیلي دي چه دا الخنس او الجوار او الکنس د هوسۍ یا د وحشي غواګانو صفات دي نو حافظ ابن القیمؒ په بدائع التفسیر کښې پدے باندے په لسو وجو سره رد کړیدے۔

**وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ** : دا د اضداوو نه دے (مبرّد) د اَدْبَرَ او اَقْبَلَ معنیٰ ئے ده۔ یعني چه شا راواړه وي یا رامخامخ شي) معنیٰ دا ده : ((او په شپه باندے قسَم دے کله چه هغه ورځ روستو پریدي او مخکښې راځي، او په هر یو شئ باندے خپل تور خادر اچوي))،

**وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ**: ۱- (اَیْ اِمْتَدَّ حَتّٰی یَصِیْرَ نَهَارًا)

او په صبا باندے قسَم دے چه د هغے رنړا خوره‌رې ترد ے چه پوره ورځ را اوځي۔

۲- اَیْ اَظْهَرَ وَاَشْرَقَ۔ (شنقیطیؒ) کله چه ښکاره شي او روښانه شي۔

**إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ**: دا جواب قسم دے۔ یعني قسم پدے دے چه بیشکه هغه قرآن چه هغه د انسانانو مخے ته د مرګ نه پس د ژوند عقیده پوره تشریح او وضاحت سره پیش کوي، دا د الله تعالیٰ معزز او مکرم رسول جبریل امین د خپل رب له اړخه په نبي کریم ﷺ باندے نازل کړے۔

## د قسم او د جواب قسم مناسبت او ارتباط دا دے

چه په ستورو، شپه او صبا باندے قسم شویدے نو د قرآن آیتونه مشابه دي د ستورو سره چه پدے کښې رنړا ده او ډیر هم دي، نو دغه شان د قرآن آیتونه رنړا لري، او ډیرے فائدے پکښې پرتے دي۔ او ستوري په خپل مدار کښې په آرام آرام روان وي نو دغه شان قرآن کریم الله تعالیٰ نجماً نجما (لږ لږ) نازل کړیدے۔

او په شپه کښې د کافرانو کفر ته اشاره ده چه د قرآن د نزول نه روستو د کافرانو کفر چه په هغے کښې تیارے دي شا راواړه وله او تیارے ئے په ختمیدو شوے۔

(پدے وجه په عَسْعَسَ کښې د (اَدْبَرَ) شا راړولو معنیٰ غوره ده چه ددے سره ئے مناسبت زیات دے) او د صبح نه مراد صبح الاسلام ده، د قرآن په وجه باندے د اسلام رنړا وخت په

وخت روښانه کیده، خلق به لږ لږ په اسلام کښې داخلیدل، تردې چه الله تعالیٰ ورله غټه ورځ ورکړه. او په عامه دنیا کښې خور شو. لکه څنګه چه صبا وخت راځي، او شپه شا راړه وي او ستوري کله پټیږي، او کله ښکاره کیږي، نو دغسې د قرآن کریم رڼرا به تاسو ته ښکاره کیږي او کله نهٔ. او یو وخت کښې به قرارې ونیسي او شپه به شا راواړه وي او د اسلام صبا به متنفس شي یعني فراخه به شي.

حافظ شنقیطیؒ لیکي: دلته مناسبت داسې دے:

[إِنَّ الْقُرْآنَ الْمُقْسَمَ عَلَيْهِ حَالُهُ فِي الثُّبُوتِ وَالظُّهُوْرِ وَحَالُ النَّاسِ مَعَهُ كَحَالِ هٰذِهِ الْكَوَاكِبِ الثَّوَابِتِ لَدَيْكُمْ فِيْ ظُهُوْرِهَا تَارَةً وَاخْتِفَائِهَا أُخْرٰى]

چه قرآن کریم چه په دهٔ باندې قسم کړې شویدې چه دا د رسول کریم وینا ده، ددهٔ حال په ظهور او ثبوت کښې، او د خلقو حال ددهٔ سره دا مشابه دے د حال ددې ستورو سره چه کله تاسو ته ښکاره کیږي او کله درنه پټیږي. (دغه شان دا قرآن بعضو ته د الله تعالیٰ کلام ښکاره کیږي او بعضو نه دا خبره پټیږي)

او دارنګه په شان د حال د شپې او د صبا دے. نو دا قرآن د بعض خلقو دپاره د اعتماد او هدایت ذریعه وګرځي لکه صبا چه څنګه ښکاره شي، د دوی زړونه دے ته کولاو شي، او د دوی عقلونه په دے باندې هدایت حاصل کړي، نو قرآن د هغوی دپاره روح او نور جوړ شي او د نورو خلقو د زړونو دپاره تیارهٔ وګرځي، د دویٔ عقلونه ددې نه ړاندهٔ شي، او په غوږونو کښې ئې بوج راشي، او قرآن پرې ړوند والې وګرځي.

دارنګه څه کسان د ستورو په شان وګرځي، کله د دویٔ په زړونو کښې رڼرا د قرآن بَله شي نو د رڼرا نخې نښانې ورته ښکاره شي نو ددې رڼرا سره روان شي. او کله د دویٔ نه د قرآن نُور غائب شي، نو د دویٔ عقلونه ددې نه روستو شي، او ددې مخې ته د دوی زړونه پټ شي. لکه چه الله تعالیٰ فرمیلي دي:

﴿كُلَّمَا أَضَاءَ لَهُمْ مَشَوْا فِيْهِ وَإِذَا أَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا﴾. (بقره: ۲۰)

❁ په بله طریقه: ستوري په شان د پخوانو کتابونو شمارلے کیږي چه هغه په خپل وخت کښې رابښکاره شوي وو، یو وخت پورې روان وو، بیا روستو پرې پټوالې راغې. وَاللَّيْلِ إِذَا عَسْعَسَ نه مراد د جاهلیت تیارې دي. وَالصُّبْحِ إِذَا تَنَفَّسَ نه مراد د اسلام ښکاره والې دې. نو د اسلام رڼرا به زر راخوره شي لکه څنګه چه د ورځې رڼرا راخوریږي، او

هیڅکله به ددې په پتهولو باندې هیڅ قوت غالب نشي، او دا به تهولو آفاقو ته عام شي هر څومره چه دوئ د هغه مخې ته ودریږي. ﴿يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللهِ بِأَفْوَاهِهِمْ﴾ انتهی.

(اضواء البیان فی ایضاح القرآن بالقرآن ۸/٤٤)

ابن عثیمینؒ فرمائي: الله تعالیٰ پدې مخلوقاتو قسم کړیدې د وجه د عظمت ددې نه نو دغه شان قرآن هم عظیم کتاب دې.

ذِیْ قُوَّةٍ: هغه جبریل امین چه هغهٔ له د هغهٔ رب داسې زبردست قوت ورکړې چه هیڅ یو انسان یا پیرې د هغهٔ سره موجوده وحي د هغهٔ نه نشي اخستې، او نهٔ په هغې کښې څهٔ کمې او زیاتې کولې شي، لکه څنګه چه د سورهٔ النجم په (٥) آیت کښې راغلی دی: ﴿عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ﴾ (نبي ﷺ ته پوره قوت والا ملائك ښودنه کړې ده).

او دا روح الامین ملائك د عرش والا په نیز ډیره اوچته مرتبه لري، او په آسمانونو کښې اوسیدونکي ټول د هغهٔ خبره مني، او هغه د خپل رب د وحي او د رسالت د رازونو ډیر امانت دار دې.

ذِیْ قُوَّةٍ: پدې کښې اشاره ده چه شیطانان دهٔ ته نزدې نشي راتللې، په راوړلو کښې ددهٔ مقابله نشي کولې.

عِندَ: دا د قُرب او مکانت دپاره دې. او په مَكِينٍ پورې متعلق دې، او مقدم ئې راوړیدې پدې کښې اشاره ده چه دا مکانت د بل هیڅ ملائك دپاره حاصل نهٔ دې. نو هرکله چه دې د الله تعالیٰ په نیز دومره نزدې او مرتبې والا دې، نو دې دروغژن او مُفتری نشي کیدې.

ذِیْ الْعَرْشِ: ددې نه مراد الله تعالیٰ دې.

مَكِينٍ: اَیْ ذُوْ مَكَانَةٍ. د مرتبې والا دې.

مُطَاعٍ ثَمَّ: دا ددهٔ مرتبه ده د ملائکو ترمینځ. یعني په آسمانونو کښې ددهٔ خبره منلې شي. حسن بصريؒ فرمائي: الله تعالیٰ په آسمانونو والو باندې د جبریل طاعت فرض کړیدې لکه چه په زمکې والو باندې ئې د محمد ﷺ طاعت فرض کړیدې.

او پدې کښې اشاره ده چه زر دې چه محمد ﷺ به هم په زمکه کښې مطاع وګرځي په شان د جبریل عليه السلام په آسمانونو کښې، او همدغسې وشوه. او اشاره ده چه دا نبي هم ددې دپاره راغلې دې چه ددهٔ خبره به منلې شي.

دِ ثَمَّ نه مراد آسمانونه دی. او دا د مُطاع او د امین دواړو سره لګیږي.
اَمِيْنٍ: او په وحي باندې امانتدار دے. (په آسمانونو کښې)
وَمَا صَاحِبُكُم: دا د رسول الله ﷺ تزکیه ده. او په دے کښې رد دے په قول د مشرکانو چه هغوی به نبی کریم ﷺ ته لیونے یا پیریانے وئیلو حال دا چه دوئ ته ښه معلومه وه چه هغه د ټولو عقلاؤ نه زیات عاقل دے.
رَآهُ بِالْأُفُقِ الْمُبِيْنِ: یعنی رسول الله ﷺ جبریل ﷺ لره په ښکاره کنارو کښې ولیدو، ددے کنارے نه مشرقي جانب دے، نو ددے نه مشرقي اطراف مراد دی، یا ټول اطراف مراد دی، او دا لیدل په مکه کښې په محله اجیاد کښې وو، چه رسول الله ﷺ ولیدو چه پنځه سوه وزرے ئے وے چه کنارے ئے پټے کړے وے او بیا راکوز شو.
حافظ ابن کثیرؒ لیکی: په ظاهره کښې دا سورت د معراج د واقعے نه مخکښې نازل شوے وو. ځکه چه په دے کښې صرف د اولنی لیدلو تذکره شوے ده. په دویم ځل د جبریل ﷺ لیدلو ذکر په سورتِ نجم کښې راغلے چه هغه د سورهٔ إسراء نه پس نازل شوے. هلته الله تعالیٰ فرمایلي دی:

﴿ وَلَقَدْ رَآهُ نَزْلَةً أُخْرٰى عِنْدَ سِدْرَةِ الْمُنْتَهٰى عِنْدَهَا جَنَّةُ الْمَأْوٰى ﴾

(نبی ﷺ یو ځل بیا جبریل لیدلے وو، سدرةُ المنتهیٰ خواته، ددے سره جنة المأویٰ دے).
او دلته جبریل ﷺ لره ددهٔ په اصلی صورت کښې د لیدلو ذکر کولو نه مقصد دا بیانول دی چه نبی ﷺ هغهٔ لره په خپلو سترګو اولیدلو، او د هغهٔ نه ئے د الله تعالیٰ وحی او د هغهٔ کلام په حقیقی معنو کښې او په یقینی توګه واخستهٔ، په دے کښې د ذرے هومره د شك او شبهے ګنجائش نشته.
وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ: او نبی ﷺ چه د الله تعالیٰ قیمتي وحی حاصله کړه، هغه ئے د زړهٔ په پوره فراخئ سره په غیر د کمی زیاتی نه امت ته رسولے ده، په دے باره کښې ئے د ذرے هومره د بخل نه کار نهٔ دے اخستے، بلکه پوره تفصیل سره ئے امت ته بیان کړه. که چرے هغه کاهن وے نو د کاهنانو پشان به ئے په غیر د اُجرت اخستلو نه نورو خلقو ته دا نهٔ ښودلے، دے وجے نه اے د قریشو خلقو! ستاسو دا وینا هم صحیح نهٔ ده چه محمد (ﷺ) کاهن دے، او قرآن د کوم مردود شیطان کلام دے چه هغه ئے محمد (ﷺ) ته وخت په وخت ښائی.

**عَلَى الْغَيْبِ** : د غیب نه مراد وحی د قرآن کریم ده، او دے ته غیب اضافی وئیلے شی ځکه چه په حواسو او په عقل سره ددے ادراك نشی کیدے، بلکه دا قرآن په سبب د وحي سره نبی کریم ﷺ ته رالیږلے شویدے۔

**بِضَنِيْنٍ** : د ضَنٌّ، نه دے په معنیٰ د بخل سره۔ او که دا په ظاء سره شی نو په معنیٰ د مُتَّهَم (تهمتی) سره دے۔

**وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ** : دا قرآن وینا د شیطان رجیم نهٔ ده، د درے وجو نه چه په سورة شعراء کښ تیر شویدی۔ یو دا چه شیطان د قرآن د جوړولو طاقت نهٔ لری، دویم دا چه مَا يَنْبَغِيْ لَهُمْ ۔ شیطان داسے مزیدارے خبرے چرته راوړے شی۔ دریم: او هغوی د ملائکو خوا ته نشی ورتللے نو څنګه به قرآن راوړی۔

**فائده** : پدے آیتونو کښ د صحیح حدیث شرطونه ذکر شویدی لکه په سورة النجم کښ ذکر شوی وو نو ګویا که الله تعالیٰ فرمائی چه دا قرآن هم یو حدیث دے، دا د الله تعالیٰ حدیث دے، د الله رب العالمین د طرفنه پدے سند نقل دے چه جبریل عَنِ اللهِ تَعَالٰى اِلٰى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ۔ دا قرآن محمد ﷺ د جبریل علیه السلام نه هغهٔ د الله تعالیٰ نه راوړیدے۔

نو دا رشتینی او یقینی ثابت کتاب دے ځکه چه ټول راویان ئے ثقات بلکه اوثق الثقات دی، جبریل علیه السلام هم مُعتمد دے، او رسول الله ﷺ هم۔ کذاب او مفتری راوی پکښ نشته نو موضوع (منګرت) حدیث نهٔ دے۔ بیا کیدے شی معتمد وی لیکن دماغ به ئے کمزوری وی، او خبره به ترے خطاء شوی، یا هیره شوی وی نو وے فرمایل : ﴿ذِىْ قُوَّةٍ﴾ دا مضبوط ذهن والا دے۔

دا خو د جبریل علیه السلام تزکیه وشوه اُوس د رسول الله ﷺ تزکیه بیانیږی۔

**وَمَا صَاحِبُكُمْ** : کیدے شی چه راوی نه خبره خطاء شوی وی، او وئیل شوی ورته یو څه وی او بیانوی بل شے، نو فرمائی چه دا پیغمبر لیونے نهٔ دے۔

بیا کیدے شی چه سند به متصل نهٔ وی، مینځ کښ به انقطاع راغلی وی، شاګرد به د استاذ سره ملاقات نهٔ وی شوے نو وے فرمایل : ﴿وَلَقَدْ رَاٰهُ بِالْاُفُقِ الْمُبِيْنِ﴾ چه دے نبی جبریل علیه السلام په ښکاره کنارو کښ ولیدو۔ بیا کیدے شی چه هغه څه آوریدلی وی هغه ئے نهٔ وی ادا کړی۔ لکه یو راوی د خپلے رائے خلاف یو روایت بیان نکړی، نو فرمائی چه ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ﴾ کله په یو راوی باندے اداء د مَاسَمِعَ واجب وی نو دهٔ هم هغه

ادا کړیدے، او بخل ئے پرے نۀ دے کړے۔

وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَيْطَانٍ رَجِيمٍ: یعنی پدے مینځ کوم ضعیف راوی نۀ دے راغلے بلکه متصل قوی سند دے۔ نو هرکله چه داسے یقینی او صحیح حدیث ستاسو مخے ته راغے ﴿فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ﴾ نو بیا تاسو ددے نه کوم خوا منډے وهئ څکه چه داسے حدیث خو واجب العمل وی نو قرآن هم واجب العمل دے، ددے نه اوړیدل جرم دے۔ او دا د ټول عالَم دپاره نصیحت او یاداشت دے۔

| فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ ﴿٢٦﴾ إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ ﴿٢٧﴾ |
|---|
| نو کوم طرفته ځئ تاسو۔ نۀ دے دا قرآن مګر نصیحت دے دپاره د مخلوقاتو۔ |
| لِمَنْ شَاءَ مِنكُمْ أَنْ يَسْتَقِيمَ ﴿٢٨﴾ وَمَا تَشَاؤُونَ |
| د چا چه خوښه وی ستاسو نه چه په نیغه لاره روان شی۔ او نشئ غوختے تاسو |
| إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللّٰهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٢٩﴾ |
| مګر چه اُوغواړی الله چه رب د مخلوقاتو دے۔ |

**تفسیر**: فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ: اَیْ اَیْنَ تَعْدِلُوْنَ عَنْ هٰذَا الْقُرْآنِ وَعَنْ طَاعَتِهٖ (قتادة)

تاسو چرته ځئ ددے قرآن نه یعنی ددۀ نه مخ اړوئ او ددۀ طاعت نۀ کوئ۔

۲- اَیْ طَرِیْقٍ تَسْلُکُوْنَ اَبْیَنَ مِنْ هٰذِهِ الطَّرِیْقَةِ الَّتِیْ قَدْ بَیَّنْتُ لَکُمْ۔ (زجاج)

یعنی تاسو کومه لاره باندے روانیږئ چه هغه ددے لارے نه ډیره ښکاره وی کومه چه ما تاسو ته بیان کړه۔

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ: پدے کښ قرآن کریم ته ترغیب دے چه دا ښکلے خبرے الله تعالیٰ رالیږلی دی چه انسان ته هر خیر رایادوی او د هر شر نه ئے منع کوی، او د قیامت یره ورکوی۔

لِمَنْ شَاءَ مِنكُمْ أَنْ يَسْتَقِيمَ: اُوس وائی چه د قرآن کریم نه فائده څوك اخلی؟ نو هر هغه څوك چه جازمه (کلکه) اراده لری، یعنی څوك چه دا اراده لری چه په نیغه لاره روان شی، یعنی په قرآن باندے د عمل اراده وکړی نو دا قرآن به ورله فائده ورکړی، یعنی ستا دا اراده وی چه زۀ استقامت حاصلوم څکه چه په قیامت کښ استقامت (په دین

باندے مضبوط عمل کول) پکار راځی۔

لِمَنْ شَاءَ : دا بدل دے د (لِلْعَالَمِيْنَ) نه۔ يعنی دا قرآن خو نصيحت دے د ټول مخلوق دپاره خو فائده ترے هغه څوك اخلی چه هغه اراده د استقامت لری۔

او په لِمَنْ شَاءَ كښ په جبريه ؤ باندے رد دے چه هغوی انسان مجبور محض ګڼړی نو دلته وائی چه د انسان دپاره مشيت او اراده او فعل شته۔

وَمَا تَشَاؤُونَ : يو تن به استقامت كوی، نو عُجب (خود پسندی) به پكښ پيدا شی، نو پدے جمله كښ الله تعالیٰ د استقامت حاصلونكی عُجب دفع كوی چه تكبر ونكړے څكه چه تاسو د هيڅ نيكئ اراده نشئ كولے مګر دا چه الله تعالیٰ درله اراده وكړی۔ نو تهٔ په هر حال كښ رب العالمين ته محتاج ئے۔ بنده بغير د هغهٔ د قدرت او مشيئت نه عاجز او مانده دے۔

دارنګه پدے جمله كښ تَضَرُّع اِلَى الله غرض وی، چه هركله هرڅه د الله تعالیٰ په واك كښ دی، او د هغهٔ په توفيق سره حاصليږی، نو بس همغه الله تعالیٰ ته عاجزی او زاری وكړئ چه هغه مو په نيغه لاره باندے روان كړی او نيكيو ته مو رهنمائی وكړی۔

او پدے جمله كښ په قدريه او معتزله ؤ باندے رد دے چه هغوی د انسان اراده مستقله ګڼړی۔ نو الله تعالیٰ فرمائی چه ستاسو اراده زما د ارادے تابع ده۔

د هر چا د ارادے او فعل نه مخكښ د الله تعالیٰ اراده وی۔ نو هله به د بنده فعل او اراده تاثير لری، كه د الله تعالیٰ اراده نهٔ وی شوی، نو كه د بنده هر څومره اراده وشی او فعل كول غواړی نو هغے كښ به اثر نهٔ وی۔ وبالله التوفيق۔

## امتيازات سورة التكوير

۱- د قرآن په صدق باندے اُوږد قسم وشو۔

۲- د رسول الله ﷺ او د جبريل امين ښكلے صفات پكښ ذكر شو۔

۳- د حديث د ثبوت او حجيت اصول پكښ ذكر شو۔

٤- د الله تعالیٰ قدرتِ او مشيئتِ مطلقه پكښ ذكر شو۔

ختم شو تفسير د سورة التكوير په توفيق د رب العالمين سره په رمضان ۱۹ موافق ۲٤/جون۲۰۱۶ء

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

| آیاتها (۱۹) | (۸۲) سُوۡرَةُ الۡاِنۡفِطَارِ مَکِّیَّةٌ | رکوعاتها (۱) |
| --- | --- | --- |

سورة الانفطار مکی دے، په دے کښې نولس آیتونه او یوه رکوع ده

## تفسیر سورة الانفطار

**نوم** : (۱) دے ته سورة الانفطار، (۲) او سورة اِنۡفَطَرَتۡ (۳) او سورة اِذَا السَّمَاءُ انۡفَطَرَتۡ (٤) او سورة الۡمُنۡفَطِرَه هم وائی۔

د [الانفطار] نه وتے دے، چه ددے معنیٰ شلیدل دی، چونکه په دے سورت کښې د قیامت په ورځ د آسمان د شلیدلو ذکر دے، دے وجے نه [الانفطار] ددے نوم کیښودل شو۔

**د نازلیدو زمانه** : دا سورت په اتفاق سره مکی دے۔ ابن عباس او ابن زبیر رضی الله عنهم نه همدا نقل شوی۔

### مناسبت

۱- په مخکنی سورت کښې په (اَیۡنَ تَذۡهَبُوۡنَ) سره زجر ذکر وو نو پدے سورت کښې په (مَا غَرَّكَ) سره زجر دے۔

۲- په مخکښې سورت کښې د قیامت د هیبت دپاره دولس احوال ذکر شو، نو پدے سورت کښې د هغے اختصار په څلورو حالاتو سره کوی۔

۳- په هغه سورت کښې د قرآن کریم، او د رسول رشتینوالے وو، او پدے سورت کښې د هغے منکرینو ته سخته رټنه ورکوی۔

٤- مخکښې سورت کښې هم دا ذکر شو چه انسان به په خپل عمل باندے افسوس کوی، نو دلته همدغه شان خبره ده مگر په لږ فرق سره۔

## مقصد د سورت

حَسْرَةُ الْإِنْسَانِ عَلٰى عَمَلِهٖ وَبِتَرْكِ الْعَمَلِ۔ انسان به په خپل عمل (گناه) باندے افسوس کوی، او دا افسوس به کوی چه نیك عمل ئے ولے پریخودو۔

یعنی دا عمل مے ولے کولو او دا عمل مے ولے پریخودو۔ په مخکښې سورت کښې عَلِمَتْ نَفْسٌ مَا أَحْضَرَتْ کښې افسوس وو پدے خبره چه گناه مے ولے کوله، او په نیك عمل کښې مے تقصیر ولے کولو، ځکه چه هلته ئے عملونه حاضر کړیدی، نو په هغے باندے افسوس کوی۔ او دلته وائی (مَا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ) بعض عملونه ترے پاتے شویدی نو په هغے باندے افسوس کوی۔

ددے دپاره الله تعالیٰ د قیامت څلور هیبتونه بیانوی، بیا دغه موضوع بیانوی، بیا زجر دے چه ته چه دا بد عملونه کوے او نیکئ پریدے، نو ته په دوه کسانو دوکه شوے ئے، یو په الله تعالیٰ باندے او بل په ملائکو باندے۔ یعنی بد عمل انسان ولے کوی؟ نو ددے دوه وجے بیانوی، بیا ددے دوه وجو نه یوه وجه بیانوی۔

هغه دا چه په الله تعالیٰ باندے غرور انسان کښې ولے راځی ؟ دا په سبب د انکار د آخرت، یعنی د آخرت نه نۀ یریږی نو ځکه ئے په الله تعالیٰ باندے پرواه نۀ وی،

او دا تولے خبرے د یو بل سره لگیږی چه قیامت راځی، په قیامت کښې به په خپل عمل باندے افسوس کوے، دا بد عملونه انسان ولے کوی؟ د دوه وجو نه یو په بل الله دهوکه شویدے او بل په ملائکو۔

په الله تعالیٰ او په ملائکو ولے دهوکه کیږی؟ نو دا د آخرت د نۀ منلو د وجه نه ﴿كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ﴾ نو بیا د آخرت هیبت واوریٔ۔

او دا سورت هم د مؤمن دپاره پوره دعوت دے او هغه دپاره پوره نصیحت دے۔

| إِذَا السَّمَآءُ انفَطَرَتْ ﴿١﴾ وَإِذَا الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ ﴿٢﴾ وَإِذَا الْبِحَارُ |
| --- |
| کله چه آسمان اُوچوي۔ او کله چه ستوري اُودوړېږي۔ او کله چه دریابونه |
| فُجِّرَتْ ﴿٣﴾ وَإِذَا الْقُبُورُ بُعْثِرَتْ ﴿٤﴾ عَلِمَتْ نَفْسٌ |
| روان کړے شي۔ او کله چه قبرونو والا راپورته کړے شي۔ پو هه به شي هر نفس |
| مَّا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ ﴿٥﴾ |
| په هغه عمل چه مخکښ ئے لیږلے دے او روستو ئے پریخے دے۔ |

**تفسیر**: په اول کښې الله تعالیٰ د قیامت د اثبات دپاره د هغه ورځې څلور حالات ئے ذکر کړیدي چه ددے نه درے به د قیامت ښکاره کیدو نه مخکښ د اولنۍ شپیلۍ نه پس کیږي، او د څلورم راښکاره کیدل – یعني د قبرونو نه د مړو ژوندي کیدل – به د دویمے شپیلۍ نه پس په آخرت کښې وي.

او دا کارونه ئے د شرط په طریقه ذکر کړیدي، او ددے په جواب کښې ئے وئیلي دي چه کله دا کارونه راښکاره شي، په دے وخت کښې به د هر انسان یقین راشي په هغه عملونو چه کوم ئے په دنیا کښې کړي وو۔ نیك انسان ته به معلومه شي چه دهٔ دآخرت خومره ښه توښه د خپل ځان دپاره لیږلے وه، او گنهگار ته به هم ښه معلومه شي چه د کومو گناهونو د کولو په وجه دے نن د ذلت او رسوائي او هلاکت او بربادئ سره مخامخ کیږي۔

انفَطَرَتْ: إِنفِطَار، د فَطْر نه دے، تازه چودو او شلیدو ته وائي۔ یعني اول ځل به وچوي۔ لکه چه د اُوښ د یو بچي اول غاښ راوخیژي نو عرب وائي: فَطَرَ نَابُ الْبَعِيرِ۔

الْكَوَاكِبُ انتَثَرَتْ: او کله چه ستوري را پریوزي او خوارهٔ شي، لکه څنگه چه هار مات شي نو د ملغلرو دانے په زمکه خورے ورے شي۔

انتَثَرَتْ: مخکښ سورت کښې (انكَدَرَتْ) خروالے د ستورو ذکر شو چه بے نوره شي نو دلته د هغے نه ترقي ده چه د خړ والي نه پس به گهوډ راودوړېږي۔

وَإِذَا الْبِحَارُ فُجِّرَتْ: او کله چه د ترخو اُوبو سمندر د خوږو دریابونو د اُوبو سره یو ځائے شي، یعني زمکه به دومره سخته وخوزیږي، او داسے خطرناکه زلزله به واقع شي

چه هر یو شے به مات رامات شی، او په زمکه باندے موجودے اوبهٔ به یو بل سره ملاؤ شی۔

فُجِّرَتْ: مخکښ سورت کښ راغلل چه دریابونه به ډک کړے شی نو دلته ترقی کوی چه بیا به په مخ د زمکه روان کړے شی۔

حسن بصریؒ وائی: د فُجِّرَتْ معنیٰ دا ده چه ددے اُوبه به لاړے شی او وچے شی۔ (او ددے نه به اُور جوړ شی)۔ دارنګه ددے د سُجِّرَتْ سره منافات نشته، پدے طریقه چه دلته ابتدائی حالت ذکر دے چه اول به روان کړے شی او هلته انتهائی حالت ذکر دے چه بیا به د جهنم سره ملاؤ شی، نو تولو نه به اُور جوړ شی۔ او دا روانیدل به جهنم طرفته وی۔ لهذا په آیتونو کښ هیڅ اشکال نشته۔

وَإِذَا الْقُبُورُ بُعْثِرَتْ: او قبرونه به التهه کړے شی، او تمام مړی به ژوندی شی، او پورته به راشی۔ لکه همدا د بعثرة معنیٰ ده، یعنی خاورے التهه کول او اړه ول، او لاندے باندے کول او نړه ول۔

الْقُبُورُ: دا په ظاهر دے او معنیٰ دا ده: چه قبرونه لاندے باندے کړے شی، او خاورے ئے واړه ولے شی۔ یا ونړه ولے شی۔ لکه عرب وائی: [بَعْثَرَ اَیْ قَلَبَ التُّرَابَ وَبَعْثَرَ الْمَتَاعَ قَلَبَهٗ ظَهْرًا لِبَطْنٍ وَبَعْثَرْتُ الْحَوْضَ اِذَا هَدَمْتُهٗ وَجَعَلْتُ اَعْلَاهُ اَسْفَلَهٗ]۔

بَعْثَرَ یعنی خاوره ئے واړه وله، بعثر المتاع یعنی سامان ئے لاندے باندے واړه ولو۔ بعثر الحوض یعنی حوض ئے ونړه ولو او لاندے باندے ئے کړو۔

یا ذکر د قبور دے او مراد ترے نه مړی دی۔ یعنی کله چه د قبرونو والا راپورته کړے شی او د قبرونو نه راویستلے شی۔

عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ وَأَخَّرَتْ: ددے درے معانی په سورة القیامه کښ تیرے شوے۔

(۱) قَدَّمَتْ فِیْ اَوَّلِ عُمُرِهٖ وَاَخَّرَتْ فِیْ آخِرِ عُمُرِهٖ ۔ کوم عمل ئے چه د عمر په اول او آخر کښ کړیدے۔ (۲) قَدَّمَتْ فِی الْحَیَاةِ وَاَخَّرَتْ بَعْدَ الْمَمَاتِ ۔ یعنی په ژوند کښ ئے کوم عمل کړیدے، او د مرګ نه روستو ئے کوم عمل پریښے دے۔

یعنی هر هغه طور طریقه به ورته هم معلومه شی کومه چه دهٔ په دنیا کښ جاری کړے وه او په کومه باندے چه ددهٔ نه پس خلقو عمل کړے وو۔

(۳) قَدَّمَتْ اَیْ فَعَلَتْ وَاَخَّرَتْ : اَیْ تَرَکَتْ ۔ کوم عمل ئے چه کړیدے او کوم ئے چه پریخوستے دے۔
او د پته لګیدو مقصد دا دے چه پدے به افسوس کوی چه ما دا عمل ولے کولو او دا بل مے ولے پریخودو۔

| يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ ﴿٦﴾ |
|---|
| اے انسانه ! څه شی دهوکه کړے تهٔ په رب خپل باندے چه عزتمند دے۔ |
| الَّذِي خَلَقَكَ فَسَوَّاكَ فَعَدَلَكَ ﴿٧﴾ |
| هغه ذات دے چه پیدا کړے ئے تهٔ نو برابر ئے کړے نو نیغ قد والا ئے کړے۔ |
| فِي أَيِّ صُورَةٍ مَّا شَاءَ رَكَّبَكَ ﴿٨﴾ |
| په کوم یو شکل کښ چه هغهٔ غوختل جوړ کړے ئے تهٔ۔ |

**تفسیر** : اُوس الله تعالیٰ هغه انسان ته رټنه ورکوی چه بد عمل کوی چه کفر او شرك او زما دین ولے ورانوے؟

يَا أَيُّهَا الْإِنسَانُ : دا خطاب قرآن کریم کښ دوه ځل راغلے دے، یو دلته او بل سورة الانشقاق کښ۔ او دا خطاب اول کافر او فاسق انسان ته دے، او بیا پکښ هر انسان داخل دے ځکه چه مونږ ټول انسانان په الله تعالیٰ باندے څه نا څه دهوکه شوی یو۔ څوك ډیر دهوکه دی او څوك لږ۔ کافر ډیر دهوکه دے۔

دهوکه کیدل دا دی چه په دغه الله تعالیٰ ئے کفر وکړو، د هغه سره شریکان جوړوی، د دغه لوی ذات هیڅ پرواه نهٔ لری، هغه نعمتونه ورکوی او دے ترے مخ اړوی، الله باندے د دهوکے ډیر شکلونه او صورتونه او طریقے دی، هر غفلت د الله تعالیٰ نه په الله تعالیٰ دهوکه کیدل دی، د الله تعالیٰ نه نهٔ یریدل، عباداتو کښ سستی کول، په مانځه ولاړ وی او فکر ئے په بل ځای کښ وی، شرك والا په الله تعالیٰ غټ دهوکه دے، د آخرت منکرین لوی دهوکه دی۔

بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ : کریم لفظ ئے راوړو اشاره ده چه (لَا يَنبَغِي مُقَابَلَةُ الْكَرِيمِ بِالْقَبِيحِ) د شریف او عزتمن ذات مقابله په قبائحو ډیر غلط کار دے، د عزتمن نه خو ډیر شرم او

حیاء پکار ده۔

ددے سوال غوره جواب هغه دے چه عمر بن الخطاب رضی الله عنه کریدے چه هغه فرمائی : (غَرَّهٗ وَاللّٰهِ جَهْلُهٗ) قسم په الله دے خپل جهالت دهوکه کړیدے، که دے جاهل په الله تعالیٰ نهٔ وے نو دے به په داسے عظیم ذات نهٔ دهوکه کیدے۔

او کومو کسانو چه دا جواب کړیدے (غَرَّنِیْ سُتُوْرُكَ الْمُرْخَاةُ / وَغَرَّنِیْ کَرَمُ الْکَرِیْمِ)

زهٔ ستا هغه پردو دهوکه کرم چه په ما بانده دِے رازوړندے کړیدی،/ یا زهٔ دهوکه کړم د عزتمن ذات کرم۔

(مطلب دا شو چه تا په ما بانده پرده راچولے ده یا دِے ما سره احسانات کړیدی نو ځکه زهٔ دهوکه یم) دا د قرآن کریم مطلب نهٔ دے، بلکه دا د صوفیاؤ خبرے دی او کمزوری دی دا خو ځان له عذر کتل دی۔

قتادهٔ وائی : غَرَّهٗ شَیْطَانُهُ الْمُسَلَّطُ عَلَیْهِ۔ دے خپل هغه شیطان دهوکه کړیدے کوم چه په دهٔ بانده مقرر دے۔

بِرَبِّكَ: نو دلته الله تعالیٰ فرمائی چه په الله بانده مهٔ دهوکه کیږه بلکه د دغه رب صفتونه واوره، هغه ستا رب دے، هغه کریم دے، هغه ستا خالق دے، ستا مُسَوِّی (برابرونکے) دے، ستا مُعَدِّل (اندامونه برابر جوړونکے) دے، ستا مُصَوِّر دے، نو تا سره ئے دومره احسانات او انعامات کړیدی او بیا هم تهٔ په هغهٔ بانده دهوکه کیږے، او د هغهٔ مخالفتونو کښې واقع کیږے۔

الله تعالیٰ وفرمایل : اے انسانه! تهٔ کوم یو شی په دهوکه کښې غورزولے ئے چه تهٔ د خپل فطرت نه آوړیدلے ئے او د خپل هغه رب نافرمانی کوے چه هغه لوی او عزتمن او کامل او قادر دے، او کوم چه په تا بانده دا احسان کړے چه تهٔ ئے کامل خِلقت والا انسان جوړ کړے، عقل او حواس او خپل بے شماره نعمتونه ئے درکړی۔ تهٔ هیڅ هم نهٔ وے نو هغهٔ تهٔ د یوے سپکے نطفے نه پیدا کړے، یو مکمل انسان ئے جوړ کړے، غوږونه، سترګے او عقل غونته نعمت ئے درکړو، لاسونه او خپے ئے درکړے، په سینه کښې ئے درزیدونکے زړهٔ درکړو، او په هره طریقه ئے یو مکمل انسان جوړ کړے۔

او د هغهٔ کامل قدرت اوګوره چه هغهٔ په تاسو کښې څوک سپین څوک تور جوړ کړو، څوک ئے اوږد او څوک ئے لنډ پیدا کړو، او بیا په تاسو کښې ئے څوک نارینه او څوک زنانه

جوړ کړل. دا هر څۀ د هغۀ د قدرت کاریګری او د هغۀ کامله صناعی ده، چه ددے تقاضا داده چه تاسو د خپل رب نافرمانی ونکړئ، هر وخت د هغۀ په بندګئ کښ اولګئ، او په هیڅ حال کښ هم د هغۀ د احکامو نه سرغړونه ونکړئ.

**خَلَقَكَ**: یعنی د نیشت نه ئے وجود ته راوستے.

**فَسَوّٰكَ**: اَیْ اَعْضَائَكَ. یعنی ستا اندامونه ئے برابر جوړ کړل. پښتون ئے درله پیر درکړو دے دپاره چه انسان د پریوتو نه محفوظ شی، که دا نرے وے نو انسان به تینګیدے نشوے، لاندے خپے ئے درله نرئ کړے خکه چه بیا به ئے د فیل په شان منډه نشوه وهلے او د هر څه نه به لګیدلے. که ورمیږ درله الله تعالیٰ ډیر پیر کړے وے نو اخوا دیخوا به ډے کتلے نشوے، که خیټه ئے درله ډیره غټه کړے وے، نو په خوراك څکاك سره به درنه بوساره جوړیدلے، استنجاء به ډے هم نشوے کولے. نو هر اندام الله تعالیٰ د خپل مقام سره مناسب لګولے دے. په انسان کښ دوه سوه اته څلویښت هډوکی او درے سوه شپیته جوړونه دی، دے ته الله تعالیٰ تسویه ورکړے ده.

**فَسَوّٰكَ**: اَیْ رَجُلًا تَسْمَعُ وَتُبْصِرُ وَتَعْقِلُ. یعنی ته ئے روغ برابر سړے جوړ کړے چه آوریدل او لیدل کوے او په خبره پو هیږے.

**فَعَدَلَكَ** : دے نه تعدیل الاخلاط مراد دے، په انسان کښ څلور اخلاط (مخلوط څیزونه) دی، وینه، صفراء، سوداء، بلغم. دا الله تعالیٰ په اندازه اچولی دی، وینه په انسان کښ شپاړس کیلو وی، څوارلس باندے ژوندے وی، او دوه د ستپنئ په طور وی.

دا دے دپاره چه که د انسان نه یو کیلو دوه وینه ووځی نو نۀ به مری. بیا د وینے بلډ پریشر ته وګوره چه دا په خاص انداز باندے الله تعالیٰ مقرر کړیده که دا تیزه شوه نو رګونه به وشو کیږی، او د سر رګ به وشو کیږی، فالج به راشی، او که په آرام شی نو زړه به دے ریږی، طاقت به ډے ختم شی.

دارنګه صفراء که ډیره شی نو صحت به خراب شی، خوله به ډے ترخه او بدن به ډے خراب وی، سوداء که ډیره شوه دماغ به ډے خراب شی، لیونے او دیوانه به شے، او بلغم که ډیر شی نو هډوکی به ډے درد کوی.

ددے وجه نه کله چه د انسان صحت ګډوډ وی نو بیا وائی نن مے مزاج خراب دے، یعنی یو ددے څلورو مزاجونو په بل باندے غلبه کړی وی نو بدن کښ تبدیلی پیدا

شوی وی۔

**فَعَدَلَكَ** : عطاءؒ وائی : جَعَلَكَ قَائِمًا مُعْتَدِلًا حَسَنَ الصُّوْرَةِ ۔ یعنی تهٔ ئے ولاړ درمیانه ښکلے شکل والا وګرځولے۔

مقاتلؒ وائی : عَدَلَ خَلْقَكَ فِي الْعَيْنَيْنِ وَالْاُذُنَيْنِ وَالْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ ۔ ستا پیدائش ئے په سترګو او غوږونو او لاسونو او خپو کښې برابر کړو۔ یعنی ستا اندامونه ئے برابر مناسب پیدا کړل۔

**فِي أَيِّ صُورَةٍ مَّا شَاءَ رَكَّبَكَ** : فِيْ اَيِّ صُوْرَةٍ متعلق دے د رَكَّبَكَ پورے، او مَا زیاتی ده او شَاءَ صفت دے د صُوْرَةٍ دپاره۔ (اَیْ رَكَّبَكَ فِيْ اَيِّ صُوْرَةٍ شَاءَهَا) یعنی جوړ ئے کړے په هر شکل کښې چه الله تعالیٰ غوښتل۔ چه د پلار یا د مور یا د ماما یا د تره سره مشابه وی (مقاتلؒ، کلبیؒ، مجاهدؒ)

یا که الله تعالیٰ وغواړی نو نارینه ئے پیدا کړی او که وغواړی نو زنانه (مکحولؒ)۔

یا ئے چا له سپین، چا له تور، چا له اوږد، چا له لنډ شکل او قد ورکړیدے۔

| كَلَّا بَلْ تُكَذِّبُوْنَ بِالدِّيْنِ ﴿٩﴾ وَإِنَّ عَلَيْكُمْ |
|---|
| هیڅرے داسے نهٔ ده، بلکه تاسو دروغژن ګڼړئ جزا لره۔ او یقیناً په تاسو باندے |
| لَحَافِظِيْنَ ﴿١٠﴾ كِرَامًا كَاتِبِيْنَ ﴿١١﴾ |
| خامخا حفاظت کونکے ملائك (مقرر) دی۔ عزتمند، لیکونکی۔ |
| يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ ﴿١٢﴾ |
| پوهیږی په هغه څه چه تاسو ئے کوئ۔ |

**تفسیر** : **كَلَّا** : ١- اَیْ لَا يَنْبَغِي الْغُرُوْرُ ۔ هیڅرے په الله تعالیٰ باندے دهوکه کیدل نهٔ دی پکار۔

٢- لَمْ يَغُرَّهُ كَرَمُ اللّٰهِ ۔ هیڅرے دے د الله په کرم دهوکه نهٔ دے۔ یعنی هیڅ یو شے داسے نشته چه تاسو لره په الله باندے دهوکه کړی او تاسو د خپل فطرت نه واړه وی بلکه ستاسو د رب بیحده احسانات خو تاسو ته دا لاره ښائی چه تاسو به د مرګ نه پس خامخا را پورته کیږئ، دے دپاره چه ستاسو د نیکو او بدو اعمالو بدله تاسو له درکړے

شی،

لیکن تاسو کښې مرض موجود دے، د دهوکے وجه ئے دا ده چه د آخرت ورځ نهٔ منی او جزاء او سزا نهٔ منی، ځکه چه د آخرت منل انسان هرے نیکۍ ته راکاږی.

تاسو صرف د کبر او عناد له وجے د مرګ نه پس ژوند او د قیامت په ورځ د جزاء او سزا نه انکار کوئ، او کفر او ظلم او نور ګناهونه کوئ.

وَإِنَّ عَلَيْكُمْ لَحَافِظِيْنَ: یاد ساتئ چه مونږ ستاسو د عملونو شمارلو او ددے د ثبت کولو دپاره ملائك مقرر کړی دی چه هغوئ ستاسو یو یو عمل لیکی. تاسو چه پټ یا ښکاره کوم ښهٔ یا بد عملونه کوئ، ملائك دا هر څهٔ لیکی، ستاسو د هیڅ یو قول او عمل نه دوئ غافله کیږی نهٔ، او داتول نیك او بد عملونه به د قیامت په ورځ ناساپه ستاسو مخے ته راشی.

د سورۂ قٓ په (۱۸/۱۷) آیتونو کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی:

﴿عَنِ الْيَمِيْنِ وَعَنِ الشِّمَالِ قَعِيْدٌ مَا يَلْفِظُ مِنْ قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيْبٌ عَتِيْدٌ﴾

(یو ښی طرفته او بل ګس طرفته ناست دے. انسان چه څهٔ لفظ د خُلے نه را اوباسی، د هغهٔ خواته موجود ساتونکے ملائك هغه محفوظ کوی).

كِرَامًا كَاتِبِيْنَ: دلته ئے د کرام لفظ راوړو اشاره ده چه الله تعالیٰ هم کریم دے، او دا ملائك هم کرام دی، نو اے انسانه! د لوی الله تعالیٰ نه هم حیاء وکړه، او ددے ملائکو نه هم حیاء وکړه، ملائك داسے عزتمن مخلوق دے چه کله انسان غلطے خبرے کوی نو هغوی له تعجب ورځی، د دروغو وئیلو نه د یو میل په اندازه لرے ځی ځکه چه په هغوی باندے ددے بد بوئی راځی. او حدیث کښې دی:

(فَإِنَّ مَعَكُمْ مَنْ لَا يُفَارِقُكُمْ ......... فَاسْتَحْيُوْهُمْ وَأَكْرِمُوْهُمْ)

چه تاسو سره هغه څوك دی چه ستاسو نه نهٔ جدا کیږی (یعنی ملائك) نو ددوی نه حیاء وکړئ او د دوی عزت وکړئ.

(الترمذی: ۲۸۰۰) واسناده ضعیف فیه لیث بن ابی سلیم وحسن بن ابی جعفر ضعیفان)

كَاتِبِيْنَ: یعنی ښهٔ او بد عملونه په صحیفو کښې لیکی دے دپاره چه په قیامت کښې د حساب او جزاء معامله وکړے شی.

يَعْلَمُوْنَ مَا تَفْعَلُوْنَ: دا دلیل دے چه کوم کارونه په عمل کښې نهٔ وی راغلی لکه پټے

ارادے، او د زړه نیتونه نو د هغې نه ملائك خبر نهٔ لري.

وَإِنَّ عَلَيْكُمْ: کښې خطاب عام دے نو معلومیږي چه دا ملائك په کافرانو او په انبیاء علیهم السلام باندے هم مقرر دي.

| |
|---|
| إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِي نَعِيمٍ ﴿١٣﴾ وَإِنَّ الْفُجَّارَ لَفِي جَحِيمٍ ﴿١٤﴾ |
| یقیناً نیکان به خامخا په نعمتونو کښې وي، او یقیناً بدکاره به خامخا په ګرم اُور کښې وي |
| يَصْلَوْنَهَا يَوْمَ الدِّينِ ﴿١٥﴾ وَمَا هُمْ عَنْهَا |
| داخلیږي به هغې ته په ورځ د جزاء۔ او نهٔ به وي دوی د هغے نه |
| بِغَائِبِينَ ﴿١٦﴾ وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٧﴾ ثُمَّ |
| غائبیدونکي۔ او څه پوهه کړے ئے تهٔ چه څه ده ورځ د جزاء۔ بیا (وایم) |
| مَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ ﴿١٨﴾ يَوْمَ لَا تَمْلِكُ |
| څه پوهه کړے ئے تهٔ چه څه ده ورځ د جزاء۔ هغه ورځ چه اختیار به نهٔ لري |
| نَفْسٌ لِّنَفْسٍ شَيْئًا وَّالْأَمْرُ يَوْمَئِذٍ لِّلَّهِ ﴿١٩﴾ |
| هیڅ نفس د بل نفس دپاره هیڅ شے او ټول اختیار به په دغه ورځ صرف د الله وي۔ |

**تفسیر**: کله چه دا ثابته شوه چه د بندګانو تمام عملونه ریکارډ کولے شي، نو اُوس دا بیانیږي چه د قیامت په ورځ به مومن او کافر او نیك او بد هر یو ته د هغهٔ د اعمالو مطابق بدله ورکړے کیږي، یعني مخکښې د اعمالو لیکل بیان شول، نو اُوس دلته د عاملینو دوه قسمونه یو ته بشارت او دویم ته تخویف اخروي ذکر کیږي۔

الْأَبْرَارَ: هغه کسان چه د هغوی صحیفے د نیك اعمالو نه ډکے دي، یعني چه کوم خلق د الله تعالیٰ فرائض اداء کوي، د ګناهونو نه ډډه کوي، او د صلاح او تقویٰ ژوند تیروي، هغویٔ به د جنتونو حقدار جوړیږي۔

او کوم خلق چه د الله تعالیٰ د امرونو مخالفت کوي، د هغویٔ استوګنه به جهنم وي چه په دے کښې به د جزاء او سزا په ورځ غورزولے کیږي، د هغے ګرمی، د هغے عذاب او د هغے سختي به زغمي، نهٔ به مري او نهٔ به د هغے نه وېستلے کیږي۔

د سورة الشورىٰ په (۷) آيت كښې الله تعالىٰ فرمايلي دي :

﴿ فَرِيقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيقٌ فِي السَّعِيرِ ﴾

(يوه ډله به په جنت كښې وي، او بله ډله به په جهنم كښې وي).

وَمَا هُمْ عَنْهَا بِغَائِبِينَ: يعني هيڅكله به د اُور نه نهٔ جدا كيږي او نهٔ به ترے غائبيږي.

وَمَا أَدْرَاكَ مَا يَوْمُ الدِّينِ: د قيامت د ورځے د هيبتناكئ او سختئ بيانولو دپاره الله تعالىٰ نبي كريم ﷺ مخاطب كوي فرمائي چه اے زما نبي! تهٔ د دغه ورځے سختي او هيبتناكئ پوره طريقے سره نهٔ پيژنے، حالانكه دا خو هغه شے دے چه د هغے صحيح علم حاصلول انتهائي اَهم دي.

ددے د خطرناكئ اندازه ددے نه ولګوئ چه په دے ورځ به هيڅ يو كس د بل هيڅا په كار رانشي، پلار د بچي دپاره او بچے د پلار دپاره، نهٔ ښځه د خاوند دپاره او نهٔ خاوند د ښځے دپاره، په دے ورځ به د الله تعالىٰ نه سوئ د يوے ذرے هم مالك نهٔ وي، د هغهٔ د اجازت نه بغير به هيڅوك سفارش نهٔ كوي، او نهٔ به د چا سفارش قبليږي.

الله تعالىٰ د سورة غافر په (۱٦) آيت كښې فرمايلي دي : ﴿ لِمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴾ (نن بادشاهي د چا ده؟ صرف د يو الله چه هغه زورور دے).

يَوْمَئِذٍ: دا ورسره څكه وائي چه په دنيا كښې ډير خلق د بادشاهئ او د تصرفاتو دعوه كوي، د قيامت په ورځ به هر څه الله تعالىٰ ته سپاري او د هيچا واك به نهٔ چليږي. د هغهٔ خوښه ده چه په تا باندے هرڅنګه فيصله كوي، نو چا چه د دغه رب سره تعلق جوړ كړے وي، نو كامياب او چه دغه رب ئے نهٔ دے راضي كړے او تعلق ئے ورسره نهٔ دے برابر كړے نو د هغهٔ به څه حال وي؟ پدے كښې پوره عبرت پروت دے!!. الله تعالىٰ دِ دے زمونږ تول احوال برابر كړي. آمين، وبالله التوفيق.

## امتيازات سورة الانفطار

۱- د قيامت هيبت.

۲- د انسان په الله تعالىٰ باندے دهوكه كيدل ذكر شو.

۳- د قيامت په ورځ واك صرف الله تعالىٰ لره دے.

ختم شو تفسير د سورة الانفطار په نصرت د رب العالمين سره.

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

| آیاتها (۳۶) | (۸۳) سُوۡرَۃُ الۡمُطَفِّفِیۡنَ مَکِّیَّۃٌ | رکوعاتها (۱) |
| --- | --- | --- |

سورة المطففین مکی دے، په دے کښې شپږ دیرش آیتونه او یوه رکوع ده

## تفسیر سورة المطففین

**نوم** : په اولنی آیت کښې [الۡمُطَفِّفِیۡنَ] لفظ راغلے، همدا ددے سورت نوم کیښودل شوے۔ او دے ته سورة التطفیف هم وائی۔

**د نازلیدو زمانه** : د ابن مسعود ؓ، ضحاك او مقاتل په نیز دا سورت مکی دے۔ نحاس او ابن مردویه د ابن عباس او ابن عمر رضی الله عنهم نه همدا روایت نقل کړے۔

او ابن ماجه د ابن عباس ؓ نه روایت کړی دی [لَمَّا قَدِمَ النَّبِیُّ ﷺ الۡمَدِیۡنَةَ کَانُوۡا مِنۡ أَخۡبَثِ النَّاسِ کَیۡلًا، فَأَنۡزَلَ اللّٰهُ سُبۡحَانَهُ : ﴿وَیۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِیۡنَ﴾ فَأَحۡسَنُوا الۡکَیۡلَ بَعۡدَ ذٰلِكَ] هر کله چه نبی کریم ﷺ مدینے ته هجرت اوکړو نو وے لیدل چه د هغه ځائے د خلقو حال په ناپ تول کښې ډیر خراب وو، نو الله ﴿وَیۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِیۡنَ﴾ نازل کړو۔ نو ددے نه روستو خلقو پیمانه ښه کړه۔ (ابن ماجه : ۲۲۲۳ حدیث حسن)

صاحب د محاسن التنزیل لیکی چه په ظاهره کښې دا سورت مکی دے، ددے چلن او خاصکر ددے آخری آیتونه ښائی چه دا په مکه کښې نازل شوے۔

### مناسبت

۱- مخکښې سورت کښې زجر وو په اغترار سره نو په دے سورت کښې زجر دے په تطفیف سره چه دا نتیجه د اغترار ده۔

۲- مخکښې ئے یَوۡمَ لَاتَمۡلِكُ سره د قیامت شان ذکر کړو نو دلته یَوۡمَ یَقُوۡمُ النَّاسُ لِرَبِّ

الْعَالَمِیْنَ سره د قیامت شان بیانوي.

۳- مخکښې ئې ووېل چه د بندګانو عملنامې د ملائکو سره وي په دنیا کښې نو دلته وائي چه دا عملنامې به روستو د مرګ نه په علیین یا سجین کښې وي.

## د سورت مقصد

اَلزَّجْرُ بِحُبِّ الدُّنْیَا وَالرَّغْبَةُ فِي الآخِرَةِ - د دنیا په محبت باندې رټنه او د آخرت سره مینه کولو باندې تیزي ورکوي. بعض خلق دومره ظالمان دي چه دنیا سره ئې دومره مینه ده چه خپله هم خوري او د بل هم خوري. بیا د قرآن کریم طریقه دا ده چه په خبره کښې ترقي کوي، نو وائي چه بعض خلق دومره ظالمان دي چه د دنیا سره ئې دومره مینه ده چه د آخرت نه منکر شویدي، قسماقسم ګناهونو کښې اخته دي،

ددې نه غټه ترقي دا ده چه بعض دومره مجرمان دي چه څوك آخرت لره تیارې کوي نو دوي د هغوي پورې توقې کوي. دا کارونه د محبت دنیا د وجه نه کیږي. ﴿ إِنَّ الَّذِیْنَ اَجْرَمُوْا کَانُوْا مِنَ الَّذِیْنَ آمَنُوْا یَضْحَکُوْنَ ﴾ دا د دنیا سره پدې طریقه لګیږي لکه سورت بقره کښې تیر شویدي ﴿ زُیِّنَ لِلَّذِیْنَ کَفَرُوا الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا وَیَسْخَرُوْنَ مِنَ الَّذِیْنَ آمَنُوْا ﴾.

دنیا سره ئې مینه ده نو د مؤمن پورې توقې کوي. لکه دا د عربو مشرکانو حال وو نو دا آیتونه اول د هغوي سره لګیږي بیا د ټولې دنیا کافرانو سره.

مکې والا هم د وزن والا وو، نو دوي به هم په سرو او سپینو اوزانو کښې ټګي کوله.

مدینې ته چه کله رسول الله ﷺ راغې نو د هغه ځای خلق د کجورو او فصلونو والا وو هغوي به هم دا ټګي کوله، تطفیف به ئې کولو، الله تعالیٰ په حرامو باندې ډیر سخت ناراضه کیږي، کافر ته هم وائي چه دا کار مه کوئ. لکه شعیب علیه السلام خپل قوم ته وئیلي وو چه ډنډې مه وهئ او ټګي مه کوئ.

څوك چه پردي مالونه خوري نو دوي په اصل کښې آخرت نه مني، که دوي آخرت مني نو بیا پردي حقوق په ځان باندې څنګه راچوي. ډیر انسانان د مال په باره کښې فیل دي چه نفلونو ته خو ښه تکړه وي لیکن پردي مالونه ورته خپل مالونه ښکاره کیږي. قرضونه هړپ کوي، ټګي کوي، په دالو، کرخو وغیره کښې شړې اچوي د درنه ولو دپاره. د دنیا دپاره په دروغو قسمونه کوي.

نو د دنیا محبت چه د چا په زړه کښې راشي نو يو به پردے مال خوري او د آخرت به منکر کيږي به او د مؤمنانو پورے توقو والا جوړيږي۔ نو ددے برعکس د هغه مؤمنانو صفت به وکړي چه هغوی زاهدين في الدنيا او راغبين في الآخرة دي۔
د هغوی طريقه دا ده چه هغوی په دنيا کښې نيکي کوی لګيا دي، حق قبلوی، د آخرت نه يريږي۔ نو د دوی دپاره د جنت نعمتونه واوره او د مخکنو خلقو جهنم۔ دوه دلے جوړے شوے د مخکښې سورت په شان ليکن طرز ئے جدا دے۔

| وَيۡلٌ لِّلۡمُطَفِّفِيۡنَ ﴿١﴾ الَّذِيۡنَ إِذَا |
|---|
| هلاکت دے دپاره د کمي کونکو (په ناپ تول کښې)۔ هغه کسان دي چه کله |
| اكۡتَالُوۡا عَلَى النَّاسِ يَسۡتَوۡفُوۡنَ ﴿٢﴾ وَإِذَا كَالُوۡهُمۡ أَو |
| پيمانه اخلي د خلقو نه نو پوره ئے اخلي۔ او کله چه پيمانه کوی هغوی ته يا |
| وَّزَنُوۡهُمۡ يُخۡسِرُوۡنَ ﴿٣﴾ أَلَا يَظُنُّ أُولٰٓئِكَ أَنَّهُمۡ |
| تول کوی هغوی له نو کموالے کوی۔ آيا ګمان نهٔ کوی دا کسان چه يقيناً دوی به |
| مَّبۡعُوۡثُوۡنَ ﴿٤﴾ لِيَوۡمٍ عَظِيۡمٍ ﴿٥﴾ يَوۡمَ يَقُوۡمُ النَّاسُ لِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿٦﴾ |
| راپورته کړے شي۔ ورځے لوئی ته۔ هغه ورځ چه ويه درولے شي خلق رب العالمين ته۔ |

**تفسير**: پدے آيتونو کښې الله تعالیٰ د هغه خلقو د هلاکت او بربادئ خبر ورکړے چه هغوئ په ناپ تول کښې خلقو سره بے ايماني کوی، د دوئ د اخستو پيمانه جدا وی، او د خرڅولو جدا۔ کله چه د خلقو نه اخستل کوی نو پيمانه ښهٔ ډکوی او وائي چه د ناپ تول کولو په وخت انسان له پوره ورکول پکار دي، او کله چه خلقو ته ورکوی نو کوشش کوی چه پيمانه ډکه نهٔ وی، او وائي چه همدا صحيح پيمانه ده۔
په اولنی درے آيتونو کښې د تطفيف تعريف او وضاحت شويدے۔ لکه چه ابن عطيةؒ وئيلي دي۔
**وَيۡلٌ**: دا جمله دعائيه ده، چه الله دے ئے هلاك کړي۔ يا جمله خبريه ده، الله تعالیٰ ددوی د هلاکت خبر ورکړيدے، او الله چه د چا د هلاکت خبر ورکړي هغه واقعي هلاك شو۔

لِلْمُطَفِّفِيْنَ: دا د تطفیف نه دے، په لغت کښې دے ته وائی چه د صاحبِ حق په حق کښې نقصان وکړی په پیمانه یا وزن کښې.

او تطفیف د طَفَفٌ نه دے کم شی ته وائی.

ابوعبیدهٔ او مبرّد وائی: مُطفف هغه چا ته وائی چه په پیمانه او وزن کښې کمے کوی.

حافظ سیوطیؒ په (الاکلیل) کښې لیکلی دی چه په دے آیتِ کریمه کښې په ناپ تول کښې د کمئ او خیانت کولو سخته بدی راغلے، ځکه چه ددے په ذریعه د خلقو مالونه په ناحقه خوړلے کیږی، او ددے مال مقدار اګرکه لږ وی، لیکن دا کار کول د کونکی په رذالت او خباثت باندے دلالت کوی، او دے خبرے ته اشاره ورکوی چه که دهٔ ته موقع ملاویدلے نو د خلقو ډیر مال هم په حرامه توګه د خوړلو نه دریغ نهٔ کوی. اهـ (القاسمی)

الله تعالیٰ د قرآن کریم په نورو ګنړو آیتونو کښې هم د پوره ناپ تول کولو حکم ورکړے، د سورهٔ اسراء په (۳۵) آیت کښې راغلی دی:

﴿ وَأَوْفُوا الْكَيْلَ إِذَا كِلْتُمْ وَزِنُوا بِالْقِسْطَاسِ الْمُسْتَقِيمِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴾

(او کله چه ناپ کوئ نو پوره پیمانے سره ناپ کوئ، او سیده تلے سره تول کوئ، همدا بهتر دے، او د انجام په لحاظ سره هم ډیر ښهٔ دے).

او د سورهٔ رحمٰن په (۹) آیت کښې راغلی دی:

﴿ وَأَقِيمُوا الْوَزْنَ بِالْقِسْطِ وَلَا تُخْسِرُوا الْمِيزَانَ ﴾ (او انصاف سره وزن ټیک ساتئ، او په تول کښې کمے مهٔ کوئ).

او د شعیب علیه السلام قوم الله تعالیٰ د همدے ګناه په سبب هلاك کړو چه دغه خلقو به په ناپ تول کښې د خلقو سره خیانت کولو.

فراءؒ وائی: مدینے والا ددے آیت د نازلیدو نه روستو د تولو خلقو نه ښائسته پیمانے والا دی تر نن ورځے پورے.

بیا تطفیف په دوه قسمه دے، یو ظاهری تطفیف دے چه دا په تول او پیمانه کښې نقصان کول دی دپاره د دهوکے ورکولو او دا حرام دے او ددے آمدن هم حرام دے.

دویم معنوی تطفیف دے لکه علامه قرطبیؒ لیکلی دی چه تطفیف په کیل او وزن او اودس او مونځ کولو او خبرو کولو کښې راځی.

او د امام مالكؒ نه نقل دی چه د هر څیز دپاره وفاء او تطفیف شته او دلته دواړه قسمه

تطفيفه حرام دي۔

حافظ ابن القيمؒ په بدائع التفسير کښې ليکي : لکه څنګه چه تطفيف په اموالو کښې حرام دے نو په مسائلو د دين کښې په طريقه اولیٰ سره حرام دے، لکه يو تن په يو مذهب روان دے نو کله چه يو حديث ددهٔ د مذهب خلاف راشي نو دے هغه ضعيف کړي، او د جانب مقابل خبره خکته کړي او خپله خبره پرے اُوچته کړي، دا غټ تطفيف دے ځکه چه دا خو تا خيانت وکړو، د الله او د رسول او د مسلمانانو سره۔ او ډير خلق د امتحاناتو په پرچو کښې ليکي : رَجِّحُوا مَذْهَبَ فُلَانٍ وَفُلَانٍ۔ د فلانی مذهب له ترجيح ورکړئ۔

يا د حديث نه شپاړس جوابونه کوي کُله چه د مذهب خلاف راشي۔ نو د داسے تطفيف نه به مؤمن ځان ساتي۔ پکار خو دا وه چه داسے ئے وئيلي وے : حق لره ترجيح ورکړئ، که د هر مذهب سره وي۔

نو کوم خلق چه په ميزان د شريعت کښې نقصان کوي چه په خپلو عملونو (اودس، مونځ، زکاة، روژه وغيره) عباداتو او معاملاتو کښې د حدودِ شرعيه ؤ نه نقصان کوي او د بل چا نه پوره عمل غواړي او په بل چا باندے تنقيد کوي او پخپله تنقيد نشي برداشت کولے او پخپله بے دليله خبرے کوي او د بل چا نه دليل غواړي او د بل چا حق پوره نهٔ ادا کوي او خپل حق پوره غواړي نو دا هم سبب د هلاکت دے او پردے عيبويني او خپل عيب ته نهٔ ګوري، پدے اعتبار سره هر مشرك، مبتدع، عنادي او باطل پرست او فاسق مطفف دے۔

او ددے تطفيف د وجه نه قرآن او حديث شا ته ګوزار شول، تقليدونه شروع شول، جنګ جګړے او فسادونه او حسدونه او بے محبتيانے ددے په وجه پيدا شوے او اسلامي خلافتونه ددے وجه نه ختم شو خو ډير خلق پدے مرض باندے تر اُوسه پورے نهٔ دي پوهه شوي۔ والله المستعان۔

إِذَا اكْتَالُوا عَلَى النَّاسِ: اکتيال بل نه پيمانه اخستو ته وئيلے شي۔ او عَلٰی په معنیٰ د مِنۡ سره دے۔ او عَلٰی ئے استعمال کړيدے، يعني په خلقو باندے زور کوي چه پوره ترے واخلي او د هغوي په ضرر باندے پيمانه اخلي۔

او دلته ئے پيمانه ذکر کړه نهٔ وزن د وجه د اختصار نه ځکه چه په هغه زمانه کښې کيل او وزن دواړو سره به بيع شراء کيده، نو د يو په ذکر سره دلالت په بل باندے ملاويږي۔

وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ : دا دواړه فعلونه بغیر د لام نه هم استعمالیږي، لکه دا د اهل حجاز و کلام دے، او کله نا کله سره د لام نه هم استعمالیږي، (كَالُوا لَهُمْ أَوْ وَزَنُوا لَهُمْ) یعنی کله چه خلقو له پیمانه ورکوي، یا ورله تول کوي.

يُخْسِرُونَ: یعنی کمے کوي /کم ورکوي.

أَلَا يَظُنُّ أُولَٰئِكَ : اُوس د آخرت د ورځے سره زجر او یره بیانوي. پدے کښ مقصد د خیانت او دهوکے ورکولو ګناه نه په منع کښ مبالغه او تاکید کول دي.

فرمائي : آیا دوئ ته ددے خبرے یقین نشته چه د خپلو قبرونو نه به ژوندي پورته کیږي، او د قیامت په خطرناکه او یرونکے ورځ کښ به د تمامو خلقو سره د رب العالمین مخے ته انتهائي ذلت او عاجزئ سره اودریږي، او د خپل ځان په باره کښ به د هغهٔ د فیصلے انتظار کوي.

أَلَا: دا استفهام د تعجیب دپاره دے، یعنی تاسو ددهٔ په حال باندے تعجب وکړئ. او د ظن په نفي سره د یقین نفي په طریقه د التزام سره راغله، یعنی یقین په بعث بعد الموت باندے خو درکنار چه ګمان هم نهٔ کوي، ځکه چه که ددهٔ یقین وے نو دهٔ به هیڅکله داسے جرم نهٔ کولے، البته که ګمان لري نو بیا دِے په خپل حال کښ فکر وکړي چه دے کله د الله تعالیٰ مخے ته ذلیله ولاړ وي، او تو له دنیا ددهٔ خیانت او شرم وینی نو ددهٔ به څه حال وي؟!.

عبد الله بن عمر رضی الله عنهما به چه کله د شپے تلاوت کولو او په دے آیت به راتیر شو نو د ډیر هیبت او د یرے د استحضار د وجه نه به په ځاي نشو ودریدے، بلکه پرے وتلو به. او دومره ئے وژړل چه د هغے نه روستو آیتونو نه بند شو. او په بازار چه به کله ورتیریدو نو په خلقو به ئے سلامونه اچول او بیا به ئے ورته ویل :

[اِتَّقِ اللّٰهَ وَاَوْفِ الْكَيْلَ فَاِنَّ الْمُطَفِّفِيْنَ يُوْقَفُوْنَ لِعَظَمَةِ الرَّحْمٰنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ]

د الله تعالیٰ نه یره وکړه او پیمانه پوره ورکوه ځکه چه کمے کونکي به د قیامت په ورځ د الله تعالیٰ عظمت ته ودرولے شي. (بیا به څه کوئ).

(التسهیل لعلوم التنزیل لابن جزي)

لِرَبِّ الْعَالَمِينَ : ۱- یعنی د رب العالمین امر او د هغه جزاء او د هغه حساب او حکم او فیصلے ته. ۲- بعض وائي : خلق به د رب العالمین مخے ته په خپلو خولو کښ تر

نیمائی غوږونو پورې ولاړ وي. لکه حدیث د بخاري او مسلم وغیره کښې د ابن عمر ﷺ نقل دی چه رسول الله ﷺ وفرمایل:

((په هغه ورځ چه خلق به رب العالمین ته ودریږي))

(يَقُوْمُ اَحَدُهُمْ فِيْ رَشْحِهٖ اِلٰى اَنْصَافِ اُذُنَيْهِ)

تردې چه یو تن د دوی به په خپله خوله کښې تر نیمائی غوږونو پورې پټ ولاړ وي.

(بخارى فى الرقاق باب٤٧، (٤٩٣٨) وتفسير سورة ٨٣ ومسلم فى الجنة حديث ٦٠)

| كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْنٍ ﴿٧﴾ |
|---|
| هیچرې داسې نهٔ ده پکار، یقیناً عملنامه د بدکارو خامخا په سجین (جیل) کښې ده. (لیکل د بدکارو په سجین کښې شویدی). |
| وَمَا أَدْرَاكَ مَا سِجِّيْنٌ ﴿٨﴾ كِتَابٌ مَّرْقُوْمٌ ﴿٩﴾ |
| او څه پوهه کړې ئې ته چه څه دې سجین. دفتر (رجسټر) دې لیکلې شوې. |
| وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿١٠﴾ الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ |
| هلاکت دې په دغه ورځ دپاره د تکذیب کونکو. هغه کسان دي چه دروغژن ګنړي |
| بِيَوْمِ الدِّيْنِ ﴿١١﴾ وَمَا يُكَذِّبُ بِهٖ إِلَّا كُلُّ مُعْتَدٍ أَثِيْمٍ ﴿١٢﴾ |
| ورځ د جزاء. او دروغژن نهٔ ګنړي هغه مګر هر زیاتې کونکې ډیر ګناهګار. |
| إِذَا تُتْلٰى عَلَيْهِ آيَاتُنَا قَالَ أَسَاطِيْرُ الْأَوَّلِيْنَ ﴿١٣﴾ |
| کله چه لوستلې شي په دهٔ باندې آیتونه زمونږ وائي دې (دا) قیصې د پخوانو دي. |

**تفسیر**: د [كَلَّا] په ذریعه هغه خلقو ته زجر او رټنه شوې ده چه هغوئ په ناپ تول کښې خیانت کوي، او د خلقو د حقونو په اداء کولو کښې کمې کوي. دوئ ته وئیلې شوي دي چه تاسو دا ګمان مهٔ کوئ چه ستاسو دا عملونه به نهٔ لیکلې کیږي، تاسو سره به ددې حساب نهٔ کیږي، او تاسو له به د قیامت په ورځ ددې جزاء نهٔ درکړې کیږي. د قیامت ورځ به خامخا راځي، او ستاسو عملنامې به خامخا ستاسو مخې ته پیش کیږي.

بیا په دنیا کښې دا قانون دې چه کله یو تن جرم وکړي نو هغه یو ځای بل ځای پټیږي

نو سرکار د هغه په باره کښې حکم وکړي چه فلانے مجرم نیول پکار دی، نو ددۀ نوم په جیلیانو کښې ولیکی چه فلانے د فلانی خوی په دے جرم باندے مجرم دے، او دے جیل ته راوستل غواړی، د مجرمانو نومونه په تور لست کښې لیکلے شوے وی، دویم ئے جرم لیکلے شوے وی، دریم ځل کښې هغه ونیول شی او جیل ته راوستے شی۔

نو دغه طریقه د الله تعالیٰ هم ده چه الله تعالیٰ د مجرمانو دپاره یو جیل د سجین په نوم باندے په لاندے زمکه کښې جوړ کړیدے، په هغے کښې ئے د مجرمانو نومونه هم لیکلی دی چه دا فلانی فلانی خلق به دے جیل ته راځی، دا د نیولو لائق دی، خو وخت ئے معلوم وی۔ او جرمونه ئے لیکلے شوی وی،

په بل تعبیر سره : د دوی عملونه هم هلته لیکلے شوی وی۔ او ټول بد اعمال ئے هلته روان وی، او بیا چه کله مړۀ شی، نو د هغوی روحونه هم هلته ولیږلے شی۔ درے واړه کارونه کیږی۔ او د قیامت په ورځ ئے بیا جهنم ته بوځی۔ کله چه ډیے دا قانون وپیژندو نو اُوس به په آیت باندے پوهه آسانه شی۔

الله تعالیٰ وفرمایل : د فاجرانو عملنامے به په سجین کښې وی، او د سجین تفسیر ئے دا بیان کړو چه دا یو لیکلے شوے کتاب دے، یعنی داسے کتاب چه په هغے کښې د شیطانانو، فاسقانو او فاجرانو بد اعمال لیکلے کیږی۔

د قتادةؒ، سعید بن جبیرؒ، مقاتلؒ او کعبؓ وینا ده چه (سجین) د اُوومے زمکے لاندے یو غټ کانړے دے چه د هغے لاندے د فاجرانو عملنامے لیکلے کیږی۔ همدا وینا د مجاهدؒ هم ده۔

او دواړه خبرے صحیح دی، ځکه چه دغه سجین یو مکان هم دے (نو لَفِیْ سِجِّیْن صحیح شو) او په هغے کښې بیا رجسټرے وی چه ددے فجارو نومونه پکښې لیکلے شوی وی۔ (نو کتاب الفجار) هم صحیح شو۔ لهذا هیڅ اشکال نشته۔

د دواړو معنیٰ به داسے وی : یقیناً لیکل او عملنامه د فاجرانو په جیلخانه کښې ده۔ یا په لوی کتاب کښې دی۔ او ددے ترجمو تفصیل روستو راځی۔

اخفشؒ، مبردؒ، او زجاجؒ وغیره د ﴿ إِنَّ كِتَابَ الْفُجَّارِ لَفِي سِجِّينٍ ﴾ معنیٰ دا بیان کړے چه دا فاجران به په همیشه قید او سخته تنګئ کښې وی، یعنی د قیامت په ورځ به دوئ په انتهائی ذلت او رسوائی کښې اخته کیږی۔

الفُجّارِ: پدے کښ اشاره ده چه د قیامت نه انکار او تطفیف کول فجور او بد عمل دے او د بد عملو خلقو انجام دا دے چه جیل ته به ځی۔

کِتَابَ الفُجّارِ: د فاجرانو د اعمالو کتاب چه هغه شیطانان، کافران، فاسقان دی دا په سجین کښ دے۔ او په حدیث د مسند احمد کښ دی چه د کافر روح په سجین کښ لیکلے کیږی۔

وَمَا اَدۡرَاكَ مَا سِجِّيۡنٌ: زجاج ددے معنیٰ کوی: چه تا ته او ستا قوم ته په دنیا کښ د وحی د نازلیدو نه مخکښ دا خبره نهٔ وه معلومه چه سجین څه شے دے بلکه تا په وحی سره وپیژندله۔ او دا جمله د هیبت دپاره ذکر کوی۔ چه هغه ډیر سخت ځای دے، تا ته څه پته ده۔

سِجِّيۡنٌ: د سجن نه دے، نون په کښ اصلی دے، او دا د مبالغے صیغه ده، یعنی هغه ځای چه ډیر تنگ دے، او د ټول عالَم نه خکته دے، او دے ته اسفل السافلین هم وائی۔ او ددے په باره کښ ډیر حدیثونه نقل دی۔

کِتَابٌ مَّرۡقُومٌ: ابن عطیة وائی: کوم علماء چه سجین د ځای نوم گنړی نو هغوی وائی کتاب مرفوع دے خبر د إِنَّ دے۔

اَیۡ إِنَّ کِتَابَ الفُجّارِ کِتَابٌ مَّرۡقُوۡمٌ فِیۡ سِجِّیۡن۔

(یعنی رجسټر (علمنامه) د فاجرانو یو رجسټر دے چه په سجین کښ دے) (او واحدیؒ دا قول د اکثرو مفسرینو نه نقل کړیدے)۔

یا دلته مضاف پټ دے۔ اَیۡ مَحَلُّ کِتَابٍ مَّرۡقُوۡم۔ یعنی سجین ځای د هغه علمنامے دے چه لیکلے شویده۔

او څوک چه سجین د کتاب نه عبارت گنړی، نو بیا به کتاب خبر د مبتداء محذوف وی، یعنی هُوَ کِتَابٌ۔ (نو کتاب به مصدر وی یعنی لیکل د فاجرانو په سجهن کتاب کښ شویدی چه دا کتاب داسے کتاب دے چه لیکلے شویدے۔

او د جمیر په لغت کښ مَرۡقوم په معنیٰ د مَخۡتُوم سره راځی۔ یعنی دا کتاب تاپه شویدے، چه زیادت او کمے پکښ نهٔ کیږی۔

نو که سجین د کتاب نوم شی نو بیا به نون پکښ بدل وی د لام نه، او په اصل کښ سجیل دے چه مشتق دے د سِجِلّ نه په معنیٰ د رجسټر سره۔ (فتح البیان)

اول قول غوره او ظاهر دے۔

وَيْلٌ يَوْمَئِذٍ لِلْمُكَذِّبِيْنَ: په دے ورځ به د الله تعالىٰ، د هغهٔ د آيتونو او د قيامت د ورځے تکذيب کونکو دپاره هلاکت او بربادي وي، يا دوئ له به د جهنم په وَيل نومے کنده کښې دردناك عذاب ورکړے کيږي۔

او دا دليل دے چه کوم خلق په ناپ تول کښې کمے کوی نو دهغوی په حقيقي معنو کښې په آخرت باندے يقين نشته، او د الله تعالىٰ او د رسول خبرے ورته دروغجنے ښکاره کيږي۔

الَّذِيْنَ يُكَذِّبُوْنَ بِيَوْمِ الدِّيْنِ: يعنى د قيامت ورځ هغه څوك دروغژنه ګنړي چه هغه د الله تعالىٰ د حدودو نه تجاوز کونکے او قِسما قِسم جرمونو ګناهونه کونکے وي، او د هغهٔ يو صفت دا هم وي چه کله ددهٔ مخامخ د قرآن کريم تلاوت کيږي نو انکار کوی او داسے وائي چه دا خو د تيرو شوو خلقو قيصے دي، دا اِلٰهي وحی نهٔ ده۔

الدِّيْنِ: لفظ کښې هم دعوت دے چه ستاسو په سر باندے د جزاء او سزا ورځ رارروانه ده۔ دا يقين وکړه۔

مُعْتَدٍ اَثِيْمٍ: ١- يعنى په افعالو کښې تجاوز کوی چه د حلال او حرام فرق نهٔ کوی۔ اثيم دے په اقوالو کښې چه دروغ وائي، او حق پرستو ته رد بد او کنځل کوی۔

٢- شربينيؒ وئيلى دي: معتدى دے چه تجاوز کوی د نظر او فکر کولو نه، غلو کونکے دے په تقليد سره تردے پورے چه د الله تعالىٰ علم او قدرت د بعث بعد الموت نه قاصر ګنړي، او اثيم: يعنى مُنهمك دے په شهواتو کښې تردے چه مشغول دے د يقين کولو نه په قيامت باندے۔

اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ: پدے کښې اشاره ده ددے انسان لوی جهالت ته چه دا ډير لوی جاهل دے چه د فصيح او بليغ کلام او د عامو قصو فرق نشی کولے۔

اَسَاطِيْرُ: هغه قصے دی چه د ځان نه جوړے کړے شوی وی او د مخکنو خلقو نه رانقل شوی وی۔

| كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا |
|---|
| هیچرې داسې نهٔ ده پکار بلکه زنګ راغلے دے په زړونو د دوی په هغه عملونو |
| كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿١٤﴾ كَلَّا إِنَّهُمْ عَنْ رَّبِّهِمْ يَوْمَئِذٍ |
| چه دوی به کول. هیچرې داسې نهٔ ده، یقیناً دوی به د رب خپل نه په دغه ورځ |
| لَّمَحْجُوْبُوْنَ ﴿١٥﴾ ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُوا الْجَحِيْمِ ﴿١٦﴾ |
| په پرده کښې کړے شي. بیا یقیناً دوی خامخا داخلیدونکے دی جهنم ته. |
| ثُمَّ يُقَالُ هٰذَا الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿١٧﴾ |
| بیا به وئیلے شي دا هغه شے دے چه تاسو به ددے تکذیب کولو. |

**تفسیر:** [كَلَّا] دا ردع ده د (قَالَ أَسَاطِيْرُ الْأَوَّلِيْنَ) نه. یعنی پدے لفظ سره دا باطل ګمان رد کړے شویدے چه قرآن کریم د تیرو شوو قومونو قیصے او واقعات دي، دا خو د الله تعالیٰ په حقه او واضح کتاب دے چه په دے باندے ایمان راوړل او په دے باندے عمل کول د روحاني مرضونو دپاره شفاء ده.

بَلْ رَانَ: یعنی دا قرآن د پخوانو قصے نهٔ دي بلکه دوی کښې فساد دے، چه کفر او ګناهونو د دوئ په زړونو باندے پرده اچولے ده چه ددے په سبب دوئ د حق د معرفت نه محروم شوي دي، او د الله تعالیٰ د لوی کتاب په باره کښې داسے غلطه خبره په خُلو باندے کوی.

رَانَ فعل دے او مَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ئے فاعل دے. یعنی زنګ راوستے دے په زړونو د دوئ باندے هغه ګناهونو چه دوی ئے کوی.

ابو عبيدةؓ وائي: رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ: أَيْ غَلَبَ عَلَيْهَا رَيْنًا وَرُيُوْنًا وَكُلُّ مَا غَلَبَكَ وَعَلَاكَ فَقَدْ رَانَ بِكَ وَرَانَ عَلَيْكَ. یعنی ران په معنیٰ د غلبے کولو سره دے. هر شے چه په تا باندے غالبه او پورته شي نو دے ته ران وائي. (الصحاح)

طبريؒ او فراءؒ وائي: أَيْ أَحَاطَ بِهِمْ. یعنی ران دا دے چه د دوی نه ګناهونه دومره ډیر شویدي چه د دوی زړونه ئے راګیر کړیدي.

ابو معاذ النحویؒ وائی : رین دا دے چه زړه د ګناهونو په وجه تور شی، او طبع دا ده چه په زړهٔ باندے مهر ووهل شی، او دا د رین نه سخت دے، او بیا دے ته تاله لګیدل د مهر نه هم ډیر سخت دی۔

او رسول الله ﷺ ددے تفسیر داسے کړیدے : [إِذَا أَذْنَبَ الْعَبْدُ نُكِتَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِي قَلْبِهِ، فَإِذَا هُوَ نَزَعَ وَاسْتَغْفَرَ وَتَابَ صُقِلَ قَلْبُهُ وَإِنْ عَادَ زِيدَ فِيهَا حَتَّى تَعْلُوَ قَلْبَهُ وَهُوَ الرَّانُ الَّذِي ذَكَرَ اللَّهُ : ﴿ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾] (ابن ماجه : ٤٢٤٤، صحیح)

کله چه یو بنده ګناه وکړی نو د هغهٔ په زړهٔ باندے تور داغ ولګی، که هغه بند شی او توبه او استغفار وکړی، نو زړهٔ ئے پاك شی، او که نور ګناهونه کوی، نو په هغے کښې زیاتوالے راځی تردے چه هغه ددهٔ په زړه باندے غلبه وکړی، او دا هغه ران (رین) دے چه الله تعالیٰ ذکر کړیدے پدے آیت کښې۔

كَلَّا إِنَّهُمْ : دا ردع ده د مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ نه۔ یعنی ګناهونه نهٔ دی پکار ځکه چه د دوئ د کفر او ګناهونو یوه بله سزا به دوئ ته دا ملاوېږی چه دوئ به د قیامت په ورځ د خپل رب د دیدار نه محرومه کړے شی۔

د سورهٔ القیامه په (۲۲/۲۳) آیتونو کښې الله تعالیٰ فرمایلی دی :

﴿ وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ نَاضِرَةٌ إِلَى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ ﴾

(په دے ورځ به ډیر مخونه تروتازه او رونق والا وی، خپل رب ته به کتونکی وی)۔

لَمَحْجُوبُونَ: محجوب هغه چا ته وائی چه هغهٔ ته پرده وهلے شوی وی۔ نو معلومه شوه چه د قیامت په ورځ به ټول مؤمنان خپل رب لره وینی، او دا کافران مجرمان به ددے لوی نعمت نه محروم وی۔

نو دلته دوه فائدے دی :

(۱) [حَجَبُوا قُلُوبَهُمْ عَنِ اللَّهِ فِي الدُّنْيَا فَحُجِبَتْ وُجُوهُهُمْ عَنِ اللَّهِ فِي الْقِيَامَةِ]

دوی په دنیا کښې خپل زړونه د الله تعالیٰ نه په پرده کښې کړی وو نو الله تعالیٰ د دوی مخونه په قیامت کښې د خپل ځان نه په پرده کښې کړل۔ چه تاسو ما ته نشئ کتلے۔

حسین بن الفضلؒ وائی :

كَمَا حَجَبَهُمْ فِي الدُّنْيَا عَنْ تَوْحِيدِهِ حَجَبَهُمْ فِي الآخِرَةِ عَنْ رُؤْيَتِهِ۔

لکه په دنیا کښې ئے د خپل توحید نه په پرده کښې کړی وو، نو په آخرت کښې ئے د خپل

لیدو نه په پرده کښې کړل.

(۲) فـائده : امام مالك او شافعیؒ دواړو نه نقل دی (په معتزلو به یې رد کولو چه هغوی به په آخرت کښې د الله لیدل او دیدار نهٔ منلو) نو دوی به ورته وئیل چه کله په آخرت کښې د الله لیدل حق نهٔ وے نو (لَمْ يُعَيِّرِ اللّٰهُ الْكُفَّارَ بِالْحِجَابِ) الله به کفارو ته د خپل دیدار مخے ته په پـرده اچولو باندے پیغور نهٔ ورکولے. نو چه مؤمن هم په پرده کښې شی نو بیا خو پدے صفت کښې کافر او مؤمن یو شے شو. بیا ددے تخصیص هیڅ فائده نشته.

دا قـول د امـام شـافـعیؒ طبرانیؒ راوړیدے او حافظ ابن کثیرؒ او حافظ ابن القیمؒ په بدائع التفسیر کښې ذکر کړیدے. او دا استدلال زجاجؒ هم کړیدے.

❁ دلتــه بـعـضِ خـلـقـو ددے تـفـسـیـر دا بیان کړے چـه ددے نـه مقصد د دویٔ د ذلت او رسـوائـی مـثـال بیـانـول دی، د هـغـهٔ سړی غـونـتـه چه هغه د سپکاوی په توګه د بادشاه د دربار نه بند کړے شی.

❁ قـتـادهؒ او ابن ابی مُلَیکَهؒ دا تفسیر بیان کړے چه الله تعالیٰ به دویٔ د ګناهونو نه پاك نهٔ کړی، او په دویٔ به د رحمت نظر نهٔ اچوی.

❁ د مـجـاهـدؒ وینا ده چه دا خلق به د الله تعالیٰ د اعزاز او اکرام نه بیخی محرومه کړے شی. لیکن اول قول غوره دے.

ثُمَّ إِنَّهُمْ لَصَالُوا : دے مـجـرمـانـو لـه بـه د دویٔ د کـفر او ګناهونو دریمه سزا دا ورکړے کیـږی چـه دویٔ بـه جـهـنـم تـه ګـذار کـړے شـی چـه پـه هـغـے کښې به دویٔ همیشـه دپاره سوزی.

حافظ ابن قیم رحمه الله په (بدائع الفوائد) کښې ددے آیت په ضمن کښې لیکلی دی چه الله تعالیٰ به دویٔ له دوه قِسمه عذاب ورکوی، عذابِ حجاب او عذابِ نار.

عـذابِ حـجـاب (یـعـنـی د الله تـعالیٰ نهٔ لیدو) سره به د دویٔ زړونو او د دویٔ روحونو ته انتهائی سخت تکلیف رسیږی، او عذابِ نار سره به د دویٔ جسمونه سوزی.

او خپـلو محبوبو بندګانو له به الله تعالیٰ په دے ورځ خپـل قربت او خپـل دیدار ورکوی، او د جنت قیمتی نعمتونه، حُور عین او نورے شماره نعمتونه به ورکوی.

لـکـه څنګه چه د سورةُ الدهر په (۱۱) آیت کښې راغلی دی : ﴿وَلَقَّاهُمْ نَضْرَةً وَسُرُورًا﴾ (الله تعالیٰ به دویٔ د تازګیٔ او خوشحالیٔ سره مخامخ کړی).

هَذَا الَّذِیْ: یعنی تاسو تکذیب ددے عذاب کولو اُوس درته یقین راغے۔
یا مضاف پټ دے اَیْ هٰذَا جَزَاءُ الَّذِیْ کُنْتُمْ آه۔ او دا د انسان دپاره انتهائی درجه تکلیف رسونکے خبره ده چه کله دے په یو مصیبت کښې اخته شی، او دهٔ ته څوك ووائی چه تهٔ چه څه شے برداشت کوے دا ستا د کړو میوه ده۔

| كَلَّا إِنَّ كِتَابَ الْأَبْرَارِ لَفِیْ عِلِّیِّیْنَ ﴿١٨﴾ |
| --- |
| هیچرے تکذیب نهٔ دے پکار یقیناً عملنامه د نیکانو خامخا په علیین کښې ده۔ |
| وَمَا أَدْرَاكَ مَا عِلِّیُّوْنَ ﴿١٩﴾ كِتَابٌ مَّرْقُوْمٌ ﴿٢٠﴾ يَّشْهَدُهُ |
| او څه پوهه کړے ئے تهٔ چه څه دے علیون۔ کتاب دے لیکلے شوے۔ حاضریږی هغے |
| الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿٢١﴾ إِنَّ الْأَبْرَارَ لَفِیْ نَعِيْمٍ ﴿٢٢﴾ عَلَى الْأَرَائِكِ |
| ته نزدے کړے شوی (الله ته)۔ یقیناً نیکان به په نعمتونو کښې وی۔ په پالنګونو به |
| يَنْظُرُوْنَ ﴿٢٣﴾ تَعْرِفُ فِیْ وُجُوْهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِيْمِ ﴿٢٤﴾ |
| وی، ګوری به۔ پیژنے به تهٔ په مخونو د دوی کښې تازګی د نعمتونو۔ |
| يُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِیْقٍ مَّخْتُوْمٍ ﴿٢٥﴾ خِتَامُهُ |
| څکولے به شی په دوی باندے د خالصو شرابو مهر وهلے شوو نه۔ مهر د هغے به |
| مِسْكٌ وَفِیْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ |
| مشك وی۔ (په آخر ددے کښې به بوئی د مشکو وی)۔او پدے کښې دے مینه اُوکړی |
| الْمُتَنَافِسُوْنَ ﴿٢٦﴾ وَمِزَاجُهُ مِنْ تَسْنِيْمٍ ﴿٢٧﴾ عَيْنًا |
| مینه کونکی۔ او ګډون د هغے به د تسنیم چینے نه وی۔ چینه ده |
| يَّشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُوْنَ ﴿٢٨﴾ |
| چه څکول به کوی د هغے نه نزدے بندګان (الله ته)۔ |

**تفسیر**: كَلَّا: دا ردع ده د تکذیب نه۔ یعنی تکذیب څکه مهٔ کوه چه کومو خلقو

کښې کامله نیکي راغله او د الله تعالیٰ او د رسول ﷺ تصدیق ئې وکړو نو هغوی خو په مزو باندې ورغلل۔

نو مخکښې د فاجرانو او د هغوی د عملنامو حالات او ځایونه وخودلې شول نو دلته د نیك عمله او د الله تعالیٰ نه د یریدونکو خلقو په باره کښې وئیلې کیږي چه بیشکه د دوئ عملنامې به په (علیین) کښې وي۔

او د علیین تفسیر دا اوشو چه دا یو لیکلې کتاب دې چه په هغې کښې د خیر والو، تقویٰ والو او نیکانو خلقو علمنامې لیکلې کیږي۔

واحدیؒ د مفسرینو وینا نقل کړې ده چه دا ځائې په اُووم آسمان کښې د عرش لاندې دې۔

نو دلته هم د مخکښې په شان قانون دې چه د نیکانو خلقو نومونه په علیین کښې (چه دا په جنت کښې اُوچت ځای دې) لیکلې کیږي، او بیا د دوی عملونه هم هلته ځي، او بیا ئې پس د مرګ نه روحونه هم ورځي۔ لکه حدیث کښې دي چه څوك فرض مونځ وکړي او د هغې نه روستو تر بل مانځه پورې بې ځایه خبرې ونکړي نو دا کتاب دې په علیین کښې۔ یعنی دا الله په علیین کښې لیکي۔

عِلِّيُّونَ : دا مفرد صیغه ده په وزن د جمع ده۔ عِلِّيِّينَ او عِلِّيُّونَ دواړه استعمالیږي۔ او چونکه وزن ئې د جمع دې، نو ځکه ورته اعراب د جمع ورکړې کیږي۔ لکه د عشرین او عشرون په شان۔ دا د علی نه دې، پورته والی ته وائي۔ او چونکه دا مقام په ډیره علو باندې مشتمل دې نو ځکه ورله لفظ د جمع کیخودلې شو۔

ضحاكؒ، مجاهدؒ او قتادةؒ وائي چه (علیین) په اووم آسمان باندې هغه ځائې دې چرته چه د مومنانو روحونه ساتلې کیږي۔ د قتادةؒ دویم قول دادې چه (علیین) د اووم آسمان دپاسه د اِلٰهي عرش د ښئ خپې نزدې ځائې دې۔

بعض مفسرینو لیکلي دي چه ددې نه مراد (جنت) دې۔

كِتَابٌ مَّرْقُومٌ : یعنی دا حقیقي لیکل شویدي، هسې خیال نهٔ دې۔

يَشْهَدُهُ الْمُقَرَّبُونَ : (١) یعنی ددې پاکیزه کتاب لیدل کتل صرف مقرب (او الله ته نزدې) ملائك کوي۔ او د هغې خوا ته شیطانان نشي ورتللې، چه د چا نوم به ترې وران کړي، یا د یو کافر نوم به پکښې ولیکي۔ بلکه ملائك ورته حاضریږي او ددې ځای او

کتاب حفاظت کوی۔ نو دا د شُهود نه دے، حاضریدو ته وائی۔

او دا مطلب هم دے چه مقربین ملائك د انسانانو عملونه دغه ځای ته پورته کوی، ځکه چه ډیر اعلیٰ مقام دے نو د عمل د ډیر قدر او عزت د وجه نه مقرب ملائك ئے هغه ځای ته وړی۔

(۲) یا معنیٰ داده چه په دے عظیم کتاب کښې صرف د الله تعالیٰ د مقرّب ملائکو، انبیاؤ، صدیقینو او د شهیدانو د روحونو تذکرے دی، یعنی د دوئ مقام د دوئ د رب په نیز ډیر زیات اوچت دے۔

(۳) یا دا د شهادت نه دے، (اَیْ یَشْهَدُوْنَ بِمَا فِیْهِ یَوْمَ الْقِیَامَةِ) یعنی د قیامت په ورځ به پدے کښې د موجوده عملونو گواهی ملائك مقربین ورکوی۔

اِنَّ الْاَبْرَارَ: مخکښې د عملنامو تذکره وه نو اُوس د دغه نیکانو د حالت تذکره کوی۔

الْاَرَائِكِ: جمع د اَرِیْکَةٌ ده، د ناوے کټ او پالنگ چه ډیر ښائسته او آرام ده وی۔

یَنظُرُونَ: ۱ - اَیْ اِلٰی وَجْهِ اللّٰهِ۔ د الله مخ ته به گوری۔

۲ - وَاِلٰی نِعَمِ اللّٰهِ۔ د الله نعمتونو ته به گوری۔

۳ - یا یو بل ته به گوری۔

٤ - یا د دشمنانو حالاتو ته به گوری۔ (مقاتلؒ)

٥ - یا نظر په معنیٰ د فکر سره دے، یعنی د دوی رب چه دوی ته کوم نعمتونه ورکوی او کوم عزت چه ورته وربخښی نو ددے په باره کښې به سوچ کوی او په زړه کښې به دننه انتهائی خوشحاله وی۔ نو دے کښې ډیر عموم دے۔ دے ټولو ته شامل دے۔

حافظ ابن القیمؒ لیکی: هرکله ئے چه د فجارو په احوالو کښې محجوبون ذکر کړو نو د ابرارو په احوالو کښې د تقابل دپاره ئے نظر الی الله ذکر کړو۔

تَعْرِفُ فِیْ وُجُوهِهِمْ نَضْرَةَ النَّعِیْمِ: یعنی ددے قیمتی نعمتونو د وجے نه چه دا به دومره زیات وی چه هیڅ مرض او غم او فکر به ورسره نهٔ وی، نو د هغے د خوشحالئ نښے نښانے او تازگی به د دوئ په مخونو باندے راښکاره کیږی۔

یُسْقَوْنَ مِنْ رَّحِیْقٍ مَّخْتُوْمٍ: اُوس د دوئ دپاره د څکلو سامان ذکر کوی۔

رَّحِیْقٍ: هغه شراب دی چه د خیرو، د نشے او د گډون د گیچ نه بیخی صفا وی۔ بلکه خالص شراب وی۔ نو دا د ټولو نه اعلیٰ او مزیدار شراب دی۔

مَخْتُومٍ: یعنی مهر به پرے وهلے شوے وی۔ یعنی دغه خالص شراب به په داسے لوښو کښې وی چه هغه به سر بمُهر وی، یعنی د مخکښې نه به دے له هیچا ګوتے نهٔ وی وروړی۔ او صرف هم دوی به ترے دغه مهر لرے کوی او څکی به ئے۔

خِتَامُهُ مِسْكٌ: او دا مُهر به د مشکو په ذریعه لګیدلے وی، د هغے ښاورے پشان چه د هغے په ذریعه شیشے او لوښی سر بمُهر کیږی، یعنی دغه مشك به دومره تازه او لامدهٔ وی چه هغه به د مهر اثر قبلوی۔

(۲) یا ختام په معنیٰ د آخر سره دے، یعنی جنتی چه کله ددے پاکیزه شرابو نه خوند واخلی، نو په آخره کښې به د مشکو انتهائی عُمده خوشبوئے محسوس کړی۔ څکه چه په دنیا کښې ډیر کرته په یو مشروب کښې اول کښې خو خوند وی لیکن آخره کښې په لوښی کښې ګند او خیری او خځری وینی نو زړه ئے خراب شی، یا د مشروب نه روستو ئے زړه ډك شی او بد بوئی محسوس کړی۔ نو د جنت مشروبات داسے نهٔ دی بلکه په آخره کښې ئے نور خوند زیاتیږی۔

وَفِيْ ذٰلِكَ: یعنی په دغه ذکر شوی نعمتونو د جنت او آرائك او دیدن د الله تعالیٰ او مشروباتو کښې۔

فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُوْنَ: تنافس د نفس نه دے، هغه شی ته وئیلے شی چه نفس د هغے د حاصلولو دپاره حرص کوی، نو تنافس دا دے چه هر یو حرص کوی چه دا زما دپاره خاص شی د وجه د ډیر رغبت او مینے نه۔

الْمُتَنَافِسُوْنَ: یعنی کله څوك د یو شی سره تنافس او مینه کوی نو د مینے شے دغه مذکوره څیزونه دی۔ یا متنافسون تعبیر ئے پدے وجه وکړو چه اشاره ده چه د انسانانو په طبیعت کښې خو تنافس شته لیکن دا تنافس ډے جنت طرفته متوجه کړی۔

او دا تنافس به پدے طریقه کیږی چه بنده کښې اخلاص، اتباع د سنت په تمامو اعمالو او تمام ژوند کښې راشی، او همیشه د الله تعالیٰ په طاعت او د هغهٔ په بندګئ کښې مصروف شی، یو تن چه یو عمل کوی نو بل ډے د هغے نه د وړاندے والی کوشش وکړی۔ نو اشاره ده چه دنیا سره داسے مینه مهٔ کوئ چه د هغے په وجه تول ناپ کښې کمی وکړئ بلکه الله تعالیٰ تاسو لره داسے ښکلے نعمتونه د ایمان او د عمل صالح په وجه تیار کړیدی چه د هغے په حاصلولو کښې د یو بل نه سیالی پکار ده۔

علماء کرام وائی چه دا آیت دلیل دے چه د جنت سره تنافس (مینه کول) واجب دی۔
او پدے کښې رد دے په هغه صوفیاؤ باندے چه هغوی وائی چه عمل به د الله تعالیٰ د رضا او د هغهٔ د مخ دپاره کولے شی، او د جنت په طمع او لالچ باندے عمل کول غلط کنړی۔ دا څکه غلطه ده چه جنت د الله تعالیٰ د نعمتونو ځای دے، او انسان که هغه نهٔ طلب کوی نو دا د الله تعالیٰ نه استغناء ښکاره کوی چه اے الله! تا خو دا نعمتونه تیار کړیدی خو زما ورته هیڅ ضرورت نشته۔ سره ددے نه چه دغه نعمتونو ته محتاج هم دے۔ بلـه دا چه په جنت کښې د ټولو نعمتونو نه لوی نعمت د الله تعالیٰ دیدار شته نو د جنت سره مینه لرل ګویا که د الله تعالیٰ سره مینه لرل دی۔
وَمِزَاجُهُ مِن تَسْنِيمٍ : شرابو کښې ضرور د کومو اُوبو ګډون کیږی، نو الله فرمائی چه دے شرابو کښې به د تسنیم چینے د اُوبو ګډون وی۔
تَسْنِيمٍ: په لغت کښې ارتفاع (پورته والی) ته وائی، لکه سَنَامُ الْبَعِيرِ : د اُوښ قوب ته وائی چه هغه هم اُوچت وی۔ او ددے نه تسنیم القبور هم اخستے شویدے۔
یعنی قبرونه مهی ښشت جوړه ول۔
تسنیم: په جنت کښې یوه چینه ده چه د بره نه خکته رابهیږی او دا د جنت د چینو نه ډیره مزیدار او اشرفه چینه ده۔
يَشْرَبُ بِهَا الْمُقَرَّبُونَ : باء په معنیٰ د مِنْ دے۔ لیکن پدے کښې تضمین د معنیٰ د (یړوی) دے، یعنی مړیږی به په هغے سره۔
الْمُقَرَّبُونَ : ددے مطلب دا دے چه مقرب بندګان به خالص د تسنیم نه اُوبه څکی او د نورو ابرارو دپاره به د هغے نه ګډون وی۔
او دارنګه د ابرارو دپاره به د کافور نه ګډون وی لکه په سورة الدهر (۵) آیت کښې ذکر شو، او دارنګه ګډون د زنجبیل به وی۔ لکه سورة الدهر (۱۷) آیت کښې تیر شو۔

| إِنَّ الَّذِينَ أَجْرَمُوا كَانُوا مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا يَضْحَكُونَ ﴿٢٩﴾ |
|---|
| یقیناً هغه کسان چه جرمونه ئے کړیدی وو دوی چه د ایمان والو پورے به ئے خندا کوله |
| وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ ﴿٣٠﴾ |
| او کله چه به ورتیریدل په هغوی باندے نو سترګے به ئے وهلے۔ (اشارے به ئے کولے)۔ |

| |
|---|
| وَإِذَا انقَلَبُوا إِلَىٰ أَهْلِهِمُ انقَلَبُوا فَكِهِينَ ﴿٣١﴾ |
| او کله چه به واپس شول خپل کور والو ته واپس کیدل به خوشحالی کونکی۔ |
| وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا إِنَّ هَٰؤُلَاءِ لَضَالُّونَ ﴿٣٢﴾ |
| او کله چه به دوی اُولیدل ایمان والو لره وئیل به ئے یقیناً دا کسان خامخا گمراهان |
| وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ ﴿٣٣﴾ فَالْيَوْمَ |
| دی۔ او نهٔ دی رالیږلی شوی دوی په هغوی باندے څوکیٔ کونکی۔ نو نن ورځ |
| الَّذِينَ آمَنُوا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُونَ ﴿٣٤﴾ عَلَى الْأَرَائِكِ |
| هغه کسان چه ایمان ئے راوړیدے د کافرو پورے به خندا کوی۔ په پالنګونو به وی، |
| يَنظُرُونَ ﴿٣٥﴾ هَلْ ثُوِّبَ الْكُفَّارُ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾ |
| ګوری به۔ آیا بدله ورکړے شوه کافرانو ته د هغه کارونو چه دوی کول۔ |

**تفسیر:** ربط

مخکښې الله تعالیٰ د کافرانو او مجرمانو او د نیکانو او پرهیزګارانو انجام او د هریو د جزاء او سزا بیان کړه، نو اُوس هغه کسان ذکر کوی چه د دنیا سره ئے دومره محبت پیدا شویدے چه د هغے په وجه په تکبر کښې راغلی دی، او د مؤمنانو پورے توقے کوی لکه دا رد اول په ابو جهل، ولید بن مغیره، عاص بن وائل او د دوئ پشان په نورو قریشی مجرمانو دے چه دوئ کښې دا ظلم او زیاتے وو،

نو الله تعالیٰ د دوی حال ذکر کوی چه د قیامت په ورځ به د دوئ په باره کښې وئیلے کیږی چه همدا هغه مجرمان دی چه په دنیا کښې به ئے هغه مومنانو پورے توقے کولے چه هغوئ په الله سبحانه باندے ایمان راوړے وی، محمد ﷺ ئے د هغهٔ رسول منلے وو، او د خپل پلار نیکهٔ د مشرکانه طور او طریقو نه توبه ګار شوی وو۔

د الله تعالیٰ دا نیکان بندګان به چه کله د مکے په سرکونو او کوڅو کښې د هغوئ خواته تیریدل نو په کبر او غرور کښې به راغلل، او دوئ پورے به ئے توقے کولے، او په خپل مینځ کښې به ئے د هغوئ په باره کښې یو بل طرفته په سترګو او په لاسونو اشاره کوله،

او کله به چه د خپلو مجلسونو نه پورته شو او خپل بال بچ طرفته به روان شو، نو بیا به ئے هم مومنانو پورے توقے کولے، د هغوئ عیبونه به ئے تالاش کول، او بنهٔ ریشخند او توقے به ئے ورپورے کولو۔ لکه دا اول د صحابه کرامؓ پورے کیدے، او بیا د هر داعی د حق پورے شوی او کیږی۔

او پدے آیت کښې د دوئ څلور بد صفات ذکر شویدی چه دا اسباب د وَیل او د رَیْن د زړونو دی۔

مِنَ الَّذِيْنَ آمَنُوا : دا جار مجرور ئے په يَضْحَكُوْنَ باندے رامخکښې کړو دپاره د قصر، او په قصر کښې اشاره ده د دوی ددے کار زیات قباحت او بد والی ته۔ چه دوی د خندا او د توقو دپاره بل څوک نهٔ موندل صرف ایمان والا ئے د خندا مرکز جوړ کړے وو۔ لوی مجرمان دی۔

وَإِذَا مَرُّوا: یعنی کله چه به مؤمنان په مشرکانو ورتیریدل، یا برعکس۔

يَتَغَامَزُوْنَ: تغامز د غَمْزٌ نه دے، ۱- په سترګو او وروځو باندے اشاره کول دی،

۲- یا معنیٰ ده: يُعَيِّرُوْنَهُمْ بِالْإِسْلَامِ وَيَعِيْبُوْنَهُمْ بِهٖ۔

یعنی په اسلام سره به ئے پیغور ورکولو او پدے سره به ئے د دوئ بدی بیانوله۔

وَإِذَا انْقَلَبُوا : یعنی دا کافران به چه کله خپلو کورونو یا تابعدارو ته واپس کیدل نو ډیر خوشحاله به وو۔

أَهْلِهِمُ: ددے نه مراد د دوئ تابعداران او مُقلدین دی۔

فَكِهِيْنَ: یعنی خوشحالی کونکی او لوی کونکی۔ یعنی په دغه مسخرو سره خپلو کشرانو ته نرتوب ذکر کوی چه مونږ مؤمنانو لره ذلیل کړل۔

یا مطلب دا چه دوی به د مؤمنانو پورے په مسخرو او توقو باندے مجلس ختمولو، او کورونو ته به واپس کیدل او خوشحاله به وو چه ښه دے چه مونږ د پلار نیکه دین نهٔ دے پریخے۔

یعنی د مؤمنانو پورے ئے خو توقے کولے لیکن د خپل عقیدے غم ورسره نهٔ وو۔

او ددے نه معلومیږی چه په دنیا کښې سرور کول اصل کښې د کافرانو فعل دے، چه عمل ئے نشته او خوشحاله خوشحالئ سره بے غمه ژوند تیروی۔

وَإِذَا رَأَوْهُمْ قَالُوا : د قریشو مجرمانو به چه کله مسلمانانو ته کتلے، نو دوئ طرفته

بـه ئې اشاره کـوله، او وئیل به ئې چه همدا هغه خلق دي چه دوئ د خپل پلار نیکهٔ دین پرینبي، او د محمد دین ئې قبول کړے او د حقے لارے نه آوړیدلي.

دا فکر ئې نهٔ کولو چه دے خلقو سره حق دے راځئ چه مونږه ئې هم قبول کړو.

وَمَا أُرْسِلُوا عَلَيْهِمْ حَافِظِينَ: دا قـول د الله تـعـالیٰ دے. یعنې حالانکه دا مجرمان په دے مـو مـنـانـو باندے محافظین او نګهبان جوړیدو سره نهٔ وو رالیږلے شوي چه د هغوئ په اعمالو باندے نظر لري، او د هغوئ د هدایت او ګمراهۍ ګواهي ورکوي. او په هغوي باندے فتوے لګوي.

مطلب دا چه تاسو د خپل ځان غم وکړئ چه آیا تاسو د الله تعالیٰ په صحیح دین روان یئ، د هغهٔ غم مهٔ کوه چه هغه ګمراه دے او که هدایت والا.

یو تـن اهـل حقـو تـه غـلـط وائـي ځـکـه چه د کتاب او سنت تابعداري ئې کړیده، او د مـخـلـوق خبره د الله او د رسـول مطابق مني، او دے د خپل ځان غم نهٔ کوي چه په کومو کندو کښې روان دے. او څومره ګرو (حلقو) کښې ګیر دے.

او دا د تکفیریانو طریقه هم ده چه د خپل ځان غم نهٔ کوي خو مسلمانانو ته کافران وائي.

یا دا هم قول د کفارو دے لکه مفسر ابو السعودؒ وئیلي دي یعني هغوئ به وئیلے چه د ایـمـان دعـوئ کـونـکـي دا خـلـق یـقـیـنًا ګمراه شوي دي، او دوئ په مونږ باندے نګران او سـاتـونـکـي نـهٔ دي مـقـرر کـړے شـوي چـه مـونږ ډے د شرك نه منع کړي او خپل اسلام طرفته ډے دعوت راکړي.

فَالْيَوْمَ: الله تـعـالیٰ وفرمایل: په دنیا کښې مومنانو پورے د ټوقو کولو بدله به د قیامت په ورځ کـافـرانـو او مـجـرمانو ته دا ملاوېږي چه مومنان چه کله د دوئ ذلت او رسوائي ووینی نو خوشحاله به شي، او په پالنګونو به ئې تکیه لګولي وي، او د الله تعالیٰ ورکړي نعمتونو ته به ګوري،

او د جهـنـم هـغـه عـذاب بـه هـم ویـني چه په هغے کښې به مجرمان خلق مبتلا وي، نو مؤمنان به وریسے وخاندي، بیا به الله رب العزت مومنان مخاطب کړي، او ورته به ووائي : آیا اُوس تـاسـو اولیـدل چـه مـونـږ کـافـرانـو له د دوئ د کفر او ظلم او د دوئ د نورو بدو اعمالو څنګه بدله ورکړے ده.

يَنظُرُونَ: کتل بیل نعمت دے ځکه دا بار بار ذکر کوي.

ابـو صالـحؒ ددے خـنـدا او مسـخرو بدله پدے طریقه ذکر کړیده چه اُور والو ته به ووئیلے شي چه رابهر شئ او د جهنم دروازے به ورته کولاوے شي، نو کله چه دوی ووینی چه د جهنـم دروازے کـولاوے دی، نـو هـغـے طـرفـته به رامنډه کړی، د وتلو کوشش به کوی او مـؤمـنان به دوی ته د خپلو پالنګونو نه ګوری خو کله چه دوی د جهنم دروازو ته رانږدے شي نـو نـاسـاپه به هغه د دوی مخے ته بندے شي نو دا هغه وخت دے چه ﴿ فَالْيَوْمَ الَّذِيْنَ آمَنُوْا مِنَ الْكُفَّارِ يَضْحَكُوْنَ ﴾ چه ایمان والا به د کفارو پورے وخاندی. (فتح البیان)

هَلْ ثُوِّبَ : دا یا قـول د الله تـعـالـیٰ دے. یا قـول د مؤمنانو دے چه دوی کښې به بعض بـعـضـو تـه ووائی چه آیا کافرانو ته بدله د هغوی د عملونو ورکړے شوه، نو دا استفهام تقریری دے یعنی آؤ ورکړے شوه.

ثُوِّبَ: ثـواب مـطلق بدلے او عقوبت ته هم وئیلے کیږی لکه چه د خیر اجر ته هم وئیلے شي.

مَـا كَـانُوا يَفْعَلُونَ : یـعـنـی دا سزا د دوی عـمـلـونـو ده چه دوی به د ایمان والو پورے مسخرے او خندنئ کولے.

الله تـعـالیٰ د سورة المومنون په (۱۰۸/۱۰۹/۱۱۰/۱۱۱) آیتـونـو کښې همدا مضمون داسے بیان کړے دے :

﴿ قَالَ اخْسَئُوْا فِيْهَا وَلَا تُكَلِّمُوْنَ ۞ إِنَّهُ كَانَ فَرِيْقٌ مِّنْ عِبَادِيْ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِيْنَ ۞ فَاتَّخَذْتُمُوْهُمْ سِخْرِيًّا حَتّٰى أَنْسَوْكُمْ ذِكْرِيْ وَكُنْتُمْ مِّنْهُمْ تَضْحَكُوْنَ ۞ إِنِّيْ جَزَيْتُهُمُ الْيَوْمَ بِمَا صَبَرُوْا أَنَّهُمْ هُمُ الْفَائِزُوْنَ ﴾

(الله بـه اووائی : کورے شئ او ما سره خبرے مۀ کوئ زما په بندګانو کښې یو ډلے دعاء کـولـه چـه اے زمونږ ربه ! مونږ ایمان راوړے، نو تۀ مونږ اوبخښه، او په مونږ رحم اوکړه، او تـۀ د ټـولو نه زیات رحم کونکے ئے، نو تاسو هغوئ پورے توقے کولے، تردے چه هغوئ سره ستاسو دے حرکت ستاسو د زړونو نه زما یاد اوخکلو، او تاسو به هغوئ پورے توقے کولے، نن ما هغوئ له د هغوئ د صبر بهترینه بدله دا ورکړه چه همدا خلق به کامیاب او با مراد وی). اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنَا مِنْهُمْ. وبالله التوفیق.

ختم شو تفسیر د سورة المطففین په فضل د خالق وهاب سره.

او پدے سره تمام شو دولسم جلد بمن الله وکرمه سبحانه وتعالیٰ.

# فهرست تفسیر حکمة القرآن جلد (۱۲)

السلام علیکم

ملګرو ته درخواست دے چه تفسیر حکمت القرآن

ملګرو له او د زان د پاره کتابي شکل کښې اغستل ضروري

دے ځکه چه په پښتو ژبه کښې دا سې بهترین تفسیر

بل نشته دے .. تاسو ته به دا تفسیر المکتبة

المحمدیة کښې ملاویګي

په دعاګانو کښې شیخ امین الله صاحب

او خاص کر شیخ ابو زهیر سیف الله

یاد ساتئ ځکه ستاسو د پاره ئې

ډیر محنت کړي دے .

موبائیل نمبر 03018828402

جزاک الله خیرًا

Scanned by CamScanner